د عُلماو، طُلباو، مُقرِرينو او عامو مسلمانانو دپاره په مختلفو موضوع گانو باندې

د تقريرونو يوه مُفصَلَه، مُعتَمده، عِلمي، او تحقيقي ذخيره:

اِصلاحي مُدلَّل تقريرونه

# اِصلاحي

# مُدلَّل تَقرِيرُونَه

پنځلسم جلد

تأليف: ابو الشمس مولانا نور الهُدیٰ عفي عنه

مُدرِّس دارالعلوم فيض القرآن اکاخيل کالونی، مردان







جاده ميوند پخته فروشی کابل: 0764857797

د علماؤ، طلباؤ، مُقرّرينو او عامو مسلمانانو د پاره په مختلفو موضوع گانو باندې

د تقريرونو يوه مُفصّله، مُعتمَده، عِلمي، او تحقيقي ذَخِيره:

# اِصْلَاحِيْ مُدَلَّلْ تَقْرِيْرُوْنه

جلد ۱۵

تاليف


اَبُوالشّمس مولانا نُورُالهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

فاضلِ جامعه امدادُالعلوم پشاور صدر، و وفاق المدارس العربية ملتان

ايم اے عبدالولی خان يونيورسٹی مردان

حالًا: مُدَرّس دَارُالعلوم فيضُ القرآن اكاخيل كالونی، مردان

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**د کتاب نوم:** اِصۡلَاحِيۡ مُدَلَّلۡ تَقۡرِيۡرُوۡنه جلد ۱۵


**مؤلف:** اَبُوالشَّمۡس مولانا نُوۡرُالۡهُدٰى عُفِيَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى مردان

فون نمبر ۰۳۰٦ ۵۴۴۷۱۷۴



**کمپوزر:** مؤلف پخپله

**د چاپ کال:** ۱٤٤۱هـ ق ، ۱۳۹۸ هـ ش، مطابق ۲۰۲۰ ء




**زير اهتمام:** كفايت الله ارماني ۰۳۴۴-۹۹۹۵۹۹۰

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سریزه ( د پنځلسم جلد )

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰی رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ ، اَمَّا بَعْدُ!

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ، اَلشُّكْرُ لِلّٰهِ . ددې کتاب پنځلسم جلد هم د الله ﷻ په فضل و کرَم سره پوره شو ، په دې کې مې هم اَهمې موضوع ګانې راجمع کړي .

## خوشخبري:( د تقریرونو دویمه سلسله )

ددې پنځلسم (۱۵) جلد نه پس به د تقریرونو دا سلسله په یو بل نوم باندې شروع کوم ، ځکه که په همدې نوم باندې دا سلسله مخکې بوځم نو بیا دا موجوده کتاب ډیر غټیږي ، د اِقتصادي مشکلاتو په وجه یې بیا کمزوري کس نشي اخیستی .

خو بل طرف ته تر اُوسه هم ډیر اَهمې موضوع ګانې د لیکلو نه پاتې دي ، د یوولسم جلد په آخر کې مې چې په کومو موضوع ګانو باندې د لیکلو وعده کړې وه یا کومو علماؤ چې راته په ټیلفون باندې په ځنې موضوع ګانو باندې د لیکلو مشوره راکړې ده هغه ټولې موضوع ګانې به اِنْ شَاءَ الله په راتلونکي سلسله کې شاملوم ، په هغې کې به هم په همدغه انداز باندې جامع تقریرونه وي .
ددې پنځلسم جلد نه پس چې د تقریرونو کومه سلسله شروع کوم د هغې نوم به وي:

## " د تقریرونو مُدَلَّلـــهٔ ذَخیره "

په دې آئنده سلسله کې چې په کومو موضوع ګانو باندې لیکل کوم هغه دا دي :

د تواضع فضائل او د نبي ﷺ د تواضع واقعات ، تقوٰی ، غصه برداشت کول ، د نظر حفاظت ، په ښځه باندې د خاوند حُقوق ، په خاوند باندې د ښځې حُقوق ، د زَنانهٔ د پاره د شَرعي پَردې اَهمیت ، د بې پردګۍ سزاګانې او نقصانات ، په میراث کې د زَنانهٔ حقوق ، د ګاوندي حُقوق ، د یو مسلمان په بل باندې حُقوق ،

د بچو صحیح تربیت کول ، د ژوند تیرولو اسلامي آداب ، د معاشرې غلط رسمونه او رواجونه، د بدعاتو رد ، د نبي علیه السلام سیرت ، ختم نبوّت ، د خلفائې راشدینو فضائل او کارنامې ، د جنت نعمتونه او ددې د حاصلولو طریقې ، د جهنم عذابونه او ددینه د بچ کیدلو طریقې ، د قیامت نخې ، د غیر مُسلمو د اتباع نه ځان ساتل ، د الله ﷻ د گرفت نه ویریدل ، د الله ﷻ نه یره او اُمید لرل ، په هر حالت کې الله ﷻ طرف ته رجوع کول او په الله ﷻ باندې توکل کول ، په تقدیر باندې راضي کیدل ، خپل نفس کنټرول کول ، د دُنیا حقیقت او ددې د محبت نه ځان ساتل ، د دین د سَرلُندی د پاره تکلیفونه برداشت کول (استقامت) ، اسلامي غیرت ، د آخرت د پاره تیارې کول ، د الله ﷻ او رسول ﷺ سره رښتینې محبت کول ، الله ﷻ ته محبوب اعمال ، د نفس تزکیه ، د نېکانو خلقو د صُحبت ښه اثرات ، قیمتي وخت فضول نه ضائع کول ، د اسلامي نظام د نفاذ د پاره کوشش کول ، د جمهوریت حقیقت ، د تقلید حقیقت ، د برکت اَسباب ، د مؤمن فراست ، د کونډو او یتیمانو سره مدد کول ، اَمر بالمعرُوف او نَهي عَنِ المُنکر ، د ذکر فضائل ، د نېکو اعمالو کولو فضائل .

په هره کبیره گناه باندې به مستقل تقریر لیکم ، مثلاً :
وعده خلافي ، غلا ، دُهوکه ، رشوت ، بُغض ، زنا ، لواطت ، ظلم ، صله رَحمي کټ کول ، په ناحقه قتل کول ، د مسلمان جاسوسي کول ، جگړې کول ، فحش او بې هوده خبرې کول ، په مسلمان بَدگماني کول ، په بل چا بُهتان لگول ، سَندرې ویل او آوریدل ، بې ځایه قسَمونه کول ، د مسلمان سپکاوې ، د مخلوقاتو نه طمع ساتل ، د الله ﷻ نه نااُمیده کیدل ، فضول خرچي او اِسراف.

همدارنگې په هر ښه صفت باندې به هم مستقل تقریر لیکم ، مثلاً :
آمانت داري حَیاء ، وَفاء ، اِنصاف ، شجاعت ، قناعت ، په یو بل مهربانه کیدل.

همدارنګې " د ټول کال د هرې مياشتې مناسب تقرير " به هم ليکم چې په هغې کې به د هغه مياشتې فضائل او اَهم واقعات ذکر وي .

د وخت او موقعې مناسب به اِن شَاءَ الله په دې کې نورې ضروري موضوع ګانې هم اِضافه کوم ، او کومو خلقو چې راته په ټيلفون باندې په ځنې موضوع ګانو باندې د ليکلو مشوره راکړې وه هغه به هم په کې شاملوم . هر تقرير به جامِع او مُدَلل وي .

**دُعا** : په آخِر کې دا خبره کوم چې که يو مؤلِف هر څومره د ښه اِستعداد واله وي خو چې دده سره د تاليف د پاره ضروري وسائل ( لکه د هرې موضوع متعلق د کتابونو مُعتمَده ذخيره ، او د ليکلو د پاره ضروري وَسائل ) نه وي نو دا په آسانه باندې دا خدمت سَر ته نشي رسولی .

بل طرف ته الله ﷻ په معاشره کې داسې مُخلِصه کسان هم پيدا کړي چې هغوی د خبر په کارونو کې پوره حصه اخلي ، زمونږ يو مُخلِص ملګرې دی د رِيا نه د بچ کيدو په خاطر يې نوم نه اخلم ، خو الله ﷻ ورته ډير ښائسته اخلاق ورکړي ، عاجز طبعيته شخصيت دی ، ډير دِيني کارونه کوي ، تمَنّا يې دا وي چې دا کارونه زما د پاره صدقه جاريه اوګرځي نو په همدې خاطر يې د ماسره د دې پنځلسم جلد په ضروري وسائلو برابرولو پوره مرسته کړی ، الله تعالی دې د دوی دا اِخلاص په خپل دربارِ عاليه کې قبول او منظور کړي ، او پروَردګارِ عالَم دې دا ټول کتابونه زمونږ سره دده د پاره هم صدقه جاريه اوګرځوي ، او الله تعالی دې مونږ او دوی ټولو ته نور هم د دِين د خدمت توفيق راکړي .

همدارنګې زه د خپل والد صاحب محترم " اَلحاج **حضرت مولانا اول شاه حُسيني صاحب** دَامَتْ بَرَكَاتُهُمُ الْعَالِيَة " ، خپلې **والدې صاحبې** ، اوبيا خاصکر د خپل مشر ورور " اَلحاج **حضرت مولانا عبدالباقي حقاني صاحب** دَامَتْ بَرَكَاتُهُمُ الْعَالِيَة " ډيره شکريه اَداء کوم ، او دا دُعا ورته کوم چې الله تعالی دا کتابونه د دوی د پاره هم تر قيامته پورې صدقه جاريه اُوګرځوي ؛

ځکه دا څه د دِين خدمت چې تاسو کورئ دا د همدوی د مقبولو دُعاګانو ، ښه تربيت او راهنمايي نتيجه ده .

پروَردِګارِ عالَم دې د دوی د شفقت دا سورې زمونږ په سرونو باندې قائم لري ، او ربِّ کريم دې دوی ته د دوارو جهانو سعادت او خوشحالي ورنصيبه کړي .

يا اَرحمَ الرّاحمِينَ ! دا ټول کتابونه د معاشرې د اِصلاح ، او د اُمتِ مسلمه د پاره د مغفرت او نجات ذريعه او ګرځوه .

آمِيْن يَا رَبَّ الْعَالَمِيْن .

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ

**نوټ** : که د کتاب متعلق يا بله څه مفيده مشوره وي نو په دې ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴ نمبر راسره رابطه کولې شئ .

**ابو الشمس نُورُالهدٰی عفی عنه**


بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
اِجمالي فهرست

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ



## ۲. د خُوش اَخلاقۍ فضائل او د نبي علیه السلام د خوش اخلاقۍ واقعات

| نمبر شمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۱۰ | حضرت عُمر رضي الله عنه د خپلې بي بي خبرې برداشت کولې | ۱۱۷ |
| ۱۱۱ | مِرزا مظهر جانِ جانان رحمه الله ته غټه مرتبه د خپلې بي بي د خبرو برداشت کولو په وجه ملاؤ شوې وه | ۱۱۸ |
| ۱۱۲ | ابو الحسن خرقاني رحمه الله ته لوي مقام د بي بي خبرو برداشت کولو په وجه ملاؤ شو | ۱۱۸ |
| ۱۱۳ | د بي بي معاف کولو په وجه مغفرت | ۱۲۰ |
| ۱۱۴ | د خادِمانو (غلامانو او وِينځو) سره د نبي عليه السلام خوش اخلاقي | ۱۲۲ |
| ۱۱۵ | نبي عليه السلام به د صحابه کرامو سره خوش طبعي او خوش اخلاقي کوله | ۱۲۳ |
| ۱۱۶ | ۱. حضرت زاهِر رضي الله عنه سره خوش طبعي او خوش اخلاقي | ۱۲۳ |
| ۱۱۷ | ۲. د سوَرلۍ غوښتونکي کس سره خوش طبعي او خوش اخلاقي | ۱۲۴ |
| ۱۱۸ | ۳. د بُوډۍ ښځې سره خوش طبعي او خوش اخلاقي | ۱۲۵ |
| ۱۱۹ | نبي صلى الله عليه وسلم به په ښائسته صورت او ښائسته اخلاقو باندې د الله جل جلاله شکريه اداء کوله | ۱۲۸ |
| ۱۲۰ | نبي عليه السلام به د ښائسته اَخلاقو دُعا کوله | ۱۲۸ |
| ۱۲۱ | **د نورو بزرګانو د خوش اَخلاقۍ واقعات** | ۱۳۰ |
| ۱۲۲ | د ابو عثمان حيري رَحِمَهُ اللهُ خوش اخلاقي | ۱۳۰ |
| ۱۲۳ | د اُويس قرني رَحِمَهُ اللهُ خوش اخلاقي | ۱۳۱ |
| ۱۲۴ | د مالِک بن دِينار رَحِمَهُ اللهُ اخلاق | ۱۳۲ |
| ۱۲۵ | د يو غلام اَخلاق: (د ميږي لحاظ ساتل) | ۱۳۲ |
| ۱۲۶ | د اِسلامي اَخلاقو نه کافران هم متأثره کيږي | ۱۳۳ |
| ۱۲۷ | د يو بزرګ د خوش اخلاقۍ په وجه کافر ته اِيمان نصيب کيدل | ۱۳۴ |
| ۱۲۸ | د خواجه نِظام الدين اَولياء رَحِمَهُ اللهُ د خوش اخلاقۍ په وجه کافر غَل اِيمان راوړو | ۱۳۴ |
| ۱۲۹ | د خوش اخلاقۍ اِجمالي فوائد | ۱۳۶ |
| ۱۳۰ | د کامياب اِجتماعي ژوند د پاره ښه اَخلاق ضروري دي | ۱۳۹ |

## ۲. د بد اَخلاقۍ سزاګانې او نقصانات

| نمبرشمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

| نمبرشمار | موضوع | صفحه |
| --- | --- | --- |
| ۲٦۰ | د بکر بن عبد الله مزني رَحِمَهُ اللهُ معافي | ۲۷۲ |
| ۲٦۱ | د شاه اسماعيل شهيد رَحِمَهُ اللهُ معافي او اخلاق | ۲۷۲ |
| ۲٦۲ | د مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ معافي او اخلاق | ۲۷۳ |
| ۲٦۳ | د درې بزرګانو مختلف اَحوال | ۲۷۴ |
| ۲٦۴ | بزرګان چې د چا نه بدل اخلي په دې کې هم د دې کس خېر وي | ۲۷۵ |
| ۲٦۵ | په معافي کولو سره جَنګونه ختميږي | ۲۷٦ |
| ۲٦٦ | د عَفوې متعلق د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ اشعار | ۲۷۷ |
| ۲٦۷ | د غونډ تقرير خلاصه | ۲۷۸ |
| ۲٦۸ | دُعا | ۲۷۹ |
| ۲٦۹ | **په عربي کې جامِع** | ۲۸۰ |
| ۲۷۰ | تمهيدي خبره | ۲۸۱ |
| ۲۷۱ | **په قرآن کريم کې ذکر شوې بعضې دُعاګانې** | ۲۸۱ |
| ۲۷۲ | په قرآن کريم د جَمعې په صيغو سره ذکر شوې دُعاګانې | ۲۸۲ |
| ۲۷۳ | په قرآن کريم کې د مفرد په صيغو سره ذکر شوې دُعاګانې | ۲۸۴ |
| ۲۷۴ | د قرآن د آيتونو نه مُستفاد شوې دُعاګانې | ۲۸٦ |
| ۲۷۵ | **په احاديثو کې ذکر شوې بعضې دُعاګانې** | ۲۸۷ |
| ۲۷٦ | د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد و ثناء | ۲۸۷ |
| ۲۷۷ | په نبي عليه السلام باندې درود شريف | ۲۸۸ |
| ۲۷۸ | په احاديثو کې د جَمعې په صيغو سره ذکر شوې دُعاګانې | ۲۸۸ |
| ۲۷۹ | په احاديثو کې د مفرد په صيغو سره ذکر شوې دُعاګانې | ۲۹۳ |
| ۲۸۰ | په احاديثو کې د ذکر شوو دُعاګانو نه مستفاد شوې دُعاګانې | ۳۱۲ |
| ۲۸۱ | **هغه آيتونه او دُعاګانې چې په هغې کې اسمِ اعظم دی** | ۳۱۴ |

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ اَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰى مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ﴾.

النساء آية ۵۴.

# د حسَد سزا ګاني او د دينه د بَچ کيدو طريقې

تاليف


اَبُو الشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اکاخيل کالونی مردان

بسم الله الرحمن الرحيم

# د حسد سزاګانې او ددينه د بچ کيدو طريقې

الحمد لله نحمده ونستعينه ونستغفره ونؤمن به ونتوكل عليه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا من يهده الله فلا مضل له ومن يضلله فلا هادي له، ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له ونشهد أن سيدنا ونبينا ومولانا محمدا عبده ورسوله،

أما بعد فأعوذ بالله من الشيطان الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم قال الله تبارك وتعالى في القرآن المجيد والفرقان الحميد:

﴿ أم يحسدون الناس على ما آتاهم الله من فضله ﴾. (۱)

وقال تعالى: ...... ﴿ ومن شر حاسد إذا حسد ﴾. (۲)

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: .... لا تحاسدوا، ولا تباغضوا، ولا تدابروا، وكونوا عباد الله إخوانا. (۳)

---

(۱) النساء آية ۵۴.

(۲) الفلق آية ۵.

(۳) صحيح البخاري كتاب الأدب باب ما ينهى عن التحاسد والتدابر رقم الحديث ۶۰۶۶، صحيح مسلم كتاب البر والصلة والآداب باب تحريم الظن والتجسس والتنافس والتناجش ونحوها رقم الحديث ۲۸(۲۵۶۳)، سنن ابن ماجة باب الدعاء بالعفو والعافية رقم الحديث ۳۸۴۹

وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إياكم والحسد فإن الحسد يأكل الحسنات كما تأكل النار الحطب - أو قال: العشب -.

سنن ابی داؤد كتاب الأدب باب في الحسد رقم الحديث ۴۹۰۳، مشكوة المصابيح باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۴۰(۱۲)، رياض الصالحين باب تحريم الحسد رقم الحديث ۲۷۰، الآداب للبيهقي باب ترك الحسد والأمر بالإستعاذة من شر حاسد اذا حسد رقم الحديث ۱۱۵، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۳۷۷ الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر، بلوغ المرام من ادلة الاحكام رقم الحديث ۱۴۹۳ باب الرهب من مساوئ الأخلاق، الزواجر عن اقتراف الكبائر ۸۹/۱، كنز العمال رقم الحديث ۷۴۴۲ الحسد، رد المحتار (حاشيه ابن عابدين الشامي) ج۱ ص۲۲ مقدمة.

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ : لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا لَمْ يَتَحَاسَدُوا . (١)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْم .

## تمهيدي خبره

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو وروڼو ! په قرآن کريم او احاديثو مبارکه ؤ کې چې د کومو بَدو صفتونو ذکر شوی او انسان د هغې نه منع شوی نو په هغې کې يو حسَد هم دی ، خو د ټولو نه اول درته د حسد تعريف کوم ، بيا به درته د قرآن کريم او احاديثو په رَڼا کې د حسد سزاګاني او نقصانات ذکر کوم ، همدا رنګې ورسره به د حسد نه د ځان ساتلو فضائل ، د حسد اَسباب ، د حسد علاج ، او د حسد کوونکي د شَر نه د ځان ساتلو طريقې هم اِن شاء الله بيانوم.

## د حسد اِصطلاحي تعريف

١ . امام غزاليؒ په " احياء العلوم " کې د حسد اِصطلاحي تعريف داسې کړی :

كَرَاهَةُ النِّعْمَةِ وَحُبُّ زَوَالِهَا عَنِ الْمُنْعَمِ عَلَيْهِ . (٢)

په چا باندې چې الله تعالى څه نعمت کړې وي د هغه دا نعمت بَد ګڼړل ، او د هغه نه ددې نِعمت زائل کيدل خوَښ ګڼړل .

يعني کله چې الله تعالى ستا په يو مسلمان ورور باندې څه نِعمت کړې وي او ته دا نعمت بدګڼړې او دادې خواهش وي چې د هغه نه دا نِعمت ختم شي نو ديته حسد وايي . (٣)

---

(١) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ٨١٥٧ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ٢٨٨٧(٣) الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر ، مجمع الزوائد ومنبع الفوائد بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَسَدِ وَالظَّنِّ رقم الحديث ١٣٠٤٥ وقال الهيثمي: رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ، وَرِجَالُهُ ثِقَاتٌ.

(٢) احياء علوم الدين ج٣ ص ١٨٩ كتاب ذم الغضب والحقد والحسد بيان حقيقة الحسد وحكمه وأقسامه ومراتبه .

(٣) اِعلم أنه لا حسد إلا على نعمةٍ فإذا أنعم الله على أخيك بنعمةٍ فلك فيها حالتان : إحداهما أنْ تكره تلك النّعمة وتحبّ زوالها . وهذه الحالة تسمى حسدًا .... احياء علوم الدين ج٣ ص ١٨٩ بيان حقيقة الحسد وحكمه وأقسامه ومراتبه .

مثلا الله تعالی هغه ته مال ورکړی وي يا يې ښه صحت ورکړی وي ، يا يې شهرت ورکړی وي ، يا يې علم او عزت ورکړی وي او ستا په زړه کې دا خيال راځي چې الله تعالی هغه ته دا نعمت ولې ورکړی دی ؟ که د هغه نه دا نعمت واخيستل شي نو دا به ښه وي . او که په هغه باندې څه تکليف راشي نو ته پرې خوشحاليږې نو دا حسد دی .

۲ . علامه جُرجاني رحمه الله د حسد تعريف داسې کړی :

اَلْحَسَدُ : تَمَنِّي زَوَالِ نِعْمَةِ الْمَحْسُوْدِ إِلَى الْحَاسِدِ . (۱)

حسد ديته وايي چې انسان دا آرزو کوي چې د محسود (يعنی د چا سره چې حسَد کولې شي د هغه) نه دا نعمت زائل شي او حاسد (يعنی ده) ته ملاوْ شي .

علماوْ د حسد نور تعريفونه هم کړي . (۲)

(۱) التعريفات ص ۸۷ باب الحاء ، الصحاح تاج اللغة وصحاح العربية ج ۲ ص ۴۶۵ . تاج العروس ۸/۲۵ .

(۲) **الحسدُ لغةً** : اَلْحَسَدُ مَصْدَرُ قَوْلِهِمْ : حَسَدَ يَحْسِدُ وَيَحْسُدُ ـ بِكَسْرِ السِّيْنِ وَضَمِّهَا ـ وَأَصْلُهُ الْقَشْرُ وَهُوَ مَأْخُوْذٌ مِنَ الْحَسْدَلِ وَهُوَ الْقُرَادُ . فَالْحَسَدُ يَقْشِرُ الْقَلْبَ، كَمَا تَقْشِرُ الْقُرَادُ الْجِلْدَ فَتَمْتَصُّ دَمَهُ.

وَقَالَ ابْنُ مَنْظُوْرٍ : اَلْحَسَدُ أَنْ تَتَمَنّٰى زَوَالَ نِعْمَةِ الْمَحْسُوْدِ . وَحَسَدَهُ يَحْسِدُهُ وَيَحْسُدُهُ حَسَدًا وَحَسَّدَهُ إِذَا تَمَنّٰى أَنْ تَتَحَوَّلَ إِلَيْهِ نِعْمَتُهُ وَفَضِيْلَتُهُ أَوْ يُسْلَبَهُمَا. نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۱۰ ص ۴۴۱۷ الحسد .

اَلْحَسَدُ بِفَتْحِ السِّيْنِ أَكْثَرُ مِنْ سُكُوْنِهَا مَصْدَرُ حَسَدَ، وَمَعْنَاهُ فِي اللُّغَةِ أَنْ يَتَمَنّٰى الْحَاسِدُ زَوَالَ نِعْمَةِ الْمَحْسُوْدِ . انظر الصحاح والقاموس واللسان والمصباح مادة : "حسد". الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱۷ ص ۲۶۹ الحسد .

**الحسدُ اصطلاحا** : قَالَ الْجَاحِظُ : اَلْحَسَدُ : هُوَ التَّأَلُّمُ بِمَا يَرَاهُ الْإِنْسَانُ لِغَيْرِهِ وَمَا يَجِدُهُ فِيْهِ مِنَ الْفَضَائِلِ، وَالْإِجْتِهَادِ فِيْ إِعْدَامِ ذٰلِكَ الْغَيْرِ مَا هُوَ لَهُ، وَهُوَ خُلُقٌ مَكْرُوْهٌ وَقَبِيْحٌ بِكُلِّ أَحَدٍ . تهذيب الاخلاق ص ۳۴ .

وَقَالَ الْمَاوَرْدِيُّ : حَقِيْقَةُ الْحَسَدِ شِدَّةُ الْأَسٰى عَلَى الْخَيْرَاتِ تَكُوْنُ لِلنَّاسِ الْأَفَاضِلِ وَهُوَ غَيْرُ الْمُنَافَسَةِ . ادب الدنيا والدين ص ۲۷۰ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ

وَقَالَ الْمُنَاوِيُّ : اَلْحَسَدُ : تَمَنِّي زَوَالِ نِعْمَةٍ عَنْ مُسْتَحِقٍّ لَهَا . وَقِيْلَ : هُوَ ظُلْمُ ذِي النِّعْمَةِ بِتَمَنِّيْ زَوَالِهَا عَنْهُ وَصَيْرُوْرَتِهَا إِلَى الْحَاسِدِ . التوقيف على مهمات التعاريف ص ۱۳۹ باب الحاء.

← ← ← ← ← ← ← ← ←

**د حسد بدترين قسم** : امام غزالي رحمه الله د حسد څلور مراتب ذکر کړي ، په ټولو کې بدترين قِسم دادی چې انسان د بل سره نعمت اوګوري او دا يې خوښه وي چې د هغه نه دا نِعمت زائل شي که ماته ملاؤ شي او که نه . (١)

## د غِبطې تعريف

علامه کفوي رحمه الله د غِبطې تعريف داسې کړی :

اَلْغِبْطَةُ : تَمَنِّي الْإِنْسَانِ أَنْ يَكُوْنَ لَهُ مِثْلُ الَّذِيْ لِغَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ إِرَادَةِ إِذْهَابِ مَا لِغَيْرِهِ . (٢)

غِبطه ( رَشک ) ديته وايي چې انسان دا آرزو اوکړي چې دې بل کس ته الله تعالی کوم نِعمت ورکړی داسې ماله هم راکړي ، او د هغه نه ددې نِعمت زائله کيدو اِراده ( خواهش ) هم نه لري .

## په حسَد او غِبطه کې فرق :

نو په حسَد او غِبطه کې دا فرق شو چې په حسد کې د هغه کس نه د نِعمت زائله کيدلو خواهش وي او په غِبطه کې د هغه نه د نِعمت زائله کيدلو خواهش نه وي ، غِبطه د مؤمن صفت دی ، او حسد د منافق صفت دی . (٣)

---

←←←← وَقَالَ الْكَفَوِيُّ : اَلْحَسَدُ : اِخْتِلَافُ الْقَلْبِ عَلَى النَّاسِ لِكَثْرَةِ الْأَمْوَالِ وَالْأَمْلَاكِ . الكليات للكفوي ص ٤٠٨، ٦٧٢ .

وَقَالَ الرَّاغِبُ : اَلْحَسَدُ تَمَنِّيْ زَوَالِ نِعْمَةٍ مِنْ مُسْتَحِقٍّ لَهَا ، وَرُبَّمَا كَانَ مَعَ ذٰلِكَ سَعْيٌ فِيْ إِزَالَتِهَا . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ١٠ ص ٤٤١٧ الحسد .

(١) اَلْمَسْأَلَةُ الثَّالِثَةُ : فِيْ مَرَاتِبِ الْحَسَدِ ، قَالَ الْغَزَالِيُّ رَحِمَهُ اللهُ هِيَ أَرْبَعَةٌ : اَلْأُوْلٰى : أَنْ يُحِبَّ زَوَالَ تِلْكَ النِّعْمَةِ وَإِنْ كَانَ ذٰلِكَ لَا يَحْصُلُ لَهُ وَهٰذَا غَايَةُ الْحَسَدِ..... التفسير الكبير ( تفسير الرازي ) ٦٤٧/٣ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ١٩٢ بيان حقيقة الحسد وحكمه واقسامه ومراتبه ، الموسوعة الفقهية الكويتية ج١٧ ص ٢٧٢ حسد .

(٢) الكليات معجم في المصطلحات والفروق اللغوية ص ٦٧٢ فصل الغَين .

(٣) ... أَمَّا الْحَسَدُ فَهُوَ إِرَادَةُ زَوَالِ نِعْمَةِ الْغَيْرِ ، ثُمَّ إِنَّ الْغِبْطَةَ صِفَةُ الْمُؤْمِنِ ، وَالْحَسَدَ صِفَةُ الْمُنَافِقِ . المفردات للراغب (١١٧) . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ١٠ ص ٤٤١٨ الحسد .

غِبطې ته مُنافسة هم وايي ، دا په عباداتو کې محمود (بهتر) ده. (۱)
غِبطې ته مجازًا حسد هم وايي . (۲)
په احاديثو مبارکه وُ کې هم د غِبطې ( رشک ) جواز شته ، مثلا يو کس بل کس په عبادت ، د قرآن په تلاوت ، يا صدقه ورکولو باندې اوګوري او دا هم دا تمنا اوکړي چې

---

(۱) قال الامام غزاليّ : وأمّا المنافسة فليستْ بحرامٍ بل هي إمّا واجبة وإمّا مندوبة وإمّا مباحة . وقد يستعمل لفظ الحسد بدل المنافسة . والمنافسة بدل الحسد ....... والمنافسةُ في اللغة مشتقةٌ من النفاسة والذي يدل على إباحة المنافسة قوله تعالى {وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُوْنَ} . وَقَالَ تَعَالٰى {سَابِقُوْا إِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ}. إحياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۹۰ بيان حقيقة الحسد وحكمه وأقسامه ومراتبه .

قال ملا علي قاريّ : (وَلَا تَحَاسَدُوْا) أَيْ: لَا يَتَمَنّٰى بَعْضُكُمْ زَوَالَ نِعْمَةِ بَعْضٍ سَوَاءٌ أَرَادَهَا لِنَفْسِهِ أَوْ لَا. قَالَ تَعَالٰى : {وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ} [النساء آية ۳۲] إِلٰى أَنْ قَالَ : " {وَاسْأَلُوا اللهَ مِنْ فَضْلِهِ} [النساء آية ۳۲] " أَيْ مِثْلَ تِلْكَ النِّعْمَةِ أَوْ أَمْثَلَ مِنْهَا، وَهٰذَا الْحَسَدُ الْمَحْمُوْدُ الْمُسَمّٰى بِالْغِبْطَةِ . كَمَا تَقَدَّمَ فِيْ حَدِيْثِ " « لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ » " الْحَدِيثَ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۸ ص ۳۱۴۸ .

اَلْغِبْطَةُ فِي اللُّغَةِ : أَيْ أَنْ يَتَمَنّٰى أَنْ يَكُوْنَ لَهُ مِثْلُ مَا لِغَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَزُوْلَ عَنْهُ، وَالْحِرْصُ عَلٰى هٰذَا يُسَمّٰى مُنَافَسَةً. فَإِنْ كَانَ فِي الطَّاعَةِ فَهُوَ مَحْمُوْدٌ ، وَإِنْ كَانَ فِي الْمَعْصِيَةِ فَهُوَ مَذْمُوْمٌ ، وَإِنْ كَانَ فِي الْجَائِزَاتِ فَهُوَ مُبَاحٌ . الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۱ حسد . فتح الباري ۱ / ۱۶۷ ط الرياض ، وانظر ما جاء في صحيح مسلم بشرح النووي ۶ / ۹۷ ط المصرية ، والمنثور ۱ / ۴۰۳ ط الأولى، والتعريفات للجرجاني ۲۰۷ ط العربي .

أَمَّا إِذَا كَانَ الْحَسَدُ مَجَازِيًّا ، أَيْ بِمَعْنَى الْغِبْطَةِ فَإِنَّهُ مَحْمُوْدٌ فِي الطَّاعَةِ، وَمَذْمُوْمٌ فِي الْمَعْصِيَةِ. وَمُبَاحٌ فِي الْجَائِزَاتِ، وَمِنْهُ قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ : رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ الْقُرْآنَ فَهُوَ يَتْلُوْهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ وَرَجُلٍ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ " . أَيْ كَأَنَّهُ قَالَ: لَا غِبْطَةَ أَعْظَمُ أَوْ أَفْضَلُ مِنَ الْغِبْطَةِ فِيْ هٰذَيْنِ الْأَمْرَيْنِ . الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۴ حسد ، فتح الباري ۱ / ۱۶۷ ط الرياض، صحيح مسلم بشرح النووي ۶ / ۹۷ ط المصرية.

(۲) ذَكَرَ النَّوَوِيُّ فِيْ شَرْحِ مُسْلِمٍ : أَنَّ الْحَسَدَ قِسْمَانِ: أَحَدُهُمَا حَقِيْقِيٌّ: وَهُوَ أَنْ يَتَمَنّٰى زَوَالَ النِّعْمَةِ عَنْ صَاحِبِهَا. وَالثَّانِي مَجَازِيٌّ : وَهُوَ أَنْ يَتَمَنّٰى مِثْلَ النِّعْمَةِ الَّتِيْ عِنْدَ غَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ زَوَالِهَا عَنْ صَاحِبِهَا وَهُوَ الْمُسَمّٰى بِالْغِبْطَةِ. صحيح مسلم بشرح النووي ۶ / ۹۷ ط المصرية . الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۲ حسد.

ماته هم الله تعالی دا توفيق راکړي چې زه هم دا کارونه اوکړم ، نو دا غِبطه جائز ده .

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ: رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ، وَ رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَيُعَلِّمُهَا . (۱)

حسد ( يعنی غِبطه ) صحيح نده مګر په دوه خصلتونو کې ( يا د دوه کسانو سره ) صحيح ده : يو هغه کس چې هغه ته الله تعالی ډير (حلال) مال ورکړې وي او په حق ځايونو کې يې ورته د خرچ کولو توفيق هم ورکړې وي . دويم هغه کس چې هغه ته الله تعالی حِکمت (عِلم او د دِين په احکاماتو باندې پوهه ) ورکړې وي او هغه په دې حِکمت باندې فيصلې کوي ، او نورو ته يې هم ښائي .

( يعنی په خپل عِلم باندې عمل کوي ، نورو ته يې هم ښائي ، او د خپلې دِيني پوهې په وجه د خلقو په مينځ کې صحيح فيصلې کوي ) .

**فائده** : په دې حديث کې د حسد نه مراد غِبطه يعنی رشک دی . لهذا که څوک د چا سره څه نعمت اوګوري او دا د الله ﷻ نه دا دُعا اوغواړي چې :

" يا الله ! لکه څرنګې چې تا ده ته دا نِعمت ورکړی نو همدغه شان يې ماته هم راکړه ، يا هغه ته دې د عبادت کولو توفيق ورکړی ماته يې هم راکړه " نو دا غِبطه ده او دا جائز ده

او که څوک دا سوال اوکړي چې " يا الله ! د هغه نه دا نِعمت واخله او ماله يې راکړه ، يا که ماله يې راکوی او که نه خو د هغه نه يې واخله " نو دا حسد دی دا ناجائز دی . (۲)

---

(۱) صحيح البخاري رقم الحديث ۱۴۰۹ كِتَابُ الزَّكَاةِ بَابُ إِنْفَاقِ الْمَالِ فِي حَقِّهِ ، و رقم الحديث ۷۱۴۱ كِتَابُ الأَحْكَامِ بَابُ أَجْرِ مَنْ قَضَى بِالْحِكْمَةِ ، صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِينَ وَقَصْرِهَا بَابُ فَضْلِ مَنْ يَقُومُ بِالْقُرْآنِ، وَيُعَلِّمُهُ، وَفَضْلِ مَنْ تَعَلَّمَ حِكْمَةً مِنْ فِقْهٍ، أَوْ غَيْرِهِ فَعَمِلَ بِهَا وَعَلَّمَهَا رقم الحديث ۲۶۸ (۸۱۶) .

(۲) (لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ .... ) يَعْنِيْ أَنْ يَجْتَهِدَ حَتَّى يَفْعَلَ مِثْلَ فِعْلِهِ فِيْ قِيَامِ اللَّيْلِ وَفِي الصَّدَقَةِ. فَهٰذَا الْحَسَدُ مَحْمُوْدٌ . فَأَمَّا إِذَا حَسَدَهُ فِيْ ذٰلِكَ يُرِيْدُ زَوَالَهُ عَنْهُ ، فَهُوَ مَذْمُوْمٌ. وَهٰكَذَا فِيْ كُلِّ شَيْءٍ إِذَا رَأَى الْإِنْسَانُ مَالًا أَوْ شَيْئًا يُعْجِبُهُ فَيَتَمَنَّى أَنْ يَكُوْنَ ذٰلِكَ الشَّيْءُ لَهُ فَهُوَ مَذْمُوْمٌ. وَإِنْ تَمَنَّى أَنْ يَكُوْنَ لَهُ مِثْلُهُ، فَهُوَ غَيْرُ مَذْمُوْمٍ. وَهٰذَا مَعْنَى قَوْلِهِ تَعَالَى: {وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ} [النساء آية ۳۲] ←←←←←

## د حسد حُکم

د حسد حُکم دادی چې دا بِالاتفاق حرام دی ، ددې حرمت په کتاب الله ، سُنتِ رسول ، اِجماعُ الاُمّة او عقل سره ثابت دی ، ځکه حسد کوونکې په حقيقت کې په الله تعالی باندې دا اعتراض کوي چې هغه کس ته يې دا نعمت ولې ورکړې دی ؟ (او ماته يې ولې ندې راکړی ؟ ) ، او په الله تعالی باندې اعتراض کول خو حرام دي ، (ځکه په الله ﷻ باندې اعتراض کول په خپل مُحسِن او مُنعِم باندې اعتراض کول دي) .(۱)

لهذا حسد خطرناکه بيماري ده ددې لرې کول فرض دي .

البته که فاجر او فاسق سره يو نِعمت وي او هغه ددې نِعمت په وجه په خلقو کې فِتنه او فساد پيدا کوي او يا خلقو ته پرې ضرر رسوي نو بيا د هغه نه ددې نِعمت زائل کيدلو خواهش کول جائز دی ، ځکه اوس دا نعمت د هغه په حق کې د فساد نورولو ذريعه ده .(۲)

## د حسد کوونکي د شر نه پناه غوښتل

حسد داسې بدترين صفت دی چې دا د انسان بدن او دِين دواړو ته نقصان رسوي ، تردې

←←←← إِلَى أَنْ قَالَ: {وَاسْأَلُوا اللهَ مِنْ فَضْلِهِ} [النساء آية ۳۲] ، وَهٰكَذَا يَنْبَغِي لِلْمُسْلِمِ أَنْ لَا يَتَمَنَّى فَضْلَ غَيْرِهِ لِنَفْسِهِ، وَيَنْبَغِي أَنْ يَسْأَلَ اللهَ تَعَالَى أَنْ يُعْطِيَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ. تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين ص۱۸۰ بَابُ الْحَسَدِ.

(۱) اَلْحُكْمُ التَّكْلِيفِيُّ: اَلْحَسَدُ إِنْ كَانَ حَقِيقِيًّا، أَيْ بِمَعْنَى تَمَنِّي زَوَالِ النِّعْمَةِ عَنِ الْغَيْرِ فَهُوَ حَرَامٌ بِإِجْمَاعِ الْأُمَّةِ، لِأَنَّهُ اعْتِرَاضٌ عَلَى الْحَقِّ، وَمُعَانَدَةٌ لَهُ ، وَمُحَاوَلَةٌ لِنَقْضِ مَا فَعَلَهُ، وَإِزَالَةُ فَضْلِ اللهِ عَمَّنْ أَهَّلَهُ لَهُ، وَالْأَصْلُ فِي تَحْرِيمِهِ الْكِتَابُ وَالسُّنَّةُ وَالْمَعْقُولُ . الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۳ حسد.

(۲) فَأَمَّا الْأَوَّلُ (اي الحسد) فهو حَرَامٌ بِكُلِّ حَالٍ إِلَّا نِعْمَةً أَصَابَهَا فَاجِرٌ أو كافرٌ وهو يستعين بها على تهييج الفتنةِ وإفساد ذات البين وإيذاء الخلق فلا يضرك كراهتك لها ومحبتك لزوالها فإنك لا تحب زوالها من حيث هي نعمة بل من حيث هي آلة الفساد ، ولو أمنت فساده لم يغمك بنعمته . إحياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۹ بيان حقيقة الحسد وحكمه واقسامه ومراتبه .

وَيُسْتَثْنَى مِنْ تَحْرِيمِ الْحَسَدِ مَا إِذَا كَانَتِ النِّعْمَةُ الَّتِي يَتَمَنَّى الْحَاسِدُ زَوَالَهَا عِنْدَ كَافِرٍ أَوْ فَاسِقٍ يَسْتَعِينُ بِهَا عَلَى مَعَاصِي اللهِ تَعَالَى. فتح الباري ۱/۱۶۷ ط الرياض. الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۴ حسد.

چې د قرآن کریم په سورة الفلق کې په خصوصیت سره د حسد کوونکي د شر نه د پناه غوښتلو حکم شوی ، الله تعالی فرمایي :

﴿ قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ۝ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ ۝ وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ اِذَا وَقَبَ ۝ وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِى الْعُقَدِ ۝ وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ اِذَا حَسَدَ ﴾ (۱)

ترجمه : ته اووایه : زه پناه غوارم په رب د صَبا سره . د شر د هغه څه نه چې ده پیدا کړي دي ( یعنی د شر د مخلوقاتو نه ) . او د شر د تیارې د شپې نه کله چې دا راخوَره شي . او د شر د پُوک وهونکو ښځو نه (کومې چې پُوکې وهي او چُف اَچوي ) په غوټو ( د سِحر ) کې . او د شر د حسد کوونکي نه کله چې هغه حسَد کوي .

**تشریح** : په دې سورة کې په " مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ " سره د ټولو مخلوقاتو د شر نه د پناه غوښتلو حُکم شوی خو بیا هم په خصوصیت سره د درې ( ۳ ) شیانو د شر نه د پناه غوښتلو حُکم شوی :

اول : د شپې چې کله تیاره راخوَره شي ؛ ځکه چې د شپې په تیاره کې د پیریانو ، شیطانانو ، مُوذي ځناورو ، د زمکې دننه په سوړو کې د خطرناکو زهریله شیانو ، د غلو ، ډاکوانو او دشمنانو خطره زیاته وي ، نو ځکه په خصوصیت سره د تیارې د شر نه د پناه غوښتلو حکم شوی .

دویم : د جادوګرو ښځو او جادوګرو سړو د شر نه په خصوصیت سره د پناه غوښتلو حکم شوی ؛ ځکه د جادو ضرر زیات وي ، انسان خبر هم نه وي او په ده باندې جادو شوې وي ، دا دوایانې استعمالوي خو فائده ورته نه ورکوي .

دریم : په خصوصیت سره د حسد کوونکو د شر نه پناه غوښتل شوی ځکه حسد کوونکي په آرام نه کیني ، هر وخت دا کوشش کوي چې دې بل کس ته ضرر اُورسوي . (۲)

---

(۱) سورة الفلق آیة ۱ تا ۵ .

(۲) معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفیع رحمه الله سورة الفلق .

اَلتَّاسِعَةُ هٰذِهٖ سُوْرَةٌ دَالَّةٌ عَلٰى اَنَّ اللهَ سُبْحَانَهٗ خَالِقُ كُلِّ شَرٍّ ، وَ اَمَرَ نَبِيَّهٗ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّتَعَوَّذَ مِنْ جَمِيْعِ الشُّرُوْرِ . فَقَالَ : مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ . وَجَعَلَ خَاتِمَةَ ذٰلِكَ الْحَسَدَ ، تَنْبِيْهًا ←←←←←←←←←←←←

د حسد د بَد والي د پاره همدا خبره کافي ده چې الله تعالى مسلمانانو ته د حسد کوونکي د شر نه د پناه غوښتلو حُکم کړی . (۱)

حضرت جبريل عليه السلام چې نبي عليه السلام ته د بيمارۍ په وخت کومه دُعا خودلې وه په هغې کې هم د حسد کوونکي د شر نه پناه غوښتل شوي وه . (۲)

## په قرآن کريم کې د حسد مذمت

حسد کوونکی چې د چا سره حسد کوي که هغه ته الله تعالى څه نعمتونه ورکوي نو دا حاسد ورباندې غمجَن کېږي ، او که په هغه باندې څه تکليفونه راځي نو دا ورباندې خوشحالېږي ، حالانکه په قرآن کريم کې د حسد مذمت بيان شوی ، الله تعالى فرمايي :

﴿ أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ﴾ . (۳)

---

← ← ← عَلَى عِلْمِهِ ، وَكَثْرَةِ ضَرَرِهِ . الجامع لأحكام القرآن ( تفسير القرطبي ) ۲۰/۲۵۹ سورة الفلق .

{ وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ } فَقَدْ أَمَرَنَا اللهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى بِالْإِسْتِعَاذَةِ مِنْ شَرِّ الْحَاسِدِ ، وَشَرُّهُ كَثِيْرٌ . فَمِنْهُ مَا هُوَ غَيْرُ مُكْتَسَبٍ وَهُوَ إِصَابَةُ الْعَيْنِ ، وَمِنْهُ مَا هُوَ مُكْتَسَبٌ كَسَعْيِهِ فِي تَعْطِيْلِ الْخَيْرِ عَنْهُ وَتَنْقِيْصِهِ عِنْدَ النَّاسِ ، وَرُبَّمَا دَعَا عَلَيْهِ أَوْ بَطَشَ بِهِ إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ . الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱۷ ص ۲۷۳ حسد .

(۱) قَالَ الْمَاوَرْدِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : اِعْلَمْ أَنَّ الْحَسَدَ خُلُقٌ ذَمِيْمٌ مَعَ إِضْرَارِهِ بِالْبَدَنِ وَفَسَادِهِ لِلدِّيْنِ ، حَتَّى لَقَدْ أَمَرَ اللهُ بِالْإِسْتِعَاذَةِ مِنْ شَرِّهِ . فَقَالَ تَعَالَى : { وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ } [ الفلق آية ۵ ] وَنَاهِيكَ بِحَالٍ ذٰلِكَ شَرًّا . ادب الدنيا والدين ۱/۲۶۹ الفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا قَالَتْ : كَانَ إِذَا اشْتَكَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَقَاهُ جِبْرِيْلُ عليه السلام . قَالَ : « بِاسْمِ اللهِ يُبْرِيْكَ ، وَمِنْ كُلِّ دَاءٍ يَشْفِيْكَ ، وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ، وَشَرِّ كُلِّ ذِيْ عَيْنٍ » . صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ الطِّبِّ وَالْمَرَضِ وَالرُّقَى رقم الحديث ۳۹ (۲۱۸۵) .

عَنْ أَبِي سَعِيْدٍ رضي الله عنه أَنَّ جِبْرِيْلَ عليه السلام أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : يَا مُحَمَّدُ اشْتَكَيْتَ ؟ فَقَالَ : « نَعَمْ » قَالَ : « بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيْكَ ، مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيْكَ ، مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ ، اَللهُ يَشْفِيْكَ بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيْكَ » . صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ الطِّبِّ وَالْمَرَضِ وَالرُّقَى رقم الحديث ۴۰ (۲۱۸۶)

(۳) النساء آية ۵۴ .

ترجمه: آيا دوی د خلقو سره په هغه څه باندې حسَد کوي کوم چې الله تعالی دوی ته د خپل فضل نه ورکړي دي ؟

## نبي عليه السلام د حسَد نه منع کړې

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

.... لَا تَحَاسَدُوْا، وَلَا تَبَاغَضُوْا، وَلَا تَدَابَرُوْا، وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا. (۱)

تاسو د يو بل سره حسَد مه کوئ، د يو بل سره بُغض مه کوئ، يو بل ته شا کرځولو سره تعلقات مه ختموئ ( يا: د يو بل غيبت مه کوئ (۲) )، او ټول مسلمانان د الله ﷻ بندګان او د يو بل ورونه شئ.

## حسد نيکۍ خوري (او ختموي)

د ابوداؤد شريف او مشکوة شريف حديث دی، رسولُ الله ﷺ فرمايي:

إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ. (۳)

تاسو ځان بچ کړئ د حسد نه ځکه حسد نيکي داسې خوري لکه څنګه چې اُور لرګي خوري.

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا يُنْهٰى عَنِ التَّحَاسُدِ وَالتَّدَابُرِ رقم الحديث ۶۰۶۶، صحيح مسلم كتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ تَحْرِيْمِ الظَّنِّ وَالتَّجَسُّسِ وَالتَّنَافُسِ وَالتَّنَاجُشِ وَنَحْوِهَا رقم الحديث ۲۸(۲۵۶۳)، سنن ابن ماجة باب الدعاء بالعفو والعافية رقم الحديث ۳۸۴۹.

(۲) (وَلَا تَدَابَرُوْا) أَيْ: لَا تُقَاطِعُوْا، وَلَا تُوَلُّوْا ظُهُوْرَكُمْ عَنْ إِخْوَانِكُمْ، وَلَا تُعْرِضُوْا عَنْهُمْ، مَأْخُوْذٌ مِنَ الدُّبُرِ، لِأَنَّ كُلًّا مِنَ الْمُتَقَاطِعَيْنِ يُوَلِّيْ دُبُرَهُ صَاحِبَهُ. وَقِيْلَ مَعْنَاهُ لَا تَغْتَابُوْا. مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۱۴۸.

(۳) سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي الْحَسَدِ رقم الحديث ۴۹۰۳، مشكوة المصابيح بَابُ مَا يُنْهٰى عَنْهُ مِنَ التَّهَاجُرِ وَالتَّقَاطُعِ وَاتِّبَاعِ العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۵۰۴۰(۱۴)، رياض الصالحين باب تحريم الحسد رقم الحديث ۲۷۰، الآداب للبيهقي باب ترك الحسد والأمر بالإستعاذة من شر حاسد اذا حسد رقم الحديث ۱۱۵، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۳۷۷ الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر، بلوغ المرام من ادلة الاحكام رقم الحديث ۱۴۹۳ باب الترهيب من مساوئ الأخلاق، الزواجر عن اقتراف الكبائر ۸۹/۱، كنز العمال رقم الحديث ۷۴۴۲ الحسد، رد المحتار (حاشيه ابن عابدين الشامي) ج۱ ص ۲۲ مقدمة.

(يعنی لکه څرنګې چې اُور لرګي سوَزوي او مکمل يې ختموي نو همدغه شان حسد هم د انسان نيکۍ ختموي).

د اُور دوه قِسمونه دي: يو قِسم هغه دی چې ډېر زيات وي او په يو ځل باندې هر څه اُوسوَزوي. او دويم قِسم هغه اُور دی چې په ظاهره باندې ډېر نه معلومېږي خو په قلار قلار هرڅه ختموي، حسد هم همدغه شان دی چې انسان پرې خبر نه وي خو دده ټول نېک اعمال ختموي.

**په حسد سره د نيکۍ ختميدووجه:** په حسد سره د نيکيو ختميدو وجه داده چې په چا کې حسد وي نو دا ددې په وجه د هغه بل کس غيبت کوي او دا ښکاره خبره ده چې د غيبت په وجه دده نيک اعمال ختميږي اود هغه چا په عمل نامه کې جمع کيږي چې د چا غيبت يې کړې وي. همدارنګې د حسد په وجه کله حسد کوونکی دې اَندازې ته اُورسي چې د محسود جان و مال او عزت ته نقصان اورسوي نو په دې سره خو خامخا دده نېک اعمال ختميږي او د محسود په عملنامه کې جمع کيږي. (۱)

## حسد او بُغض د دِين بُنياد ( او جَرړه ) ختموي

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الْأُمَمِ قَبْلَكُمْ: اَلْحَسَدُ وَالْبَغْضَاءُ، هِيَ الْحَالِقَةُ، لَا أَقُولُ تَحْلِقُ الشَّعْرَ وَلٰكِنْ تَحْلِقُ الدِّيْنَ. (۲)

(۱) (فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ): أَيْ يُفْنِيْ وَيُذْهِبُ طَاعَاتِ الْحَاسِدِ (كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ). لِأَنَّ الْحَسَدَ يُفْضِيْ بِصَاحِبِهِ إِلَى اغْتِيَابِ الْمَحْسُوْدِ وَنَحْوِهِ، فَيُذْهِبُ حَسَنَاتِهِ فِيْ عِرْضِ ذٰلِكَ الْمَحْسُوْدِ. فَيَزِيْدُ الْمَحْسُوْدُ نِعْمَةً عَلَى نِعْمَةٍ، وَالْحَاسِدُ حَسْرَةً عَلَى حَسْرَةٍ، فَهُوَ كَمَا قَالَ تَعَالَى: {خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةَ} [ الحج آية ۱۱]. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ۳۱۵۵/۸ في تشريح حديث ۵۰۳۹.

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ صِفَةِ الْقِيَامَةِ وَالرَّقَائِقِ وَالْوَرَعِ رقم الحديث ۲۵۱۰ قال الالباني: حسن، مشكوة المصابيح بَابُ مَا يُنْهَى عَنْهُ مِنَ التَّهَاجُرِ وَالتَّقَاطُعِ وَاتِّبَاعِ العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ رقم الحديث ۵۰۳۹(۱۳)، مسند احمد رقم الحديث ۱۴۳۰، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۹۰، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱۱۶، شعب الايمان رقم الحديث ۶۱۸۹، شرح السنة للبغوي رقم ۳۳۰۱، الترغيب والترهيب للمنذري رقم ۴۳۸۲.

په تاسو کې د مخکيني اُمتونو بيماري سرايت کړې دی ( يعنې په پټه در کې راغلې ده) او هغه بيماري حسد او بُغض دی ، چې دا خَرَوُونکې ده ( بيا نبي عليه السلام او فرمايل : ) زه دا نه وايم چې دا بيماري ويښتان خَروي بلکه دا د انسان دِين خَروي.

يعنې حسد او بُغض دومره خطرناک خصلتونه دي چې ددې په وجه د ا نسان دِين بربادېږي ، او لکه څرنګې چې په تېره چاړه ( او پَتري ) سره ويښتان د بيخ نه ختميږي نو همدغه شان په حسد او بُغض سره د انسان دِين د جَرړې نه ختميږي . (۱)

## د بنده په زړه کې اِيمان او حسد نه جمع کيږي

د نسائي شريف حديث دی ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

... لَا يَجْتَمِعَانِ فِيْ قَلْبِ عَبْدٍ الْإِيْمَانُ وَالْحَسَدُ . (۲)

د بنده په زړه کې اِيمان او حسد نه جمع کيږي .

## ډيرو کافرانو د حَسد په وجه اِيمان نه قبلولو

ډيرو کافرانو ته به حق معلوم شو او دا به ورته واضحه شوه چې دا يقيني پيغمبر دی خو بيا به يې هم د حسد په وجه اِيمان نه راوړو ، او ددې ډيرې نمونې موجود دي :

۱ . قارون ته ښه معلومه وه چې حضرت موسى عليه السلام د الله ﷻ برحق پيغمبر دی خو چې بيا يې هم اِيمان نه راوړو او د دوی خلاف يې سازشونه جوړول نو دا صرف د حسد په وجه وو .

۲ . د نبي عليه السلام د پيغمبرۍ نه مخکې به چې يهودو د نورو قومونو سره جنګونه کول نو دا دُعا به يې غوښته :

---

(۱) (اَلحَالِقَةُ) : أَيِ الْقَاطِعَةُ لِلْمَحَبَّةِ وَالْأُلْفَةِ وَالصِّلَةِ وَالدَّمْعِيَّةِ . وَالْخَصْلَةُ الْأُوْلَى هِيَ الْمُؤَدِّيَةُ إِلَى الثَّانِيَةِ . وَلِذَا قُدِّمَتْ (لَا أَقُوْلُ: تَحْلِقُ الشَّعْرَ) أَيْ: تَقْطَعُ ظَاهِرَ الْبَدَنِ ، فَإِنَّهُ أَمْرٌ سَهْلٌ (وَلٰكِنْ تَحْلِقُ الدِّيْنَ) . وَضَرَرُهُ عَظِيْمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ . قَالَ الطِّيْبِيُّ : أَيِ الْبَغْضَاءُ تَذْهَبُ بِالدِّيْنِ كَالْمُوْسٰى تَذْهَبُ بِالشَّعْرِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ۳۱۵۲/۸ في تشريح حديث ۵۰۳۸ .

(۲) سنن النسائي كِتَابُ الْجِهَادِ فَضْلُ مَنْ عَمِلَ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ عَلٰى قَدَمِهِ رقم الحديث ۳۱۰۹ قال الالباني: حسن ، كنز العمال كتاب الجهاد الترغيب فيه رقم الحديث ۱۰۵۶۶ ، نضرة النعيم ج ۱ ص ۳۳۲۲ .

" ياالله ! مونږ د تا نه د هغه آخري پيغمبر په وسيله باندې سوال کوو کوم چې به ته مونږ ته راليږې ، او د هغه آخري کتاب په وجه درنه سوال کوو چې ته به يې رانازلوې چې ته زمونږ مدد اوکړه " نو الله تعالى به د دوى مدد اوکړو .

خو کله چې نبي عليه السلام راغى نو دې يهودو ښه پيژندلو چې دا آخِري نبي دى خو بيا يې هم د حسد په وجه انکار اوکړو ، په قرآن کريم کې هم ددې بيان شته .(١)

٣ . ابوجهل ، ابولهب ، عُتبَه ، شيبه او نورو کافرانو ته ښه معلومه وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ريښتينى پيغمبر دى خو چې بيا يې هم اِيمان نه راوړو نو د حسد او تکبّر په وجه .

دوى به د نبي عليه السلام په باره کې دا ويل چې : دا خو يتيم او غريب هلک ؤ نو ده ته څنګه پيغمبري ملاؤ شوى او مونږ خو د قوم سرداران او مالداريو نو مونږ ته ولې پيغمبري ملاؤ نه شوه ؟ نو ددې حسد په وجه ورته اِيمان نصيب نه شو .(٢)

بلکه ډير کافران (لکه ابوجهل ، اَخنس وغيره ) داسې وو چې نبي عليه السلام به کله د شپې په مانځه کې د قرآن کريم تلاوت کولو نو دوى به ورته په پټه غوږ نيولې ؤ او ښه ورته معلومه وه چې دا يقيني پيغمبر دى خو د حسد په وجه يې ورباندې اِيمان نه راوړو .(٣)

(١) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا : كَانَتِ الْيَهُوْدُ قَبْلَ مَبْعَثِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِذَا قَاتَلُوْا قَوْمًا قَالُوْا : نَسْأَلُكَ بِالنَّبِيِّ الَّذِيْ وَعَدْتَنَا أَنْ تُرْسِلَهُ وَبِالْكِتَابِ الَّذِيْ تُنْزِلُهُ إِلَّا تَنْصُرُنَا. فَكَانُوْا يُنْصَرُوْنَ. فَلَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيْلَ عَرَفُوْهُ وَكَفَرُوْا بِهِ بَعْدَ مَعْرِفَتِهِمْ إِيَّاهُ . فَقَالَ تَعَالَى: وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا [ البقرة آية ٨٩] إِلَى قَوْلِهِ : أَنْ يَكْفُرُوْا بِمَا أَنْزَلَ اللهُ بَغْيًا [البقرة آية ٩٠] أَيْ حَسَدًا . تفسير الرازي (تفسير كبير ) ج ٣ ص ٦٢٦ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ١٩٠ .

(٢) قَالَتْ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لِلنَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ : جَاءَ أَبِيْ وَعَمِّيْ مِنْ عِنْدِكَ فَقَالَ أَبِيْ لِعَمِّيْ : مَا تَقُوْلُ فِيْهِ ؟ قَالَ: أَقُوْلُ : إِنَّهُ النَّبِيُّ الَّذِيْ بَشَّرَ بِهِ مُوْسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ . قَالَ : فَمَا تَرَى ؟ قَالَ: أَرَى مُعَادَاتَهُ أَيَّامَ الْحَيَاةِ. تفسير كبير ٣/ ٦٢٦ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩

(٣) دا پوره واقعه ددې (اصلاحي مدلل تقريرونه ) کتاب په پنځم جلد ص ٢٢٠ کې ذکر ده ، هلته يې اوګوره .
ابوالشمس علي عنه

## قابيل خپل ورور د حسد په وجه قتل کړو

په مخ د زمکه اوّلنۍ ګناه د حضرت آدم عليه السلام ځوي " قابيل " کړې وه چې خپل ورور " هابيل " یې په ناحقه قتل کړو ، او ددې قتلولو سبب هم حسد وُ ، چې قابيل د خپل ورور سره حسد اوکړو نو قتل یې کړو .(۱)

## په آسمان او زمکه کې د اوّلنۍ ګناه سبب " حسد " وُ

امام ماوردي رحمه الله د بعضې اَسلافو دا خبره رانقل کړی :

اَلْحَسَدُ أَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ بِهِ فِي السَّمَآءِ. يَعْنِيْ حَسَدَ إِبْلِيْس لِآدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ، وَأَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ بِهِ فِي الْأَرْضِ .يَعْنِيْ حَسَدَ ابْنِ آدَمَ لِأَخِيْهِ حَتّٰى قَتَلَهُ.(۲)

حسد اوّلنۍ ګناه ده چې ددې په وجه په آسمان کې د الله تعالى نافرماني اوشوه يعنى ابليس چې د تکبّر په وجه حضرت آدم عليه السلام ته سجده اونکړه نو ددې سبب هم حسد وُ، او حسد اوّلنۍ ګناه ده چې ددې په وجه په زمکه کې د الله تعالى نافرماني اوشوه يعنى قابيل د خپل ورور هابيل سره حسد اوکړو او هغه یې د حسد په وجه قتل کړو .

---

(۱) وَعَظَ بَعْضُ الْأَئِمَّةِ بَعْضَ الْأُمَرَاءِ فَقَالَ: إِيَّاكَ وَالْكِبْرَ فَإِنَّهُ أَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ. ثُمَّ قَرَأَ: {وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَآئِكَةِ اسْجُدُوْا لِآدَمَ} [البقرة آية ۳۴] الآيَةَ. وَإِيَّاكَ وَالْحِرْصَ فَإِنَّهُ أَخْرَجَ آدَمَ مِنَ الْجَنَّةِ أَسْكَنَهُ اللهُ جَنَّةً عَرْضُهَا السَّمٰوَاتُ وَالْأَرْضُ يَأْكُلُ فِيْهَا إِلَّا شَجَرَةً وَاحِدَةً نَهَاهُ عَنْهَا فَمِنْ حِرْصِهِ أَكَلَ مِنْهَا فَأَخْرَجَهُ اللهُ مِنَ الْجَنَّةِ. ثُمَّ قَرَأَ: {قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيْعًا} [طه آية ۱۲۳] الآيَةَ. وَإِيَّاكَ وَالْحَسَدَ فَإِنَّهُ الَّذِيْ حَمَلَ ابْنَ آدَمَ عَلٰى أَنْ قَتَلَ أَخَاهُ حِيْنَ حَسَدَهُ ثُمَّ قَرَأَ: {وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ} [المائدة آية ۲۷] .

وَقِيْلَ : كَانَ السَّبَبُ أَيْضًا فِيْ قَتْلِهِ لَهُ أَنَّ زَوْجَتَهُ أُخْتَ الْقَاتِلِ كَانَتْ أَجْمَلَ مِنْ زَوْجَةِ الْقَاتِلِ أُخْتِ الْمَقْتُوْلِ لِأَنَّ حَوَّاءَ وَلَدَتْ لِآدَمَ عِشْرِيْنَ بَطْنًا فِيْ كُلِّ بَطْنٍ اثْنَيْنِ ذَكَرًا وَأُنْثٰى، فَكَانَ آدَمُ صَلَّى اللهُ وَسَلَّمَ عَلٰى نَبِيِّنَا وَعَلَيْهِ يُزَوِّجُ أُنْثٰى كُلِّ بَطْنٍ لِذَكَرِ بَطْنٍ آخَرَ لَا لِذَكَرِ بَطْنِهَا. فَلَمَّا رَأٰى قَابِيْلُ أَنَّ زَوْجَةَ أَخِيْهِ هَابِيْلَ أَجْمَلُ حَسَدَهُ عَلَيْهَا حَتّٰى قَتَلَهُ . الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۹۲ اَلْكَبِيْرَةُ الثَّالِثَةُ الْغَضَبُ بِالْبَاطِلِ .

(۲) ادب الدنيا والدين ص ۲۶۹ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ . نضرة النعيم ج۱۰ ص ۴۴۲۷ الحسد .

همدا خبره فقيه ابو الليث سمرقندي رحمه الله او نورو علماؤ هم رانقل کړې . (١)

## د حسد کوونکي دُعا نه قبليږي

په " تفسير قرطبي " کې دا حديث ذکر دی ، نبي عليه السلام فرمايي :

ثَلَاثَةٌ لَا يُسْتَجَابُ دُعَاؤُهُمْ: آكِلُ الْحَرَامِ، وَمُكْثِرُ الْغِيْبَةِ، وَمَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهِ غِلٌّ أَوْ حَسَدٌ لِلْمُسْلِمِيْنَ . (٢)

درې ( ٣ ) کسان داسې دي چې د دوی دُعا نشي قبلولی : ١ . حرام خور ، ٢ . ډېر غيبت کوونکی ، ٣ . او د چا په زړه کې چې د مسلمانانو سره بُغض او حسد وي .

## حسد کوونکی د الله ﷻ د نعمتونو سره دُشمني کوونکې دی

رسولُ الله ﷺ اوفرمايل : إِنَّ لِنِعَمِ اللهِ أَعْدَاءً .

بيشکه د الله تعالی د نعمتونو دشمنان شته .

د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوشوه چې دا څوک دي ؟

دوی ورته اوفرمايل :

اَلَّذِيْنَ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ .

دا هغه خلق دي چې دوی د هغه خلقو سره حسد کوي کومو ته چې الله تعالی په خپل

---

(١) په تنبيه الغافلين کې دا خبره په دې انداز ذکر ده ، قَالَ بَعْضُ الْحُكَمَاءِ: إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ، فَإِنَّ الْحَسَدَ أَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ فِي السَّمَاءِ، وَأَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ فِي الْأَرْضِ. وَإِنَّمَا أَرَادَ بِقَوْلِهِ أَوَّلُ ذَنْبٍ عُصِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ فِي السَّمَاءِ يَعْنِيْ إِبْلِيْسَ حِيْنَ أَبٰى أَنْ يَسْجُدَ لِآدَمَ، وَقَالَ: { خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَارٍ وَخَلَقْتَهُ مِنْ طِيْنٍ } [ الأعراف آية ١٢ ] فَحَسَدَهُ فَلَعَنَهُ اللهُ تَعَالٰى بِذٰلِكَ. وَأَمَّا الَّذِيْ عُصِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ فِي الْأَرْضِ فَهُوَ قَابِيْلُ بْنُ آدَمَ حِيْنَ قَتَلَ أَخَاهُ هَابِيْلَ حَسَدًا. وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالٰى: { وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ } [ المائدة آية ٢٧ ] . تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين ص ١٦٨ باب الحسد . هكذا في تفسير القرطبي ج٢٠ ص ٢٥٩ سورة الفلق في تشريح آية ٥ . تفسير كبير ج٣ ص ٦٢٥ ، الزواجر ص ٩٢ .

(٢) الجامع لأحكام القرآن ( تفسير القرطبي ) ٢٠/٢٦٠ سورة الفلق في تفسير آية ٥ ، تنبيه الغافلين ص ١٧٩ باب الحسد .

فضل سره نعمتونه ورکړي دي. (١)

## حسد کوونکی د الله تعالی په تقسيم باندې راضي نه وي

حسد په حقيقت کې د الله تعالی په فيصله او د هغه په حکمت باندې اعتراض کول دي (چې الله ﷻ هغه کس ته دا نعمت ولې ورکړی او ماته يې ولې ندې راکړی ؟ )

حضرت زکريا عليه السلام فرمايي چې الله تعالی فرمايلي دي :

اَلْحَاسِدُ عَدُوٌّ لِنِعْمَتِيْ ، مُتَسَخِّطٌ لِقَضَائِيْ ، غَيْرُ رَاضٍ بِقِسْمَتِي الَّتِيْ قَسَمْتُ بَيْنَ عِبَادِيْ. (٢)

حسد کوونکی زما د نعمتونو دښمن وي ، زما په فيصله ناراضه وي ، ما چې د بندګانو په مينځ کې کوم تقسيم کړی په هغې راضي نه وي. (٣)

---

(١) قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: إِنَّ لِنِعَمِ اللهِ أَعْدَاءً . قِيْلَ : وَمَا أُولٰئِكَ ؟ قَالَ : اَلَّذِيْنَ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ . تفسير الرازي (تفسير كبير ) ٣/ ٦٤٥ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، احياء علوم الدين ج٣ ص١٨٨ باب ذمّ الحسد ، تنبيه الغافلين ص ١٧٨ باب الحسد.

وفي رواية : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ لِأَهْلِ النِّعَمِ حُسَّادًا، فَاحْذَرُوْهُمْ . المعجم الاوسط رقم الحديث ٧٢٧٧ ، مجمع الزوائد باب كتمان الحوائج رقم الحديث ١٣٧٣٨ .

په تفسير قرطبي کې هم ذکر دي : اَلْحَاسِدُ عَدُوُّ نِعْمَةِ اللهِ . حسد کوونکی د الله ﷻ د نعمتونو دښمن دی . تفسير القرطبي ٢٠ / ٢٦٠ سورة الفلق في تفسير آية ٥ .

(٢) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج١ ص ٩١ اَلْكَبِيْرَةُ الثَّالِثَةُ الْغَضَبُ بِالْبَاطِلِ . شعب الايمان رقم الحديث ٦٢١٣ ، احياء علوم الدين ج٣ ص١٨٨ باب ذمّ الحسد ، تفسير القرطبي ج٥ ص ٢٥١ سورة النساء في تفسير آية ٥٤ ، الدر المنثور في التفسير بالمأثور ج٨ ص ٦٩٢ سورة الفلق في تفسير آية ٥ .

(٣) يو شاعر وايي : أَلَا قُلْ لِمَنْ ظَلَّ لِيْ حَاسِدًا ✿ أَتَدْرِيْ عَلٰى مَنْ أَسَأْتَ الْأَدَبْ

أَسَأْتَ عَلَى اللهِ فِيْ حُكْمِهٖ ✿ إِذَا أَنْتَ لَمْ تَرْضَ لِيْ مَا وَهَبْ . تفسير القرطبي ج٥ ص ٢٥١ .

دا اشعار داسې هم نقل دي : يَا حَاسِدًا لِيْ عَلٰى نِعْمَتِيْ ✿ أَتَدْرِيْ عَلٰى مَنْ أَسَأْتَ الْأَدَبْ ؟

أَسَأْتَ عَلَى اللهِ فِيْ حُكْمِهٖ ✿ لِأَنَّكَ لَمْ تَرْضَ لِيْ مَا وَهَبْ

فَأَخْزَاكَ رَبِّيْ بِأَنْ زَادَنِيْ ✿ وَسَدَّ عَلَيْكَ وُجُوْهَ الطَّلَبْ . نضرة النعيم ج ١٠ ص ٤٤٢٨ الحسد .

همداسې اشعار په تفسير القرطبي ج٥ ص ٢٥١ کې هم شته .

## حسد كوونكى ګويا د الله ﷻ سره جګړه كوي

په تفسير قرطبي او تنبيه الغافلين كې ذكر دي: بعضې علماء فرمايي:

بَارَزَ الحَاسِدُ رَبَّهُ مِنْ خَمْسَةِ أَوْجُهٍ.

حسد كوونكى انسان د خپل رَب سره په پنځه طريقو باندې جګړه كوي:

اول: الله تعالى چې نورو خلقو ته كوم نِعمت وركړى او په هغوى دا نِعمت ظاهر شي نو دا ورسره حسَد كوي.

دويم: دا د خپل رَب په تقسيم باندې راضي نه وي. ګويا دا خپل رَب ته داسې وايي:

لِمَ قَسَمْتَ هٰذِهِ الْقِسْمَةَ؟ تا داسې تقسيم ولې كړى؟ (يعني هغه فلانكي ته دې دا نِعمت ولې وركړى؟ نو دا په الله تعالى باندې اعتراض كول هم دي).

دريم: دا د الله ﷻ په فضل باندې بُخل كوونكى وي. يعنى الله تعالى چې چا ته اُوغواړي نو خپل فضل وركوي خو حسَد كوونكى د الله تعالى په فضل باندې بُخل كوي.

څلورم: دا د الله تعالى دوستان رَسواء كوي، يا د دوى د رَسواء كولو اِراده لري، ځكه حسد كوونكى دا تمنّا كوي چې د الله ﷻ د دوستانو نه دا نِعمت زائل شي.

پنځم: دا په دې حسد سره د خپل دُشمن (شيطان) مدد كوي. (۱)

## په چا كې چې قناعت وي په هغه كې حسد هيڅ كله نه راځي

د بعضې حُكماؤ خبره ده:

مَنْ رَضِيَ بِقَضَاءِ اللهِ تَعَالَى لَمْ يَسْخَطْهُ أَحَدٌ، وَمَنْ قَنَعَ بِعَطَائِهِ لَمْ يَدْخُلْهُ حَسَدٌ. (۲)

---

(۱) قَالَ بَعْضُ الحُكَمَاءِ: بَارَزَ الحَاسِدُ رَبَّهُ مِنْ خَمْسَةِ أَوْجُهٍ: أَحَدُهَا: أَنَّهُ أَبْغَضَ كُلَّ نِعْمَةٍ ظَهَرَتْ عَلَى غَيْرِهِ. وَثَانِيهَا: أَنَّهُ سَاخِطٌ لِقِسْمَةِ رَبِّهِ، كَأَنَّهُ يَقُوْلُ: لِمَ قَسَمْتَ هٰذِهِ الْقِسْمَةَ؟ وَثَالِثُهَا: أَنَّهُ ضَادَّ فِعْلَ اللهِ، أَيْ إِنَّ فَضْلَ اللهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ، وَهُوَ يَبْخَلُ بِفَضْلِ اللهِ. وَرَابِعُهَا: أَنَّهُ خَذَلَ أَوْلِيَاءَ اللهِ، أَوْ يُرِيدُ خِذْلَانَهُمْ وَزَوَالَ النِّعْمَةِ عَنْهُمْ. وَخَامِسُهَا أَنَّهُ أَعَانَ عَدُوَّهُ إِبْلِيسَ. الجامع لاحكام القرآن (تفسير القرطبي) ۲۰/۲٦۰ سورة الفلق. تنبيه الغافلين ج۱ ص ۱۸۲ باب الحسد؛ الموسوعة الفقهية ج۱۷ ص۲۷۳ حسد.

(۲) ادب الدنيا والدين ص ۲٦۹ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۴۲۷ الحسد.

څوک چې د الله ﷻ په فيصله باندې راضي وي نو هيڅوک به ده لره ناراضه (غصه) نکړي، او څوک چې د الله ﷻ په ورکړه باندې قناعت (صبر) کوي نو په ده کې به هيڅ کله حسد داخل نشي.

## حسد کوونکې په هر ځاى کې نقصاني دى

علماء ليکي : اَلْحَاسِدُ لَا يَنَالُ فِي الْمَجَالِسِ إِلَّا نَدَامَةً . وَلَا يَنَالُ عِنْدَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا لَعْنَةً وَبَغْضَاءَ . وَلَا يَنَالُ فِي الْخَلْوَةِ إِلَّا جَزَعًا وَغَمًّا . وَلَا يَنَالُ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا حُزْنًا وَاحْتِرَاقًا . وَلَا يَنَالُ مِنَ اللّٰهِ إِلَّا بُعْدًا وَمَقْتًا. (۱)

حسد کوونکى د خلقو په مجلسونو کې صرف پښيمانتيا (او ذِلت) حاصلوي، د فرښتو د طرفه صرف لعنت او بُغض حاصلوي، ځان له چې ناست وي نو صرف جَزعه (فرياد) او غم حاصلوي، په آخرت کې به صرف خفګان او د جهنم په اُور سوَزېدل حاصلوي، او د الله ﷻ د طرفه صرف د هغه د رحمت نه لرې کېدل او د هغه غضب حاصلوي. (يعنى حسد کوونکى به په هر ځاى کې د ذِلت، رَسوائي، د فرښتو د لعنت او د الله تعالى د غضب سره مخامخ کېږي).

## حسد خطرناکه رُوحاني بيماري ده

علامه ابن مُعتز رحمه الله فرمايي :

اَلْحَسَدُ دَاءُ الْجَسَدِ. (۲) حسد د بدن بيماري ده.

بعضې حُکماء فرمايي : اَلْحَسَدُ جُرْحٌ لَا يَبْرَأُ. (۳)

حسد داسې زخم دى چې دا نه جوړېږي.

---

(۱) تفسير القرطبي ۲۶۰/۲۰ سورة الفلق، تفسير الرازي ج۳ ص ٦۴٦ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹، تنبيه الغافلين ج۱ ص۱۸۲ باب الحسد، احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۸۹ بيان ذمّ الحسد، الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۹۳، نضرة النعيم ج۱۰ ص ۴۴۲۷ الحسد، الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص۲۷۴ حسد.

(۲) ادب الدنيا والدين ص ۲۷۳ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ، نضرة النعيم ج۱۰ ص ۴۴۲۷ الحسد

(۳) احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۹ كتاب ذم الغضب والحقد والحسد، نضرة النعيم ج۱۰ ص ۴۴۲۷ الحسد

# د حسد نقصان اول حسد کوونکي ته رسيږي

حسد داسې خطرناکه بيماري ده چې ددې نقصان اول حسد کوونکي ته رَسي ، چې د چا سره حسد کولې شي هغه اکثر خبر هم نه وي او حاسِد د حسد په وجه خپل زړه خوري .

۱ . حضرت معاويه ﷺ فرمايي :

لَيْسَ فِيْ خِصَالِ الشَّرِّ أَعْدَلُ مِنَ الْحَسَدِ يَقْتُلُ الْحَاسِدَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الْمَحْسُوْدِ . (۱)

په بَدترينو صفتونو کې د حسد په شان برابر بل خراب صفت نشته ځکه محسود ته د ضرر رسيدلو نه مخکې دا حسد کوونکی قتلوي .

۲ . فقيه ابو الليث سمرقندي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د حسد نه خطرناک بل څيز نشته ځکه محسود ته د څه تکليف رسيدلو نه مخکې پخپله حاسِد ته پنځه (۵) سزاګانې رسيږي:

اول : حسد کوونکی په داسې غم کې مبتلاء کيږي چې بيا نه ختميږي .

دويم : په داسې مصيبت کې اَخته کيږي چې هيڅ اَجر ورته پرې نه ملاويږي .

دريم : د داسې مذمّت مستحق کيږي چې هيڅوک په دې سره دده صفت نه کوي .

څلورم : الله ﷻ ورنه ناراضه وي .

پنځم : په ده باندې د توفيق دروازې بندولې شي . (۲)

---

(۱) ادب الدنيا والدين ص ۲۷۰ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

وفي رِوَايةٍ : عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ ، أَنَّهُ قَالَ لِابْنِهِ : يَا بُنَيَّ ! إِيَّاكَ وَالْحَسَدَ فَإِنَّهُ يَتَبَيَّنُ فِيْكَ قَبْلَ أَنْ يَتَبَيَّنَ فِيْ عَدُوِّكَ . تنبيه الغافلين ج۱ ص۱۷۷ باب الحسد .

حضرت معاويه ﷺ خپل ځوي ته اوفرمايل ، اې بچيه ! خپل ځان د حسد نه اُوساته ځکه دا ستا دُشمن ته د ضرر رسولو نه مخکې تا ته ضرر دَر رسوي .

(۲) لَيْسَ شَيْءٌ مِنَ الشَّرِّ أَضَرَّ مِنَ الْحَسَدِ ، لِأَنَّهُ يَصِلُ إِلَى الْحَاسِدِ خَمْسُ عُقُوْبَاتٍ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الْمَحْسُوْدِ مَكْرُوْهٌ : أَوَّلُهَا : غَمٌّ لَا يَنْقَطِعُ . وَالثَّانِي : مُصِيْبَةٌ لَا يُؤْجَرُ عَلَيْهَا . وَالثَّالِثُ : مَذَمَّةٌ لَا يُحْمَدُ بِهَا . وَالرَّابِعُ : يَسْخَطُ عَلَيْهِ الرَّبُّ . وَالْخَامِسُ : تُغْلَقُ عَلَيْهِ أَبْوَابُ التَّوْفِيْقِ . تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين ج۱ ص۱۷۷ باب الحسد .

۳ . د يو حكيم وينا ده : يَكْفِيْكَ مِنَ الْحَاسِدِ أَنَّهُ يَغْتَمُّ فِيْ وَقْتِ سُرُوْرِكَ . (۱)
ستا د پاره د حاسد نه همدا خبره كافي ده چې هغه ستا د خوشحالى په وخت باندې غَمجن وي .
(يعنى تاته چې الله تعالى څه انعام دركړي نو ته خوشحاله يې او هغه د خپل حسَد په وجه غمجَن وي چې ده ته ولې دا اِنعام وركړې شو ؟) .

٤ . حسد كوونكى په حقيقت كې په خپل ځان باندې ظلم كوونكى وي ، ځكه د حسد په وجه دا هميشه په غم كې مبتلاء وي . (۲)

## د حسد په اُور باندې انسان په خپله سوَزي

د حسد مثال د اُور په شان دى ، او د اُور خاصيت دادى چې كله ديته بل څيز ( لرګي وغيره ) ملاؤ شي نو هغه سوَزوي ، خو چې كله ورته بل څيز ملاؤ نشي نو بيا د اُور يوه حصه خپله بله حصه سوزول شروع كړي تر دې چې دا اُور هم ختم شي .

همدغه شان د حسد مثال هم دى چې اول خو حاسد دا كوشش كوي چې د بل نه نِعمت واخيستل شي او هغه ته ضرر اُورسي ، خو چې كله په دې كې كامياب نشي نو بيا په خپله د حسد په اُور كې سوَزي او دُنيا و آخرت دواړه يې تباه شي . (۳)

---

(۱) وَقَالَ رَجُلٌ لِشُرَيْحٍ الْقَاضِي : إِنِّيْ لَأَحْسُدُكَ عَلَى مَا أَرَى مِنْ صَبْرِكَ عَلَى الْخُصُوْمِ ، وَ وُقُوْفِكَ عَلَى غَامِضِ الْحُكْمِ . فَقَالَ : مَا نَفَعَكَ اللّٰهُ بِذٰلِكَ وَلَا ضَرَّنِيْ . ادب الدنيا والدين ص ۲۷۰ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

(۲) قَالَ بَعْضُ الْأُدَبَاءِ : مَا رَأَيْتُ ظَالِمًا أَشْبَهَ بِمَظْلُوْمٍ مِنَ الْحَسُوْدِ نَفَسٌ دَائِمٌ ، وَهَمٌّ لَازِمٌ ، وَقَلْبٌ هَائِمٌ .
فَأَخَذَهُ بَعْضُ الشُّعَرَاءِ فَقَالَ : إِنَّ الْحَسُوْدَ الظَّلُوْمَ فِيْ كَرَبٍ ✡ يَخَالُهُ مَنْ يَرَاهُ مَظْلُوْمًا
ذَا نَفَسٍ دَائِمٍ عَلَى نَفَسٍ ✡ يُظْهِرُ مِنْهَا مَا كَانَ مَكْتُوْمًا . ادب الدنيا والدين ص ۲٦۹ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۳۲۷ الحسد ، تنبيه الغافلين ص ۱۷۹ باب الحسد .

وَقَالَ أَعْرَابِيٌّ : مَا رَأَيْتُ ظَالِمًا أَشْبَهَ بِمَظْلُوْمٍ مِنْ حَاسِدٍ ، إِنَّهُ يَرَى النِّعْمَةَ عَلَيْكَ نِقْمَةً عَلَيْهِ . الزواجر ج ۱ ۹۳

(۳) وَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُعْتَزِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى : اِصْبِرْ عَلَى كَيْدِ الْحَسُوْدِ ✡ فَإِنَّ صَبْرَكَ قَاتِلُهُ
فَالنَّارُ تَأْكُلُ بَعْضَهَا ✡ إِنْ لَمْ تَجِدْ مَا تَأْكُلُهُ . ادب الدنيا والدين ص ۲۷۰ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

# د حسد کوونکي مثال

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د حسد کوونکي مثال د هغه چا په شان دی چې هغه د دُشمن ويشتلو دپاره هغه طرف ته کاڼړي أوولي ليکن دُشمن په کاڼړي أو نه لږي ، دا کاڼړي واپس راشي دده خې سترګه وربانديې أولږي او سترګه يې رَنده شي ، دې کس ته نوره هم غصه ورشي او دوباره په زوره باندې هغه طرف ته کاڼړي وَرأوولي خو په دې کاڼړي باندې هم هغه أو نه لږي واپس راشي او دده چَپ طرف سترګه وربانديې أولږي ، رَنده شي .

بيا بل کاڼړي راواخلي ، دُشمن طرف ته يې أوولي خو هغه هم واپس راشي او دده سَر وربانديې أولږي او مات شي ، همدا شان دا کس په دُشمن باندې کاڼړي وَرأولي خو دا کاڼړي واپس راځي او همدا پرې زخمي کيږي ، دُشمن يې صحيح سلامت وي ، هغه دده ته ګوري او خاندي . همدغه شان حال د حسد کوونکي هم دی چې دا د چا سره حسد کوي هغه اکثر خبر هم نه وي او دا په دې حسد سره په خپله سوَزي ، بيا خاصکر چې کله د حسد په وجه دا د هغه غيبت شروع کړي يا ورپسې دروغ أووايي يا هغه ته په لاس وغيره ضرر أورسوي نو په دې سره خو بيا ده ته نور هم ډير نقصان رسي ځکه دده د عملنامې نه نېک اعمال د هغه بل کس عملنامې ته ورځي . (۱)

همدا سې خبره امام رازي رحمه الله په " تفسير کبير " کې هم ذکر کړی . (۲)

---

(۱) کيمياى سعادت للغزالي الحسد.

(۲) وَقَدْ ظَهَرَ مِنْ هٰذِهِ الْوُجُوْهِ أَيُّهَا الْحَاسِدُ أَنَّكَ بِمَثَابَةِ مَنْ يَرْمِيْ حَجَرًا إِلٰى عَدُوِّهِ لِيُصِيْبَ بِهٖ مَقْتَلَهٗ فَلَا يُصِيْبُهٗ، بَلْ يَرْجِعُ إِلٰى حَدَقَتِهِ الْيُمْنٰى فَيَقْلَعُهَا فَيَزْدَادُ غَضَبُهٗ فَيَعُوْدُ وَيَرْمِيْهِ ثَانِيًا أَشَدَّ مِنَ الْأَوَّلِ فَيَرْجِعُ الْحَجَرُ عَلٰى عَيْنِهِ الْأُخْرٰى فَيُعْمِيْهِ فَيَزْدَادُ غَيْظُهٗ وَيَعُوْدُ ثَالِثًا فَيَعُوْدُ عَلٰى رَأْسِهٖ فَيَشُجُّهٗ وَعَدُوُّهٗ سَالِمٌ فِيْ كُلِّ الْأَحْوَالِ، وَالْوَبَالُ رَاجِعٌ إِلَيْهِ دَائِمًا وَأَعْدَاؤُهٗ حَوَالَيْهِ يَفْرَحُوْنَ بِهٖ وَيَضْحَكُوْنَ عَلَيْهِ، بَلْ حَالُ الْحَاسِدِ أَقْبَحُ مِنْ هٰذَا لِأَنَّ الْحَجَرَ الْعَائِدَ لَمْ يُفَوِّتْ إِلَّا الْعَيْنَ وَلَوْ بَقِيَتْ لَفَاتَتْ بِالْمَوْتِ، وَأَمَّا حَسَدُهٗ فَإِنَّهٗ يَسُوْقُ إِلٰى غَضَبِ اللّٰهِ وَإِلَى النَّارِ، فَلَأَنْ تَذْهَبَ عَيْنُهٗ فِي الدُّنْيَا خَيْرٌ لَهٗ مِنْ أَنْ يَبْقٰى لَهٗ عَيْنٌ وَيَدْخُلَ بِهَا النَّارَ فَانْظُرْ كَيْفَ انْتَقَمَ اللّٰهُ مِنَ الْحَاسِدِ إِذَا أَرَادَ زَوَالَ النِّعْمَةِ عَنِ الْمَحْسُوْدِ فَمَا أَزَالَهَا عَنْهُ ثُمَّ أَزَالَ نِعْمَةَ الْحَاسِدِ تَصْدِيْقًا لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: ﴿وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهٖ﴾ [فاطر آية ۴۳] . تفسير كبير ج۳ ص۶۳۶ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ ،

# د بل سره د حسد کولو خطرناکه نتيجه

د حسد سزا حسد کوونکي ته په خپله رسي:

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په ''اَلزّواجر'' کې، او امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په ''احياء العلوم'' کې دا واقعه رانقل کړې چې يو نېک سړی به (په هره ورځ) د بادشاه سره په څنګ کې ناست ؤ، او بادشاه ته به يې دا نصيحت کولو:

أَحْسِنْ إِلَى الْمُحْسِنِ بِإِحْسَانِهٖ فَإِنَّ الْمُسِيْءَ سَتَكْفِيْهِ إِسَاءَتُهٗ.

نيکي کوونکي سره د هغه د نيکۍ په وجه احسان کوه ځکه بدکِردار ته د هغه بدکِرداري کافي ده.

يو جاهل کس چې دا اُوليد چې دا نېک کس بادشاه ته ډير مُقرّب دی نو حسد يې ورسره اوکړو، او دده د قتلولو د پاره يې حِيله جوړه کړه، نو بادشاه ته يې دا شيطاني (چُغل خُوري) اوکړه چې دا تاته کوم کس نصيحت کوي هغه دا وايي چې:

'' د بادشاه د خُلې نه ګنده بُوئ ځي''.

(بادشاه ورته وويل: ماته به څنګه دا معلومه شي چې ته په دې خبره کې رېښتينې يې؟ ده ورته وويل:) ددې علامه داده چې ته کله هغه ته ورنزدې شې نو هغه به په خپله پُوزه باندې خپل لاس کېږدي ددې د پاره چې ستا د خُلې بَدبوئي محسوس نکړي.

بادشاه ده ته وويل: ته اوس لاړ شه زه به ددې تحقيق اوکړم.

بيا دا جاهل (حسد کوونکی) کس چې کله د بادشاه د دَربار نه راأووت نو دې نېک سړي ته راغی او د خوراک دعوت يې ورته ورکړو، کله يې چې کور ته د خوراک د پاره بوتللو نو په خوراک کې يې ورباندې ډيره اُوګه اُوخوړله، دا نېک سړی چې د خوراک نه فارغه شو او بهر را اُووت (بادشاه دا خپل مجلس ته راأوغوښت)، نو دا بادشاه ته ورغی، او هماغه مخکينۍ خبره يې بيا اوکړه:

أَحْسِنْ إِلَى الْمُحْسِنِ بِإِحْسَانِهٖ فَإِنَّ الْمُسِيْءَ سَتَكْفِيْهِ إِسَاءَتُهٗ.

نيکي کوونکي سره د هغه د نيکۍ په وجه احسان کوه ځکه بدکِردار ته د هغه بدي کافي ده.

بادشاه ده ته وويل : اُدْنُ مِنِّيْ. ماته رانزدې شه.

دا چې کله بادشاه ته ورنزدې شو نو ده په خپله پوزه باندې لاس کيښود ددې د پاره چې بادشاه ته د اُوګې بدبوئي ورنشي .

بادشاه چې دده دا حرکت اُوليد نو د ځان سره يې په زړه کې وويل :

ماته چې هغه فلانکي کس دده په باره کې کومه خبره کړې وه. هغه ريښتيا ويلي وو .

ددې بادشاه دا عادت وُ چې ده به د چا د پاره څه خط اوليکل نو په هغې کې به يې د هغه کس د پاره ډير اِنعام او روپې ليکلې وې .

نو بادشاه دده د پاره يو خط اوليکل ، په دې خط کې بادشاه خپل يو عامِل ته (پَټ) ليکلي وو :

إِذَا أَتَاكَ صَاحِبُ كِتَابِيْ هٰذَا فَاذْبَحْهُ وَاسْلُخْهُ وَاحْشُ جِلْدَهٗ تِبْنًا وَابْعَثْ بِهٖ إِلَيَّ .

چې کله تاته ددې خط واله کس درشي نو سَر ورنه کټ کړه ، پوستکې ورنه اُوباسه ، بيا يې پوستکې د بُوسو نه ډک کړه او ماته يې رااُوليږه .

بادشاه دا خط مُهر کړو او ده ته يې ورکړو او ورته وې ويل : دا زما فلانکي عامِل ته وَروړه . کله چې دې نيک سړي دا خط راواخيست او د بادشاه د دَربار نه رااُووت نو دغه حسد کوونکی ورسره مخامخ شو ، پوښتنه يې ورنه اوکړه :

دا خط د څه شي دی ؟ ده ورته وويل : دا بادشاه زما د پاره اِنعام اوليکل .

هغه ورته وويل : دا ماله راکړه (ځکه دې حسد کوونکي ته پته وه چې بادشاه چاته هم خط ورکړی نو په دې کې ددې کس د پاره اِنعام ليکلې وی نو ځکه يې ورنه اُوغوښت) ، دې نيک کس دا خط ده ته ورکړو .

دې حاسِد دا خط واخيست او هغه عامِل ته ورغی (ددې د پاره چې اِنعام راکړي) ، عامِل چې خط کلاوُ کړو او وې کتلو نو ده ته يې وويل :

ستا په دې خط کې دا ليکلي دي چې زه تا قتل کړم او ستا څرمن د بُوسو نه ډکه کړم .

ده ورته وويل : دا خط زما په باره کې ندی ، ته زما په باره کې د الله ﷻ نه اُويريږه ، ماته مهلت راکړه چې زه بادشاه ته ورشم (او د هغه نه پوښتنه اوکړم) .

عامل ورته وويل : د بادشاه په خط کې واپس کول نشته . نو عامل همدا قتل کړو ، ځرمن يې ورنه اوويسته ، د بُوسو نه يې ډکه کړه او بادشاه ته يې وَرَاوليږله .

دا نيک سړی په صبا باندې د خپل عادت موافق بيا د بادشاه دربار ته ورغی ، او د مخکې په شان خبره يې ورته اوکړه :

أَحْسِنْ إِلَى الْمُحْسِنِ بِإِحْسَانِهِ فَإِنَّ الْمُسِيْءَ سَتَكْفِيْهِ إِسَاءَتُهُ .

نيکي کوونکي سره د هغه د نيکۍ په وجه احسان کوه ځکه بدکِردار ته د هغه بدي کافي ده .

بادشاه چې دا روغ اوليد نو تعجّب يې اوکړو او پوښتنه يې ورنه اوکړه : په هغه خط دې څه اوکړل ؟ ده ورته وويل : ( کله چې زه ستا د دَربار نه اُووتم نو ) ما سره هغه فلانکی کس ملاو شو هغه د ما نه هغه خط اوغوښت نو ما ورله ورکړو . بادشاه د ده نه پوښتنه اوکړه :

إِنَّهُ ذَكَرَ لِيْ أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنِّيْ أَبْخَرُ .

هغه ماته دا خبره کړې وه چې ته زما په باره کې دا ګمان کوې چې زما د خُلې نه بَدبوئي ځي.

ده ورته وويل : ما دا خبره هيڅ کله نده کړې .

بادشاه ورته وويل : بيا په هغه ورځ ( چې ما درته وويل چې رانزدې شه نو ) تا ولې په خپله پُوزه او خُله باندې لاس کيښود ؟ ده ورته وويل : هغه په ما باندې اوګه خوړلې وه نو ما دا بده اوګڼله چې ته د اوګې بُوئي محسوس کړې .

بادشاه ورته وويل : صَدَقْتَ اِرْجِعْ إِلَى مَكَانِكَ فَقَدْ كَفَى الْمُسِيْءَ إِسَاءَتُهُ .

تا ريښتيا وويل ، ته خپل کور ته ( په آمان ) لاړ شه ، او بدکِردار ته خپله بدي کافي شوه ( يعنی تا چې به په هره ورځ کومه خبره کوله چې " بدکِردار ته خپله بدي کافي ده " نو همدا اسې اوشو ) .(۱)

---

(۱) كَانَ بَعْضُ الصُّلَحَاءِ يَجْلِسُ بِجَانِبِ مَلِكٍ يَنْصَحُهُ وَيَقُوْلُ لَهُ : أَحْسِنْ إِلَى الْمُحْسِنِ بِإِحْسَانِهِ فَإِنَّ الْمُسِيْءَ سَتَكْفِيْهِ إِسَاءَتُهُ . فَحَسَدَهُ عَلَى قُرْبِهِ مِنَ الْمَلِكِ بَعْضُ الْجَهَلَةِ وَأَعْمَلَ الْحِيْلَةَ عَلَى قَتْلِهِ . فَسَعَى بِهِ لِلْمَلِكِ فَقَالَ لَهُ : إِنَّهُ يَزْعُمُ أَنَّكَ أَبْخَرُ ، وَأَمَارَةُ ذٰلِكَ أَنَّكَ إِذَا قَرُبْتَ مِنْهُ يَضَعُ يَدَهُ عَلَى أَنْفِهِ لِئَلَّا يَشُمَّ رَائِحَةَ الْبَخَرِ . فَقَالَ : لَهُ انْصَرِفْ حَتَّى أَنْظُرَ . فَخَرَجَ فَدَعَا الرَّجُلَ لِمَنْزِلِهِ وَأَطْعَمَهُ ثُوْمًا فَخَرَجَ الرَّجُلُ مِنْ عِنْدِهِ ←←←← ←←←←←←

# حاسِد صرف په دې خوشحاليږي چې د بل نه نعمت ختم شي

۱ . حضرت معاويه ﷺ فرمايي :

كُلُّ النَّاسِ أَقْدِرُ عَلَى رِضَاهُ إِلَّا حَاسِدَ نِعْمَةٍ فَإِنَّهُ لَا يُرْضِيْهِ إِلَّا زَوَالُهَا . (۱)

زه د هر سړي په رَضا کولو باندې قادِريم مګر کوم کس چې د نِعمت په وجه حسد کوي د هغه په رَضا کولو باندې قادِر نه يم ځکه دا حسد کوونکی صرف په دې باندې خوشحاليږي چې دا نِعمت د دې بل کس نه زائل شي .

۲ . يو شاعر وايي :

كُلُّ الْعَدَاوَةِ قَدْ يُرْجٰى إِزَالَتُهَا ☆ إِلَّا عَدَاوَةَ مَنْ عَادَاكَ مِنْ حَسَدِ

←←← وَجَاءَ لِلْمَلِكِ وَقَالَ لَهُ مِثْلَ قَوْلِهِ السَّابِقِ : أَحْسِنْ لِلْمُحْسِنِ كَعَادَتِهِ . فَقَالَ لَهُ الْمَلِكُ : أُدْنُ مِنِّيْ . فَدَنَا مِنْهُ فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى أَنْفِهِ مَخَافَةَ أَنْ يَشُمَّ الْمَلِكُ مِنْهُ رَائِحَةَ الثُّوْمِ . فَقَالَ الْمَلِكُ فِيْ نَفْسِهِ : مَا أَرَى فُلَانًا إِلَّا قَدْ صَدَقَ . وَكَانَ الْمَلِكُ لَا يَكْتُبُ بِخَطِّهِ إِلَّا بِجَائِزَةٍ أَوْ صِلَةٍ فَكَتَبَ لَهُ بِخَطِّهِ لِبَعْضِ عُمَّالِهِ : إِذَا أَتَاكَ صَاحِبُ كِتَابِيْ هٰذَا فَاذْبَحْهُ وَاسْلُخْهُ وَاحْشُ جِلْدَهُ تِبْنًا وَابْعَثْ بِهِ إِلَيَّ . فَأَخَذَ الْكِتَابَ وَخَرَجَ فَلَقِيَهُ الَّذِيْ سَعٰى بِهِ فَقَالَ : مَا هٰذَا الْكِتَابُ ؟ فَقَالَ : خَطُّ الْمَلِكِ لِيْ بِصِلَةٍ . فَقَالَ : هَبْهُ مِنِّيْ فَقَالَ : هُوَ لَكَ فَأَخَذَهُ وَمَضٰى إِلَى الْعَامِلِ . فَقَالَ الْعَامِلُ فِيْ كِتَابِكَ أَنْ أَذْبَحَكَ وَأَسْلُخَكَ . فَقَالَ : إِنَّ الْكِتَابَ لَيْسَ هُوَ لِيْ . اَللّٰهَ اللّٰهَ فِيْ أَمْرِيْ حَتّٰى أُرَاجِعَ الْمَلِكَ . قَالَ : لَيْسَ لِكِتَابِ الْمَلِكِ مُرَاجَعَةٌ . فَذَبَحَهُ وَسَلَخَهُ وَحَشَا جِلْدَهُ تِبْنًا وَبَعَثَ بِهِ . ثُمَّ عَادَ الرَّجُلُ إِلَى الْمَلِكِ كَعَادَتِهِ وَقَالَ مِثْلَ قَوْلِهِ . فَعَجِبَ الْمَلِكُ وَقَالَ : مَا فَعَلَ الْكِتَابُ ؟ فَقَالَ : لَقِيَنِيْ فُلَانٌ فَاسْتَوْهَبَهُ مِنِّيْ فَدَفَعْتُهُ لَهُ . فَقَالَ الْمَلِكُ : إِنَّهُ ذَكَرَ لِيْ أَنَّكَ تَزْعُمُ أَنِّيْ أَبْخَرُ . قَالَ : مَا قُلْتُ ذٰلِكَ . قَالَ : فَلِمَ وَضَعْتَ يَدَكَ عَلَى أَنْفِكَ وَفِيْكَ ؟ قَالَ : أَطْعَمَنِيْ ثُوْمًا فَكَرِهْتُ أَنْ تَشُمَّهُ . قَالَ : صَدَقْتَ ارْجِعْ إِلٰى مَكَانِكَ فَقَدْ كَفَى الْمُسِيْءَ إِسَاءَتُهُ . فَتَأَمَّلْ رَحِمَكَ اللّٰهُ شُؤْمَ الْحَسَدِ وَمَا جَرَّ إِلَيْهِ تَعْلَمْ سِرَّ قَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَدِيْثِ السَّابِقِ : « لَا تُظْهِرِ الشَّمَاتَةَ لِأَخِيْكَ فَيُعَافِيَهُ اللّٰهُ وَيَبْتَلِيَكَ » . الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص۹۲ الكَبِيرَةُ الثَّالِثَةُ الغَضَبُ بِالبَاطِلِ ، احياء علوم الدين ج۳ ص۱۸۸ بيان ذم الحسد ، نضرة النعيم ج۱۰ ص۴۴۲۶ الحسد .

(۱) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص۹۳ الكَبِيرَةُ الثَّالِثَةُ الغَضَبُ بِالبَاطِلِ ، احياء علوم الدين ج۳ ص۱۸۹ بيان ذم الحسد ، نضرة النعيم ج۱۰ ص۴۴۲۶ الحسد ، تفسير الرازي ج۳ ص۶۴۶ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ .

د هرې دُشمنۍ ختميدو اُميد شته مګر کومه دُشمني چې د حسد په وجه پيدا شوې وي نو ددې د ختميدو اُميد نشته. (۱)

۳ . عبدالحميد رحمه الله فرمايي :

اَلْحَسُوْدُ مِنَ الْهَمِّ كَسَاقِي السُّمِّ، فَإِنْ سَرٰى سُمُّهُ زَالَ عَنْهُ غَمُّهُ. (۲)

کوم کس چې د حسد په وجه غمجن وي دده مثال د هغه کس په شان دی چې هغه په بل چا باندې زهر اُوڅکي ، پس که دده زهر اَثر اوکړي (او هغه کس پرې مړ شي) نو دده غم ختم شي ( همدغه شان د حسد کوونکي غم هله ختميږي چې ددې بل کس نه دا نعمت ختم شي ).

## د هرِ نعمت د پاره حسد کوونکې شته

۱ . رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

اِسْتَعِيْنُوْا عَلٰى اِنْجَاحِ الْحَوَائِجِ بِالْكِتْمَانِ، فَاِنَّ كُلَّ ذِيْ نِعْمَةٍ مَحْسُوْدٌ. (۳)

تاسو د حاجتونو په کاميابولو کې د پټ والي په ذريعه مدد حاصل کړئ ( يعنی که دا غواړئ چې په خپلو حوائجو کې کامياب شئ نو دا پټ ساتئ ، هر چا ته يې اِظهار مه کوئ)

---

(۱) مرقاة المفاتيح ج۸ ص۳۱۵٦ في تشريح حديث ۵۰۳۹ ، احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۹ بيان ذم الحسد ، نضرة النعيم ج۱۰ ص ۴۴۲٦ الحسد ، شعب الايمان ج۹ ص ۲۸ .

وَقَالَ مَحْمُوْدُ الْوَرَّاقُ: أَعْطَيْتُ كُلَّ النَّاسِ مِنْ نَفْسِي الرِّضٰى ✡ إِلَّا الْحَسُوْدَ فَإِنَّهُ أَعْيَانِيْ

مَا إِنَّ لِيْ ذَنْبًا إِلَيْهِ عَلِمْتُهُ ✡ إِلَّا تَظَاهُرَ نِعْمَةِ الرَّحْمٰنِ

وَأَبٰى فَمَا يُرْضِيْهِ إِلَّا ذِلَّتِيْ ✡ وَذَهَابُ أَمْوَالِيْ وَقَطْعُ لِسَانِيْ . ادب الدنيا والدين ص ۲۷۲ .

(۲) ادب الدنيا والدين ص ۲۷۱ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

(۳) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۸۳ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۱٦۸۰۰ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اِسْتَعِيْنُوْا عَلٰى قَضَاءِ حَوَائِجِكُمْ بِالْكِتْمَانِ، فَإِنَّ كُلَّ ذِيْ نِعْمَةٍ مَحْسُوْدٌ . مجمع الزوائد كِتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ كِتْمَانِ الْحَوَائِجِ . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۸ بيان ذم الحسد .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِسْتَعِيْنُوْا عَلٰى نَجَاحِ الْحَوَائِجِ بِالْكِتْمَانِ لَهَا فَإِنَّ كُلَّ ذِيْ نِعْمَةٍ مَحْسُوْدٌ . شعب الإيمان رقم الحديث ٦۲۲۸ الحث على ترک الغل والحسد .

ځکه د هرِ نعمت واله سره حسد کولې شي ( نو که ستا نعمت حاسد اوکوري نو بيا به درسره حسد کوي ) .

۲ . حضرت عُمر رضي الله عنه فرمايي :

مَا كَانَتْ نِعْمَةُ اللهِ عَلٰى أَحَدٍ إِلَّا وَجَدَ لَهَا حَاسِدًا . (۱)

په چا باندې چې هم الله تعالى څه نِعمت اوکړي نو دا به دې نعمت سره حسد کوونکى اُومومي . ( يعنى د هرِ نعمت د پاره حسد کوونکى شته ) .

دا ښکاره خبره ده چې څومره په يو انسان کې کمال زيات وي او نعمتونه ورباندې ډير وي نو همدومره به دده سره حسد کوونکي هم زيات وي ، او چې کمال په کې کم وي او يا نعمتونه ورسره کم وي نو حسد کوونکي به يې هم کم وي .

او چې د چا سره حسد کولې شي نو دا په دې دلالت کوي چې دا سړى د کمال او فضيلت واله دى ، او چې څوک حسد کوونکى وي نو دده دا حسد په دې دلالت کوي چې دا حاسِد د ښکته مرتبې واله کس دى . (۲)

مخکيني د عِلم او فضل واله خلقو سره هم حسد کړې شوې دى ، يو شاعر وايي :

إِنْ يَحْسُدُوْنِيْ فَإِنِّيْ غَيْرُ لَائِمِهِمْ ✡ قَبْلِيْ مِنَ النَّاسِ أَهْلُ الْفَضْلِ قَدْ حُسِدُوْا . (۳)

که دوى د ما سره حسد کوي نو زه دوى نه ملامته کوم ځکه د ما نه مخکې د فضل ( بزرګى ) واله خلقو سره هم حسد کړې شوې ؤ .

---

(۱) ادب الدنيا والدين ص ۲۷۱ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

(۲) بِحَسَبِ فَضْلِ الْإِنْسَانِ وَظُهُوْرِ النِّعْمَةِ عَلَيْهِ يَكُوْنُ حَسَدُ النَّاسِ لَهُ . فَإِنْ كَثُرَ فَضْلُهُ كَثُرَ حُسَّادُهُ . وَإِنْ قَلَّ قَلُّوْا ؛ لِأَنَّ ظُهُوْرَ الْفَضْلِ يُثِيْرُ الْحَسَدَ ، وَحُدُوْثَ النِّعْمَةِ يُضَاعِفُ الْكَمَدَ . .... وَرُبَّمَا كَانَ الْحَسَدُ مُنَبِّهًا عَلٰى فَضْلِ الْمَحْسُوْدِ وَنَقْصِ الْحَسُوْدِ . كَمَا قَالَ أَبُوْ تَمَّامٍ الطَّائِيُّ :

وَإِذَا أَرَادَ اللهُ نَشْرَ فَضِيْلَةٍ ✡ طُوِيَتْ أَتَاحَ لَهَا لِسَانَ حَسُوْدِ

لَوْلَا اشْتِعَالُ النَّارِ فِيْمَا جَاوَرَتْ ✡ مَا كَانَ يُعْرَفُ طِيْبُ عَرْفِ الْعُوْدِ

لَوْلَا التَّخَوُّفُ لِلْعَوَاقِبِ لَمْ يَزَلْ ✡ لِلْحَاسِدِ النُّعْمٰى عَلَى الْمَحْسُوْدِ

ادب الدنيا والدين ص ۲۷۱ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

(۳) ورالديني مرجع .

# حاسدين آخر هم رَسواء کيږي

په امام اعظم ابو حنيفه رَحِمَهُ الله کې چونکه کمال زيات وُ نو حاسدين يې هم زيات وو ، دوی به کوشش کولو چې په امام صاحب باندې داسې څه تُهمت اُولږوي چې خلق ورباندې بدگمانه شي ، نو حاسدانو د يوې ښځې سره خبره اوکړه چې : ته په څه بهانه باندې امام صاحب خپل کور ته داخل کړه مونږ به تاته ددې په عوض کې ډيرې روپۍ درکړو .

ښځه دُهوکه شوه او خبره يې اُومنله ( ځکه ښځې په خپله هم زر دُهوکه کيږي او نور خلق هم دوی ته په آسانه دُهوکه ورکولې شي ) ، ددې زَنانه کور په لاره کې وُ ، يوه شپه امام صاحب خپل کور ته تللو ، دا ښځه په پَرده کې بهر رااُووته او امام صاحب ته يې وويل :

زما خاوند وفات کيږي او څه وصيت کول غواړي خو زه پرې نه پوهيږم چې هغه څه وايي؟ زه تاته د الله ﷻ واسطه درکوم چې ته راشه او هغه وصيت واوره .

امام صاحب کور ته ورننوت ، دې زَنانه د کور دروازه بنده کړه ، په کمرو کې چې کوم حاسدان پَټ ناست وو هغوی رااُووتل ، نو دوی امام صاحب او دا ښځه اُونيول او پوليس ته يې حواله کړل ، د وخت بادشاه ته خبره اُورسيده ، هغه ورته وويل :

تاسو يې اوس په جېل کې واچوئ صبا به ورسره زه گورم .

نو امام صاحب او دا ښځه يې په يوه تياره کمره کې بند کړل ، چونکه په دې وخت کې د امام صاحب اُودس وُ نو په نوافلو باندې اُودريد او ډير وخت په نوافلو کې مشغول وُ ، دې ښځې ته د خپلې غلطۍ اِحساس اوشو چې ما خو په يو پاک دامَن کس باندې بُهتان اولږولو .

کله چې امام صاحب سلام اُوگرځول نو دې ښځې ورنه معافي اوغوښته او ټوله واقعه يې ورته بيان کړه .

امام صاحب ورته وويل چې څه اُوشو نو هغه اُوشو ، اوس زه تاته يو تدبير ښايم چې په دې سره به مونږ ددې مصيبت نه خلاص شو ، هغه دا چې ته ددې جېل پهره دار ته اووايه چې " دې خلقو زه ناڅاپه اُونيوم او دلته يې راوَستم زه کور ته د يو ضروري کار پسې تلل غواړم ته راسره د کوره پورې لاړ شه زه به هغه کار اوکړم او واپس به درسره راشم " کله چې پهره دار ستا دا خبره اُومني نو ته زما کور ته لاړه شه هلته زما بي بي ته دا واقعه بيان

کړه ، بيا خپله بُرقع هغې ته ورکړه ، ته هلته پاتې شه او زما بي بي به ستا په دې بُرقعه کې د پهره دار سره راشي .

همداسې اُوشو ، دې زَنانه پهره دار ته ډيرې زارۍ اوکړې ، آخر هغه ورسره لاړ ، دا زَنانه د امام صاحب کور ته لاړه ، د هغې طرفه په همدې بُرقعه کې د امام صاحب بي بي راغله او جېل ته ننَوته .

چې صبا شو نو حاکِم امام صاحب او دا زَنانه مُحاتته رااُوغوښتل ، ډير خلق راجمع وو ، ټول حاسدان هم راجمع شوي وو ( زړونه يې ښه وو چې اوس به په امام صاحب باندې تهمت اُولږي او حاکم به سزا ورکړي ).

کله چې د حاکم مخې ته دواړه پيش شو نو حاکِم د امام صاحب نه پوښتنه اوکړه :

امام صاحب ! ته دومره لوي عالِم يې او بيا هم ګناهِ کبيره کوې ؟

امام صاحب ورته ووئيل : دا ته څه وايې ؟

هغه ورته ووئيل : ته د شپې يوائې ددې پردَۍ زَنانه سره په کور کې ليدل شوې يې .

امام صاحب ورته ووئيل : دا خو زما خپله بي بي ده او که ستا په زړه کې شک وي نو زما د سخَر ( د ښځې پلار ) نه پوښتنه اوکړه چې دا ښځه څوک ده ؟

سخَر يې راغې او دا زَنانه يې اُوکتله نو وې ويل : دا خو زما لور ده او مام صاحب ته مې په نکاح باندې ورکړې ده .

نو حاکم دواړه پريخودل ، او حاسدين رَسواء شول . (۱)

## الله تعالی د خپلو اَولياؤ بدله په خپله اَخلي

حديثِ قدسي دی ، الله تعالی فرمايي :

مَنْ عَادٰى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ . (۲)

څوک چې زما ديو وَلي سره دُشمني کوي نو زه هغه ته اعلانِ جنګ کوم .

---

(۱) اللہ والوں کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۲ ص ۲۴۳ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ التَّوَاضُعِ رقم الحديث ٦٥٠٢ ، مشكاة المصابيح باب ذكر الله عز وجل والتقرب اليه الفصل الاول رقم الحديث ٢٢٦٦(٦).

او څوک چې اَولياءُ اللهؒ ته ضرر رسوي نو دداسې کس نه الله تعالى په خپله بدله اخلي.

يو کس امام اعظم ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰه ته راغى او دده د ګستاخۍ او بې اَدبۍ په نيت يې دده نه پوښتنه اوکړه:

امام صاحب ! زه خبر شوې يم چې ستا پلار وفات شوى.

ده ورته وويل: آو، هغه وفات شوى.

هغه بيا پوښتنه اوکړه: ستا مور ژوندۍ ده؟ ده ورته وويل: آو، ژوندۍ ده.

هغه د بې اَدبۍ په اِراده وويل: ما اوريدلي دي چې ستا مور ډيره ښائسته ده، لهذا زه راغلې يم چې ته د هغې نکاح د ماسره اوکړې ( د امام صاحب مور ډيره بوډۍ وه، د نکاح نه وه خو ددې سړي مقصد د امام صاحب ګستاخي وه ).

امام صاحب د صبر او اِستقامت نه کار واخيست، او ورته وې ويل: زما مور خو عاقله، بالغه ښځه ده، د نکاح اِختيار خو دهغې سره دى، زه خو يې په زوره تاته په نکاح نه شم درکولى، البته زه به ورنه پوښتنه وکړم.

نو امام صاحب کور ته روان شو چې د هغې نه پوښتنه اوکړي، چې څه لږ مخکې لاړ او شاطرف ته يې رااُوکتل نو وې ليدل چې ناڅاپه دا سړى رااُوغورځيد او مړ شو، پوښتنه اوشوه چې دا چا اُووژل؟ جواب راغى چې دا د امامِ ابو حنيفه رَحِمَهُ اللّٰه صبر قتل کړو.

يو شاعر وايي:

هيچ قومے راخدا رسوا نه کرد ✡ تا دِلے صاحب دِلے نامد بدرد

هيڅ يو قوم تر هغه وخته پورې الله جَلَّ جَلَالُهٗ نه دى رَسوا کړى تر څو چې دوى د يو وَلِيُ الله زړه ته درد نه وي رسولى. ( کله چې دوى يو وَلِيُ الله ته تکليف اورسوي نو الله تعالى دغه قوم بيا رَسوا کوي ).

## د هيچا سره حسد په کار ندى

۱. حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي:

يَا ابْنَ آدَمَ لِمَ تَحْسُدُ أَخَاكَ؟ فَإِنْ كَانَ الَّذِيْ أَعْطَاهُ لِكَرَامَتِهِ عَلَيْهِ فَلِمَ تَحْسُدُ مَنْ أَكْرَمَهُ اللهُ؟ وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذٰلِكَ فَلِمَ تَحْسُدُ مَنْ مَصِيْرُهُ إِلَى النَّارِ.

اې د آدم ځويه ! ته د خپل ورور سره ( د نعمت په وجه ) ولې حسد کوې ؟ که چيرته الله تعالى ده ته دا نعمت دده د عزت د وجې نه ورکړې وي نو بيا ته د هغه چا سره ولې حسد کوې چې هغه ته الله ﷻ عزت ورکړی ؟ او که دده د عزت د وجې يې ده ته دا نعمت نه وي ورکړی ( بلکه کافر يا ګناهګار وي ) نو بيا ته د هغه چا سره ولې حسد کوې چې د هغه تلل جهنم ته دي . (١)

٢. علامه ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

مَا حَسَدْتُ أَحَدًا عَلَى شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَيْفَ أَحْسُدُهُ عَلَى الدُّنْيَا وَهِيَ حَقِيْرَةٌ فِي الْجَنَّةِ ، وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَكَيْفَ أَحْسُدُهُ عَلَى أَمْرِ الدُّنْيَا وَهُوَ يَصِيْرُ إِلَى النَّارِ. (٢)

ما د دُنيا په څه شي باندې د هيچا سره حسد نه دې کړی ځکه که دا کس جنّتي وي نو زه ورسره څنګه په دُنيا کې حسد اوکړم حالانکه ( ده ته چې په جنت کې کوم نعمتونه ملاويږي ) دا دُنيا د جنت د نعمتونو په مقابله کې حقيره ( سپکه ) ده ، او که دا کس جهنمي وي نو بيا زه څه لـه دده سره د دُنيا په څه شي باندې حسد اوکړم حالانکه دا هسې هم جهنم ته تلونکی دی .

## د حسد او حِرص په وجه شيطان انسان ته ډير نقصان رسوي

کله چې حضرت نوح عليه السلام د خپلو اُمتيانو سره په کِشتۍ کې کيناست نو په دې کشتۍ کې يې يو بُوډا اُوليد چې هيچا نه پيژندو ، چونکه حضرت نوح عليه السلام په کشتۍ کې د هر څيز جوړه جوړه کينوله او دا ځانله ناست وُ نو خلقو دا اُونيولو ، حضرت نوح عليه السلام ورنه پوښتنه اوکړه : ته څوک يې ؟ هغه وويل : زه شيطان يم . دوی ورته وويل : ته دومره چالاک او بدمعاش يې چې کِشتۍ ته هم راختلې يې ؟

(١) احياء علوم الدين ج٣ ص ١٨٩ بيان ذَمِّ الحَسَدِ ، نضرة النعيم ج ١٠ ص ٤٤٢٦ الحسد ، تنبيه الغافلين ج١ ص ١٧٩ باب الحسد .

(٢) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج١ ص ٩٣ اَلْكَبِيْرَةُ الثَّالِثَةُ الغَضَبُ بِالبَاطِلِ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ١٨٩ بيان ذَمِّ الحَسَدِ ، تفسير الرازي ج٣ ص ٦٣٦ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، نضرة النعيم ج ١٠ ص ٤٤٢٦ الحسد ، تنبيه الغافلين ج١ ص ١٧٩ باب الحسد .

شيطان ورته وويل : مانه غلطي اوشوه ، ما معاف کړئ. حضرت نوح عليه السلام ورته وويل : مونږ تا داسې نه پرېږدو اول ته مونږ ته هغه ځل اُوښايه چې ته پرې خلقو ته ډېر نقصان رسوې. شيطان ورته وويل : زه به رېښتيا رېښتيا اووايم خو تاسو به هم راسره دا وعده کوې چې ما به پرېږدئ. دوی ورته وويل : صحيح ده.

شيطان وويل : زه په دوه ځيزونو باندې انسان ته ډېر نقصان رسوم : اول حسد ، او دويم حِرص ؛ ځکه حسد داسې ځيز دی چې ددې په وجه زه په خپله هم برباد شوم ، او د حِرص په وجه حضرت آدم عليه السلام د جنت نه زمکې ته راښکته کړې شو ، نو په دې دوه شيانو باندې زه انسان ته زيات نقصان رسوم. (۱)

واقعي چې دا دواړه بيمارۍ ډېرې خطرناکې دي او د ټولو رُوحاني بيماريانو جَرړې دي، زياتې جګړې د حسد او حِرص په وجه پيدا کيږي.

## علماء به د حسد په وجه د حساب نه مخکې جهنم ته داخليږي

رسولُ اللهصلى الله عليه وسلم فرمايي :

سِتَّةٌ يَدْخُلُوْنَ النَّارَ قَبْلَ الْحِسَابِ : اَلْأُمَرَاءُ بِالْجَوْرِ، وَالْعَرَبُ بِالْعَصَبِيَّةِ ، وَالدَّهَاقِيْنُ بِالتَّكَبُّرِ، وَالتُّجَّارُ بِالْخِيَانَةِ، وَأَهْلُ الرُّسْتَاقِ بِالْجَهَالَةِ، وَالْعُلَمَاءُ بِالْحَسَدِ. (۲)

شپږ ( ٦ ) قِسمه خلق به ( د خپلو ګناهونو په وجه ) د حساب نه مخکې جهنم ته داخليږي: ۱. حاکمان به د ظلم په وجه ۲. عرب به د عَصبِيت په وجه ۳. مالدار به د تکبّر په وجه ۴. تاجران به د خيانت په وجه ۵. د خپمو واله (بانډچيان) به د جهالت په وجه ٦. او علماء به د حسد په وجه.

يعنی کوم علماء چې عِلم د دُنيا ګټلو د پاره اوکړي نو په دوی کې بيا بعضې د بعضو نورو سره حسد کوي نو ددې په وجه د جهنم مستحق اوګرځي.

---

(۱) افضل الحکايات لمولانا محمد يونس پالنپوري ص۲۱٦.

(۲) تفسير الرازي (تفسير كبير) ج۳ ص ٦۴۵ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۴۰۳۰ ، غرائب القرآن ورغائب الفرقان (تفسير النيسابوري) ج۱ ص ۳٦۳ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۸۸ بيان ذم الحسد ، تنبيه الغافلين ج۱ ص ۱۷۸ باب الحسد . جامع المسانيد والسنن ج۸ ص ۲۴۳ ،

او کوم علماء چې خالص د الله ﷻ د رضا د پاره علم حاصل کړي نو دا بيا د نورو سره حسد نه کوي ، لهذا علماؤ ته په کار دي چې علم خالص د الله تعالى د رضا د پاره حاصل کړي او د حسد نه ځان اوساتي . (۱)

همدارنګې قاريانو ته هم په کار دي چې د يو بل سره حسد اونکړي ځکه په قاريانو کې هم د يو بل سره حسد زيات وي . (۲)

# د حسد ضررونه

په چا کې چې حسد پيدا شي نو داسې کس په څلورو غټو ضررونو (او مذمتونو) کې مبتلاء کيږي :

اول : (د بل چا سره نعمت کتلو په وجه) بې انتهائي خفګان ورته پيدا کيږي ، او وجود يې بيماريږي ، ځکه حسد د وجود د پاره خطرناکه بيماري ده .

دويم : د خلقو په نزد دده مرتبه ښکته شي او خلق دده نه نفرت کوي ، مشهوره خبره ده :

اَلْحَسُوْدُ لَا يَسُوْدُ . حسد کوونکی سړی سردار نه جوړيږي .

دريم : ټول خلق دده سره بُغض او دُشمني کوي ، په خلقو کې څوک دده دوست نه وي ، او چې کله انسان دې مرتبې ته اُورسي نو په احاديثو کې داسې کس ته بَدترين کس ويل شوی .

---

(۱) يَعْنِي الْعُلَمَاءَ الَّذِيْنَ يَطْلُبُوْنَ الدُّنْيَا ، يَحْسُدُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا . فَيَنْبَغِيْ لِلْعَالِمِ أَنْ يَتَعَلَّمَ الْعِلْمَ لِيَطْلُبَ بِهِ الْآخِرَةَ . فَإِذَا كَانَ الْعَالِمُ يَطْلُبُ بِعِلْمِهِ الْآخِرَةَ فَإِنَّهُ لَا يَحْسُدُ أَحَدًا وَلَا يَحْسُدُهُ أَحَدٌ . وَإِذَا تَعَلَّمَ لِطَلَبِ الدُّنْيَا فَإِنَّهُ يَحْسُدُ كَمَا قَالَ اللهُ تَعَالَى عَنْ عُلَمَاءِ الْيَهُوْدِ : { أَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلَى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ } [ النساء آية ۵۴ ] . يَعْنِيْ أَنَّ يَهُوْدًا كَانُوْا يَحْسُدُوْنَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ . فَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ : لَوْ كَانَ هُوَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَشَغَلَهُ ذٰلِكَ عَنْ كَثْرَةِ النِّسَاءِ . قَالَ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى : { أَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلَى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ } [ النساء آية ۵۴ ] . يَعْنِي النُّبُوَّةَ وَكَثْرَةَ النِّسَاءِ . تنبيه الغافلين ج۱ ص ۱۷۸ باب الحسد .

(۲) وَرُوِيَ عَنْ مَالِكِ بْنِ دِيْنَارٍ رَحِمَهُ اللهُ ، أَنَّهُ قَالَ : إِنِّيْ أُجِيْزُ شَهَادَةَ الْقُرَّاءِ عَلَى جَمِيْعِ الْخَلْقِ وَلَا أُجِيْزُ شَهَادَةَ الْقُرَّاءِ بَعْضِهِمْ عَلَى بَعْضٍ لِأَنِّيْ وَجَدْتُهُمْ حُسَّادًا . يَعْنِيْ أَنَّ أَكْثَرَ الْحَسَدِ فِي الْقُرَّاءِ . تنبيه الغافلين ج۱ ص ۱۷۸ باب الحسد .

څلورم : د حسد کوونکي نه الله تعالی ناراضه وي ځکه دا د الله ﷻ په فيصله باندې راضي نه وي ، خلقو ته چې الله تعالی کوم نعمتونه ورکړي دي ده ته غصه ورځي چې دا خلق خو ددې نعمتونو حقدار نه وو نو الله تعالی ورته ولې ورکړي دي ؟ نو دا ګويا په الله ﷻ باندې اعتراض کوي او د هغه فيصله د عدل واله نه ګڼړي نو ځکه د الله ﷻ د غضب مستحق ګرځي. (۱)

د حسد نور ضَرَرونه دادي چې ددې په وجه د انسان نه موجوده نعمتونه اخيستلې شي.

حسد د ټولو غټو شرونو چينه (جرړه) ده ، او د بَديو چابي ده.

حسد په زړه کې کِينه او بُغض پيدا کوي.

حسد د حسد کوونکي په بَداخلاقۍ او رذالت باندې دلالت کوي. (۲)

---

(۱) قال الماوردي رَحِمَهُ اللَّهُ : وَإِنْ صَدَّتْهُ الشَّهْوَةُ عَنْ مَرَاشِدِهِ ، وَأَضَلَّهُ الحِرْمَانُ عَنْ مَقَاصِدِهِ ، فَانْقَادَ لِلطَّبْعِ اللَّئِيمِ ، وَغَلَبَ عَلَيْهِ الخُلُقُ الذَّمِيمِ ، حَتَّى ظَهَرَ حَسَدُهُ وَاشْتَدَّ كَمَدُهُ ، فَقَدْ بَاءَ بِأَرْبَعِ مَذَامٍ:
إِحْدَاهُنَّ : حَسَرَاتُ الحَسَدِ وَسَقَامُ الجَسَدِ ، ثُمَّ لَا يَجِدُ لِحَسْرَتِهِ انْتِهَاءً ، وَلَا يُؤَمِّلُ لِسَقَامِهِ شِفَاءً . وَقَالَ ابْنُ المُعْتَزِّ : اَلْحَسَدُ دَاءُ الجَسَدِ.
وَالثَّانِيَةُ: اِنْخِفَاضُ المَنْزِلَةِ وَانْحِطَاطُ المَرْتَبَةِ لِانْحِرَافِ النَّاسِ عَنْهُ ، وَنُفُورِهِمْ مِنْهُ ، وَقَدْ قِيلَ فِي مَنْثُورِ الحِكَمِ : اَلْحَسُودُ لَا يَسُودُ.
وَالثَّالِثَةُ : مَقْتُ النَّاسِ لَهُ حَتَّى لَا يَجِدَ فِيهِمْ مُحِبًّا ، وَعَدَاوَتُهُمْ لَهُ حَتَّى لَا يَرَى فِيهِمْ وَلِيًّا ، فَيَصِيرُ بِالعَدَاوَةِ مَأْثُورًا ، وَبِالمَقْتِ مَزْجُورًا . وَلِذٰلِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « شَرُّ النَّاسِ مَنْ يُبْغِضُ النَّاسَ وَيُبْغِضُونَهُ ».
وَالرَّابِعَةُ: إِسْخَاطُ اللهِ تَعَالَى فِي مُعَارَضَتِهِ ، وَاجْتِنَاءُ الأَوْزَارِ فِي مُخَالَفَتِهِ ، إِذْ لَيْسَ يَرَى قَضَاءَ اللهِ عَدْلًا ، وَلَا لِنِعَمِهِ مِنَ النَّاسِ أَهْلًا . وَلِذٰلِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَلْحَسَدُ يَأْكُلُ الحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الحَطَبَ ».
ادب الدنيا والدين ص ۲۷۳ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الحَسَدِ وَالمُنَافَسَةِ.

(۲) اَلْحَسَدُ يَجْلِبُ النِّقَمَ وَيُزِيلُ النِّعَمَ . مَنْبَعُ الشُّرُورِ العَظِيمَةِ وَمِفْتَاحُ العَوَاقِبِ الوَخِيمَةِ . يُوَرِّثُ الحِقْدَ وَالضَّغِينَةَ فِي القَلْبِ . مِعْوَلُ هَدْمٍ فِي المُجْتَمَعِ . دَلِيلٌ عَلَى سُفُولِ الخُلُقِ وَدَنَاءَةِ النَّفْسِ . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۱۰ ص ۴۴۲۹ الحسد.

# حسد نه کوونکي خلق کامياب دي

څوک چې حسد نه کوي هغه خلق کامياب دي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا لَمْ يَتَحَاسَدُوْا. (۱)

خلق به تر هغې پورې هميشه په خير (او کامياب) وي تر څو پورې چې دوی د يو بل سره حسد اونکړي .

# حسد نه کوونکی بهترين کس دی

د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه اوشوه :

أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ په خلقو کې افضل کس څوک دی ؟

دوی ورته اوفرمايل : كُلُّ مَخْمُوْمِ الْقَلْبِ، صَدُوْقِ اللِّسَانِ .

( په خلقو کې افضل ) هر هغه کس دی چې مَخْمُوْمُ الْقَلْب (يعنی سَلِيمُ القلب) وي ، او صَدُوْقُ اللِّسَان (يعنی رينښتينې ژبې واله) وي .

صحابه کرامو رضي الله عنهم اوفرمايل : صَدُوْقُ اللِّسَان خو مونږ پيژنو خو دا مَخْمُوْمُ الْقَلْب څوک دی ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : هُوَ التَّقِيُّ النَّقِيُّ، لَا إِثْمَ فِيْهِ ، وَلَا بَغْيَ ، وَلَا غِلَّ ، وَلَا حَسَدَ . (۲)

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۸۱۵۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۸۸۷(۳) الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر ، مجمع الزوائد ومنبع الفوائد بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَسَدِ وَالظَّنِّ رقم الحديث ۱۳۰۴۵ وقال الهيثمي : رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ، وَرِجَالُهُ ثِقَاتٌ .

(۲) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنهما . قَالَ : قِيْلَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ قَالَ : « كُلُّ مَخْمُوْمِ الْقَلْبِ، صَدُوْقِ اللِّسَانِ » . قَالُوْا : صَدُوْقُ اللِّسَانِ نَعْرِفُهُ ، فَمَا مَخْمُوْمُ الْقَلْبِ؟ قَالَ : « هُوَ التَّقِيُّ النَّقِيُّ، لَا إِثْمَ فِيْهِ ، وَلَا بَغْيَ ، وَلَا غِلَّ ، وَلَا حَسَدَ . سنن ابن ماجة كِتَابُ الزُّهْدِ بَابُ الْوَرَعِ وَالتَّقْوَى رقم الحديث ۴۲۱۶ قال الالباني : صحيح . مشكوة المصابيح كتاب الرقاق الْفَصْلُ الثَّالِث رقم الحديث ۵۲۲۱(۶۷) ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۳۸۶ الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر ، و رواه البيهقي في شعب الايمان .

دا (مَخْمُوْمُ الْقَلْب) هغه کس دی چې ځان د ګناهونو نه ساتي، صفا زړه واله وي، ګناه هم په کې نه وي، په خلقو ظلم هم نه کوي، په زړه کې يې بُغض (کِينه) او حسد هم نه وي.

## حسد نه ځان بچ کوونکي د پاره د جنت زيرې

په مسند احمد، مجمع الزوائد او نورو ډيرو کتابونو کې دا واقعه ذکر ده:

حضرت انس ﷺ فرمايي چې مونږ (صحابه کرام) د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم سره (په مجلس کې) ناست وو، نبي عليه السلام اوفرمايل:

يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الْآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ.

اوس به تاسو ته يو جنّتي سړی رانَنوځي.

نو د اَنصارو يو کس رانَنوت چې د ګيرې نه يې د اَودس اُوبه څڅيدې او دواړه څپلې يې په خپل چَپ (ګَس) لاس کې زوړندې وې، (سلام يې واچول او په مجلس کې کيناست).

په صبا باندې (مونږ بيا د نبي عليه السلام سره په مجلس کې ناست وو نو) رسولُ الله صلی الله عليه وسلم هماغه شان خبره اوکړه

(يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الْآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. اوس به تاسو ته يو جنّتي سړی رانَنوځي.)

نو همدغه کس بيا د مخکيني حالت په شان رانَنوت.

په دريمه ورځ بيا نبي عليه السلام همدغه شان خبره اوکړه نو همدغه کس بيا په هماغه مخکيني حالت باندې رانَنوَت (يعنی د ګيرې نه يې د اَودس اُوبه څڅيدې او څپلې يې په چَپ لاس کې نيولې وې)، کله چې رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د مجلس نه) پاڅيد، نو عبدالله بن عَمرو بن العاص ﷺ ددې کس پسې ورغی او ورته وې ويل:

زما او د خپل پلار په مينځ کې څه تېزې خبرې راغلي دي نو ما قسَم کړی چې زه به درې (۳) ورځې کورته نه ځم نو که ستا خوَښه وي زه به دا درې ورځې د تاسره تېرې کړم (چې قسَم مې پوره شي)، هغه ورته وويل: صحيح ده (ماسره لاړ شه).

حضرت انس ﷺ فرمايي چې حضرت عَمرو بن العاص ﷺ د هغه کس سره درې (۳) ورځې تېرې کړې، دا کس به د شپې تهجد و ته بالکل نه پاڅيدو، البته چې کله به د شپې د

خوب نه راويخ شو او په بل طرف به اَوړيدلو نو د الله ﷻ ذکر به يې کولو او تکبير به يې
ويل ، همدغه شان به يې شپه تېره کړه تر دې چې د سهر مانځه ته به راپاڅيد .
( چې کله به يې اَودس کولو نو پوره اَودس به يې کولو او پوره مونځ به يې کولو ، د
ورځې به يې نفلي روژه هم نه نيوله ) .
حضرت عَمرو بن العاص ﷺ فرمايي ( ما درې ورځې د هغه اَعمالو ته په پوره غور سره
اُوکتل ، ددينه زياتي څه بل عمل يې نه کولو ، خو ) ما د هغه نه صرف د خېر خبره اَوريده
( يعنې فضول خبرې يې نه کولې ، او چې کله به يې خبرې کولې نو د خېر خبرې به وې ) .
کله چې درې ورځې تېرې شوې نو قريبه وه چې ما دده دا عمل وړوکې ګڼړلې وې ( چې
دا خو ډير کم نېک اعمال کوي ) نو ما دې کس ته ووېل :
اې د الله بنده ! زما او د خپل پلار په مينځ کې هيڅ غصه او تعلقات پرېخودل نه وو خو
ما درې پېرې ستاسو په باره کې د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم نه اَوريدلي وو چې دا يې
فرمايل : يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الْآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ .
اوس به په تاسو باندې يو جنّتي سړی راداخل شي .
او په درې واړو پېرو کې تاسو راداخل شوي وې ، نو ما دا اِراده اوکړه چې تا سره درې
ورځې پاتې شم چې زه دا اوګورم چې ستا څه عمل دی ؟ چې زه هم بيا هماغه شان عمل
اوکړم ، خو ته ما په ډير نېک عمل کولو باندې او نه ليدی ، پس ته دې مرتبې ته په کوم
نېک عمل اُورسيدی چې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ستا په باره کې د جنّتي کيدو خبر
درکړو ؟ هغه کس ووېل : زما عمل خو همدغه دی چې تا اُوليد .
حضرت عَمرو بن العاص ﷺ فرمايي : کله چې زه ورنه واپس رارَوان شوم نو ما ته يې
آواز اوکړو ( چې زه ورغلم ) نو راته وې ويل :
مَا هُوَ إِلَّا مَا رَأَيْتَ غَيْرَ أَنِّي لَا أَجِدُ فِي نَفْسِي لِأَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ غِشًّا، وَلَا أَحْسُدُ أَحَدًا عَلَى
خَيْرٍ أَعْطَاهُ اللهُ إِيَّاهُ .
زما عمل خو همدغه دی کوم چې تا اُوليد البته زه په خپل زړه کې د هيڅ مسلمان
سره دهوکه نه لرم ، او د هيچا سره په هغه نِعمت باندې حسد نه کوم کوم چې ورته الله ﷻ

ورکړې وي.

حضرت عَمرو بن العاص ﷺ او فرمايل:

هٰذِهِ الَّتِيْ بَلَغَتْ بِكَ وَهِيَ الَّتِيْ لَا نُطِيْقُ.

دا هغه صفات دي چې ته يې دې مرتبې ته رسولې يې (چې رسولُ الله ﷺ ستا په باره کې د جنّتي کېدو خبر ورکړی) او ددې صفاتو مونږ طاقت نه لرو. (١)

د احاديثو په څنې کتابونو کې ددې کس نوم "سعد ﷺ" ذکر شوی (يعنی نبي عليه

---

(١) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ قَالَ: كُنَّا جُلُوْسًا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: « يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الْآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ » فَطَلَعَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، تَنْطِفُ لِحْيَتُهُ مِنْ وُضُوْئِهِ، قَدْ تَعَلَّقَ نَعْلَيْهِ فِيْ يَدِهِ الشِّمَالِ. فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذٰلِكَ، فَطَلَعَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ مِثْلَ الْمَرَّةِ الْأُوْلٰى. فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ أَيْضًا، فَطَلَعَ ذٰلِكَ الرَّجُلُ عَلٰى مِثْلِ حَالِهِ الْأُوْلٰى، فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبِعَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ ﷺ فَقَالَ: إِنِّيْ لَاحَيْتُ أَبِيْ فَأَقْسَمْتُ أَنْ لَا أَدْخُلَ عَلَيْهِ ثَلَاثًا، فَإِنْ رَأَيْتَ أَنْ تُؤْوِيَنِيْ إِلَيْكَ حَتّٰى تَمْضِيَ فَعَلْتَ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ أَنَسٌ ﷺ: وَكَانَ عَبْدُ اللهِ يُحَدِّثُ أَنَّهُ بَاتَ مَعَهُ تِلْكَ اللَّيَالِي الثَّلَاثَ فَلَمْ يَرَهُ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ شَيْئًا غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا تَعَارَّ وَتَقَلَّبَ عَلٰى فِرَاشِهِ ذَكَرَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ وَكَبَّرَ، حَتّٰى يَقُوْمَ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ. قَالَ عَبْدُ اللهِ ﷺ غَيْرَ أَنِّيْ لَمْ أَسْمَعْهُ يَقُوْلُ إِلَّا خَيْرًا، فَلَمَّا مَضَتِ الثَّلَاثُ لَيَالٍ وَكِدْتُ أَنْ أَحْقِرَ عَمَلَهُ، قُلْتُ: يَا عَبْدَ اللهِ! إِنِّيْ لَمْ يَكُنْ بَيْنِيْ وَبَيْنَ أَبِيْ غَضَبٌ وَلَا هَجْرٌ ثَمَّ، وَلٰكِنْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَكَ ثَلَاثَ مِرَارٍ: « يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الْآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ » فَطَلَعْتَ أَنْتَ الثَّلَاثَ مِرَارٍ، فَأَرَدْتُ أَنْ آوِيَ إِلَيْكَ لِأَنْظُرَ مَا عَمَلُكَ فَأَقْتَدِيَ بِهِ فَلَمْ أَرَكَ تَعْمَلُ كَثِيْرَ عَمَلٍ، فَمَا الَّذِيْ بَلَغَ بِكَ مَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: مَا هُوَ إِلَّا مَا رَأَيْتَ. قَالَ: فَلَمَّا وَلَّيْتُ دَعَانِيْ، فَقَالَ: مَا هُوَ إِلَّا مَا رَأَيْتَ غَيْرَ أَنِّيْ لَا أَجِدُ فِيْ نَفْسِيْ لِأَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ غِشًّا، وَلَا أَحْسُدُ أَحَدًا عَلٰى خَيْرٍ أَعْطَاهُ اللهُ إِيَّاهُ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ: هٰذِهِ الَّتِيْ بَلَغَتْ بِكَ وَهِيَ الَّتِيْ لَا نُطِيْقُ. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ١٢٦٩٧، مجمع الزوائد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِيْ سَلَامَةِ الصَّدْرِ مِنَ الْغِلِّ وَالْحَسَدِ رقم الحديث ١٣٠٣٨، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ١٠٦٣٣، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ٤٣٨٤ الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ٣٥٣٥، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ١١٣٥، تفسير كبير ج٣ ص ٦٢٥ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩، احياء علوم الدين ج٣ ص ١٨٧ بيان ذمّ الحسد، الزواجر ج١ ص ٩٠، تنبيه الغافلين ص ١٨١ باب الحسد.

السلام د حضرت سعد ﷺ په باره کې د جنتي کېدو خوشخبري ورکړې وه) . (۱)

## د حسد نه بچ کېدو په وجه د الله ﷻ مُقرّب جوړېدل

عَمرو بن ميمون رحمه الله فرمايي چې کله حضرت موسٰی عليه السلام په جَلتې سره خپل رَب ته ورغی نو د عرش لاندې يې يو کس اُوليد ، حضرت موسٰی عليه السلام د هغه په دې مرتبې باندې غِبطه اوکړه ، او وې فرمايل : دا سړې خپل رب ته ډير مُعزز دی .

نو دوه د خپل رَب نه سوال اوکړو چې ددغه کس نوم راته اُوښايه .

الله تعالٰی ورته ددې کس نوم او نه خود ، خو ورته وې فرمايل :

( اې موسٰی ! ) زه به تاته ددې کس د عمل په باره کې خبر درکړم ، چې په دهٔ کې درې خصلتونه وو :

۱. كَانَ لَا يَحْسُدُ النَّاسَ عَلَى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ .

الله تعالٰی چې خلقو ته په خپل فضل سره کوم نِعمتونه ورکړي وو دهٔ به د خلقو سره په دې باندې حسَد نه کولو .

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمًا لِأَصْحَابِهِ : يَدْخُلُ مِنْ هَاهُنَا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ . قَالَ مَعْمَرٌ فِي حَدِيثِهِ: تَنْطِفُ لِحْيَتُهُ مَاءً مِنْ وُضُوءٍ تَوَضَّأَهُ . مُعَلِّقٌ نَعْلَيْهِ . فَدَخَلَ سَعْدٌ ﷺ . قَالَ ذَلِكَ مَرَّتَيْنِ كُلُّ ذَلِكَ يَأْتِي سَعْدٌ ﷺ . فَلَمَّا سَمِعَ ذَلِكَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو ﷺ اِنْصَرَفَ مَعَهُ لَيْلَتَهُ . فَقَالَ يَا عَمِّ! إِنَّهُ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَمْرٍو بَعْضُ الْقَوْلِ فَأَرَدْتُ أَنْ أَبِيتَ عِنْدَكَ . قَالَ : نَعَمْ يَا ابْنَ أَخِي . فَبَاتَ عَبْدُ اللهِ عِنْدَهُ وَبَاتَ سَعْدٌ ﷺ نَائِمًا . فَإِذَا تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ ذَكَرَ اللهَ . فَلَمَّا أَصْبَحَ قَامَ فَتَوَضَّأَ وَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ. ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ فَصَنَعَ ذَلِكَ ثَلَاثَ لَيَالٍ لَا يَزِيدُ عَلَى ذَلِكَ فَلَمَّا أَصْبَحَ مِنَ الْيَوْمِ الثَّالِثِ قَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ: إِنَّهُ وَاللهِ مَا كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَمْرٍو إِلَّا خَيْرٌ. وَلَكِنْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَكَ : يَدْخُلُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَأَحْبَبْتُ أَنْ أَعْلَمَ مَا عَمَلُكَ؟ فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ ﷺ : مَا هُوَ إِلَّا مَا رَأَيْتَ يَا ابْنَ أَخِي إِلَّا أَنِّي لَمْ أَبِتْ ضَاغِنًا عَلَى مُسْلِمٍ. أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا مسند البزار المنشور باسم البحر الزخار رقم الحديث ۶۳۰۸ ، مجمع الزوائد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي سَلَامَةِ الصدر رقم الحديث ۱۳۰۴۸ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۳۸۴ الترهيب من الحسد وفضل سلامة الصدر ، الزواجر ج۱ ص ۹۰ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۴۳۶ الحقد .

۲. وَكَانَ لَا يَعُقُّ وَالِدَيْهِ. د خپل مور او پلار نافرماني به يې نه کوله.

۳. وَلَا يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ. او چغل خوري به يې نه کوله. (۱)

# د حسد اَسباب

امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ په "احياء العلوم" کې او امام رازي رَحِمَهُ اللّٰهُ په "تفسير کبير" کې د حسد اُووه (۷) اَسباب ذکر کړي، زه درته د هغې خلاصه په خپلو الفاظو کې رانقل کوم:

**اول سبب: "عداوت او بُغض"**: دا د حسد په اَسبابو کې غټ قِسم دی (اکثر حسد د همدې په وجه پيدا کيږي).

په عداوت او بُغض سره حسد ځکه پيدا کيږي چې څوک ده ته ضرر اُورسوي نو دا په زړه کې د هغه سره بُغض کوي او په هغه باندې غصه وي، بيا ددې غصې نه کِينه پيدا کيږي او ددې په وجه انسان دا غواړي چې د هغه بل نه بدل واخلي او خپل زړه وړباندې يَخ کړي، که په خپله ورنه بدل نشي اخيستی نو بيا اِنتظار کوي چې کله د وخت په تيريدلو په هغه باندې څه مصيبت راشي نو دا پرې خوشحاليږي، او که څه نِعمت ورته ملاؤ شي نو دا پرې خفه کيږي، نو ددې بُغض او عداوت په وجه په ده کې حسد پيدا شي.

دا قِسمه حسد په کافرانو کې ډيرۇ چې د مؤمنانو سره به يې کولو.

**دويم سبب: "خپل ځان مُعزز ګنړل"**: يعنی خپل ځان داسې معزز ګنړل چې بل څوک دده نه په مرتبه کې اُوچت نشي.

(۱) عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَالَ: لَمَّا تَعَجَّلَ مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ إِلٰى رَبِّهِ رَأٰى تَحْتَ الْعَرْشِ رَجُلًا فَغَبَطَهُ بِمَكَانِهِ، وَقَالَ: إِنَّ هٰذَا لَكَرِيْمٌ عَلٰى رَبِّهِ. فَسَأَلَ رَبَّهُ أَنْ يُخْبِرَهُ بِاسْمِهِ. فَلَمْ يُخْبِرْهُ. فَقَالَ: أُحَدِّثُكَ مِنْ أَمْرِهِ بِثَلَاثٍ: كَانَ لَا يَحْسُدُ النَّاسَ عَلٰى مَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ، وَكَانَ لَا يَعُقُّ وَالِدَيْهِ، وَلَا يَمْشِيْ بِالنَّمِيْمَةِ. الصمت وآداب اللسان لابن ابي الدنيا ج۱ ص۱۵۸ بَابُ ذَمِّ النَّمِيْمَةِ. نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم – صلى الله عليه وسلم ج۱۱ ص۵۶۷۱ النميمة، مساوىء الأخلاق للخرائطي ص۹۴. تفسير كبير ج۳ ص۶۳۵ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹، احياء علوم الدين ج۳ ص۱۸۸ بيان مذمّة الحسد، الزواجر ج۱ ص۹۱.

او دا حسد په انسان کې هغه وخت پيدا کيږي چې کله دده همزولي کس ته څه اُوچته مرتبه (عِلم، يا مال، يا بله غټه مرتبه) ملاؤ شي او هغه په ده باندې تکبّر کوي نو دا د هغه تکبّر نشي برداشت کولی، نو د هغه نه ددې نعمت زائله کولو خواهش کوي.

**دريم سبب : تکبر** : چې د چا په طبعيت کې تکبّر وي ( نور خلق ورته سپَک ښکاري او خپل ځان ورته اُوچت معلوميږي ) نو داسې کس غواړي چې دا نور خلق دې هميشه زما تابع وي او زما تکبّر دې برداشت کوي.

اوس که دې نورو خلقو ته څه نِعمت ملاؤ شي نو دا مُتکبِّر ورسره حسد کوي چې د هغوی نه دا نِعمت زائل شي، ځکه دا ويريږي چې ددې نِعمت په وجه به هغوی د ما سره برابر شي يا به په ما تکبّر اوکړي، نو بيا خو زما تکبّر نه برداشت کوي.

دا قِسمه حسد په کافرانو کې وُ چې دوی دا نه برداشت کوله چې پيغمبر عليه السلام ته څنګه پيغمبري ملاؤ شوه حالانکه دا خو يتيم دی.

**څلورم سبب : " تعجب "** : يعنی چې کله يو چا ته څه نعمت ملاؤ شي نو دا تعجّب اوکړي چې ده ته دا نعمت څنګه ملاؤ شو ؟ ( او ولې ورته ملاؤ شو ؟ ) نو ددې په وجه هم په ده کې د هغه سره حسد پيدا کيږي. په مخکيني اُمّتونو کې دا حسد زيات وُ.

**پنځم سبب : د مقاصدو فوت کيدو يره** : يعنی چې کله دوه (۲) کسان د يو نِعمت په وجه ځان يو مقصود ته رسول غواړي او دا نِعمت دده هغه بل ملګري ته دده نه مخکې ملاؤ شي نو دده سره دا يَره پيدا شي چې دا به هغه مقصود ته د ما نه مخکې اُورسي نو دا د هغه سره په دې نِعمت باندې حسد کوي.

دا حسد اکثر په دوه بَنو ( د يو خاوند په دوه ښځو ) کې وي، ځکه هره يوه دا کوشش کوي چې خاوند ته ځان نزدې کړي.

همدارنګې دا حسد اکثر په دوه ورونو کې هم وي ځکه هر يو دا کوشش کوي چې پلار ته ځان مُقرّب کړي چې مال وغيره ورنه حاصل کړي.

همدارنګې دا حسد په هغه دوه علماؤ کې هم وي کوم چې په خپل وعظ سره د يو قوم نه د مال حاصلولو کوشش کوي.

**شپږم سبب د اوچتې مرتبې محبت:** يعنی چې کله يو کس په يو فن يا يو صفت کې مشهور وي مثلاً په شجاعت، عِلم، تقوٰی، او مالداري کې، او دده دا خوښه وي چې د ما سره په دې صفت کې بل هيڅوک شريک نه وي ځکه ده د خلقو نه د خپل ځان ډير تعريفونه آوريدلي وي، اوس که چيرته بل چاته هم دا صفت ملاؤ شي او دا ورياندې خبر شي نو دا د هغه سره حسد کوي او دا تمنّا کوي چې کاش هغه کس مړ شي يا د هغه نه دا نعمت واخيستل شي ددې د پاره چې څوک زما برابر پيدا نشي.

**اووم سبب باطني خباثت او د الله تعالیٰ په نعمتونو باندې بُخل کول**

يعنی چې کله د يو چا باطن خبيث وي او دا د الله ﷻ په نعمتونو باندې بخيل وي نو چې کله دده د وړاندې د يو چا د ښه حالت يا په هغه باندې د نِعمتونو تذکره کولې شي نو په ده باندې دا سخته بده لږي، او چې د چا د بَدحالت تذکره کولې شي نو دا ورياندې ښه لږي، حالانکه دده او د هغه په مينځ کې هيڅ عداوت نه وي خو چونکه دده په باطن کې خباثت وي ددې په وجه د خلقو سره حسد کوي، نو ځکه د هغوی په نِعمتونو خفه کيږي او د هغوی په بَدی خوشحاليږي.

د حسد دا قِسم ډير خطرناک دی ځکه د حسد دا مخکيني شپږ اَسباب چې د کوم سبب په وجه پيدا شوي وو د هغې سبب په لرې کولو حسد ختميدې شو ليکن دا اُووم قِسم ختمول ډير سخت دی، ځکه دا قِسم حسد د طبعيت د خباثت په وجه پيدا شوې وي او په طبعي (جِبلي او خِلقي) صفاتو کې تبديلي ډيره سخته ده.

خلاصه دا چې حسد اکثره د همدې اُووه اَسبابو په وجه پيدا کيږي، په چا کې دا ټول اَسباب جمع وي او په چا کې يو يا دوه وغيره جمع وي.(۱)

---

(۱) احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۹۲ بيان اسباب الحسد والمنافسة، الموسوعة الفقهية الكويتية ج۱۷ ص ۲۷۱ حسد.

امام رازي رحمه الله په "تفسير كبير" کې د "احياء العلوم" په حواله دا اَسباب داسې ذکر کړي:

ذَكَرَ الشَّيْخُ الْغَزَالِيُّ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ لِلْحَسَدِ سَبْعَةَ أَسْبَابٍ: اَلسَّبَبُ الْأَوَّلُ: الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ. فَإِنَّ مَنْ آذَاهُ إِنْسَانٌ أَبْغَضَهُ قَلْبُهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ، وَ ذٰلِكَ الْغَضَبُ يُوَلِّدُ الْحِقْدَ وَالْحِقْدُ يَقْتَضِي التَّشَفِّيَ وَالْإِنْتِقَامَ. فَإِنْ عَجَزَ الْمُبْغِضُ عَنِ التَّشَفِّيْ بِنَفْسِهِ أَحَبَّ أَنْ يَتَشَفَّى مِنْهُ الزَّمَانُ. فَمَهْمَا أَصَابَ عَدُوَّهُ آفَةٌ وَبَلَاءٌ فَرِحَ، وَمَهْمَا أَصَابَتْهُ نِعْمَةٌ ←←←←←

←←← سَاءَتْهُ، وَذٰلِكَ لِأَنَّهُ ضِدُّ مُرَادِهِ. فَالحَسَدُ مِنْ لَوَازِمِ الْبُغْضِ وَالعَدَاوَةِ وَلَا يُفَارِقُهُمَا، وَأَقْصَى الإِمْكَانِ فِي هٰذَا الْبَابِ أَنْ لَا يُظْهِرَ تِلْكَ العَدَاوَةَ مِنْ نَفْسِهِ وَأَنْ يَكْرَهَ تِلْكَ الحَالَةَ مِنْ نَفْسِهِ. فَأَمَّا أَنْ يُبْغِضَ إِنْسَانًا ثُمَّ تَسْتَوِيَ عِنْدَهُ مَسَرَّتُهُ وَمَسَاءَتُهُ فَهٰذَا غَيْرُ مُمْكِنٍ، وَهٰذَا النَّوْعُ مِنَ الحَسَدِ هُوَ الَّذِي وَصَفَ اللهُ الْكُفَّارَ بِهِ. إِذْ قَالَ: وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ إِنَّ اللهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ. إِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا بِهَا [ آل عمران آية ۱۱۹، ۱۲۰ ] وَكَذَا قَالَ: وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ [آل عمران آية ۱۱۸]. وَاعْلَمْ أَنَّ الحَسَدَ رُبَّمَا أَفْضَى إِلَى التَّنَازُعِ وَالتَّقَاتُلِ.

اَلسَّبَبُ الثَّانِيْ: اَلتَّعَزُّزُ، فَإِنَّ وَاحِدًا مِنْ أَمْثَالِهِ إِذَا نَالَ مَنْصِبًا عَالِيًا تَرَفَّعَ عَلَيْهِ وَهُوَ لَا يُمْكِنُهُ تَحَمُّلُ ذٰلِكَ. فَيُرِيْدُ زَوَالَ ذٰلِكَ الْمَنْصِبِ عَنْهُ وَلَيْسَ مِنْ غَرَضِهِ أَنْ يَتَكَبَّرَ. بَلْ غَرَضُهُ أَنْ يَدْفَعَ كِبْرَهُ فَإِنَّهُ قَدْ يَرْضٰى بِمُسَاوَاتِهِ وَلٰكِنَّهُ لَا يَرْضٰى بِتَرَفُّعِهِ عَلَيْهِ. اَلسَّبَبُ الثَّالِثُ: أَنْ يَكُوْنَ فِيْ طَبِيْعَتِهِ أَنْ يَسْتَخْدِمَ غَيْرَهُ فَيُرِيْدُ زَوَالَ النِّعْمَةِ مِنْ ذٰلِكَ الْغَيْرِ لِيَقْدِرَ عَلٰى ذٰلِكَ الْغَرَضِ، وَمِنْ هٰذَا الْبَابِ كَانَ حَسَدُ أَكْثَرِ الْكُفَّارِ لِلرَّسُوْلِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِذْ قَالُوْا: كَيْفَ يَتَقَدَّمُ عَلَيْنَا غُلَامٌ يَتِيْمٌ وَكَيْفَ نُطَأْطِئُ لَهُ رُؤُوْسَنَا؟ فَقَالُوْا: لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْآنُ عَلٰى رَجُلٍ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ [الزخرف آية ۳۱] وَقَالَ تَعَالٰى يَصِفُ قَوْلَ قُرَيْشٍ: أَهٰؤُلَاءِ مَنَّ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنَا [الأنعام آية ۵۳] كَالِاسْتِحْقَارِ بِهِمْ وَالْأَنَفَةِ مِنْهُمْ.

اَلسَّبَبُ الرَّابِعُ: التَّعَجُّبُ كَمَا أَخْبَرَ اللهُ عَنِ الْأُمَمِ الْمَاضِيَةِ إِذْ قَالُوْا: مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا [ إبراهيم آية ۱۰ ]، وَقَالُوْا: أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَابِدُوْنَ [ المؤمنون آية ۴۷ ]، وَلَئِنْ أَطَعْتُمْ بَشَرًا مِثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا لَخَاسِرُوْنَ [ المؤمنون آية ۳۴ ] وَقَالُوْا مُتَعَجِّبِيْنَ: أَبَعَثَ اللهُ بَشَرًا رَسُوْلًا [ الإسراء آية ۹۴ ] وَقَالُوْا: لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَائِكَةُ [الفرقان آية ۲۱] وَقَالَ: أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ [ الأعراف آية ۶۳، ۶۹ ].

اَلسَّبَبُ الْخَامِسُ: اَلْخَوْفُ مِنْ فَوْتِ الْمَقَاصِدِ وَذٰلِكَ يَخْتَصُّ بِالْمُتَزَاحِمِيْنَ عَلٰى مَقْصُوْدٍ وَاحِدٍ، فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَحْسُدُ صَاحِبَهُ فِيْ كُلِّ نِعْمَةٍ تَكُوْنُ عَوْنًا لَهُ فِي الْإِنْفِرَادِ بِمَقْصُوْدِهِ، وَمِنْ هٰذَا الْبَابِ تَحَاسُدُ الضَّرَّاتِ فِي التَّزَاحُمِ عَلٰى مَقَاصِدِ الزَّوْجِيَّةِ، وَتَحَاسُدُ الْإِخْوَةِ فِي التَّزَاحُمِ عَلٰى نَيْلِ الْمَنْزِلَةِ فِيْ قُلُوْبِ الْأَبَوَيْنِ لِلتَّوَصُّلِ إِلٰى مَقَاصِدِ الْمَالِ وَالْكَرَامَةِ، وَكَذٰلِكَ تَحَاسُدُ الْوَاعِظِيْنَ الْمُتَزَاحِمِيْنَ عَلٰى أَهْلِ بَلْدَةٍ وَاحِدَةٍ، إِذْ كَانَ غَرَضُهُمَا نَيْلَ الْمَالِ وَالْقَبُوْلِ عِنْدَهُمْ. اَلسَّبَبُ السَّادِسُ: حُبُّ الرِّيَاسَةِ وَطَلَبُ الْجَاهِ لِنَفْسِهِ مِنْ غَيْرِ تَوَسُّلٍ بِهِ إِلٰى مَقْصُوْدِهِ، وَذٰلِكَ كَالرَّجُلِ الَّذِيْ يُرِيْدُ أَنْ يَكُوْنَ عَدِيْمَ النَّظِيْرِ فِيْ فَنٍّ مِنَ الْفُنُوْنِ، فَإِنَّهُ لَوْ سَمِعَ بِنَظِيْرٍ لَهُ فِيْ أَقْصَى الْعَالَمِ سَاءَهُ ذٰلِكَ وَأَحَبَّ مَوْتَهُ وَزَوَالَ النِّعْمَةِ الَّتِيْ بِهَا يُشَارِكُهُ فِي الْمَنْزِلَةِ مِنْ شَجَاعَةٍ أَوْ عِلْمٍ أَوْ زُهْدٍ أَوْ ثَرْوَةٍ وَيَفْرَحُ بِسَبَبِ تَفَرُّدِهِ. اَلسَّبَبُ السَّابِعُ: شُحُّ النَّفْسِ بِالْخَيْرِ عَلٰى عِبَادِ اللهِ، فَإِنَّكَ تَجِدُ مَنْ لَا يَشْتَغِلُ بِرِيَاسَةٍ وَلَا بِكِبْرٍ وَلَا بِطَلَبِ مَالٍ ←←←←←←←←←←←←

امام ماوردي رَحِمَهُ اللهُ په ادب الدّنيا والدّين کې د حسد د پاره درې اسباب ذکر کړي :
۱ . چې د چا سره حسد کولې شي د هغه سره بُغض کول .
۲ . خپل ځان په نورو باندې اُوچت ګڼړل ، او نور خلق د ځان نه په مرتبه کې اُوچت نه برداشت کول . ۳ . د الله عَزَّوَجَلَّ په نعمتونو باندې بُخل کول . (۱)

## په مقصد کې شريکو خلقو په مينځ کې حسد زيات وي

حسد اکثره په هغه خلقو کې زيات وي په کومو کې چې مذکوره اَسباب شريک وي ، يا په يو ځای کې اُوسېږي او مقصد يې شريک وي .
لکه عالِم د عالِم سره حسد کوي ، عابِد د عابِد سره ، تاجِر د تاجِر سره ، او دوه بَنې (د

---

←←← إِذَا وُصِفَ عِنْدَهُ حُسْنُ حَالِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللهِ شَقَّ عَلَيْهِ ذٰلِكَ، وَإِذَا وُصِفَ اضْطِرَابُ أُمُوْرِ النَّاسِ وَإِدْبَارُهُمْ وَتَنَغُّصُ عَيْشِهِمْ فَرِحَ بِهِ فَهُوَ أَبَدًا يُحِبُّ الْإِدْبَارَ لِغَيْرِهِ وَيَبْخَلُ بِنِعْمَةِ اللهِ عَلٰى عِبَادِهِ. كَأَنَّهُمْ يَأْخُذُوْنَ ذٰلِكَ مِنْ مِلْكِهِ وَخِزَانَتِهِ. وَيُقَالُ: اَلْبَخِيْلُ مَنْ بَخِلَ بِمَالِ غَيْرِهِ، فَهٰذَا يَبْخَلُ بِنِعْمَةِ اللهِ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ لَيْسَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَهُ لَا عَدَاوَةٌ وَلَا رَابِطَةٌ . وَهٰذَا لَيْسَ لَهُ سَبَبٌ ظَاهِرٌ إِلَّا خُبْثُ النَّفْسِ وَرَذَالَةُ جِبِلَّتِهِ فِي الطَّبْعِ. لِأَنَّ سَائِرَ أَنْوَاعِ الْحَسَدِ يُرْجٰى زَوَالُهُ لِإِزَالَةِ سَبَبِهِ، وَهٰذَا خُبْثٌ فِي الْجِبِلَّةِ لَا عَنْ سَبَبٍ عَارِضٍ فَتَعْسُرُ إِزَالَتُهُ . فَهٰذِهِ هِيَ أَسْبَابُ الْحَسَدِ. وَقَدْ يَجْتَمِعُ بَعْضُ هٰذِهِ الْأَسْبَابِ أَوْ أَكْثَرُهَا أَوْ جَمِيْعُهَا فِيْ شَخْصٍ وَاحِدٍ فَيَعْظُمُ فِيْهِ الْحَسَدُ ... تفسير كبير ج ۳ ص ۶۴۷ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ .

(۱) اِعْلَمْ أَنَّ دَوَاعِيَ الْحَسَدِ ثَلَاثَةٌ : أَحَدُهُمَا : بُغْضُ الْمَحْسُوْدِ فَيَأْسٰى عَلَيْهِ بِفَضِيْلَةٍ تَظْهَرُ ، أَوْ مَنْقَبَةٍ تُشْكَرُ . فَيُثِيْرُ حَسَدًا قَدْ خَامَرَ بُغْضًا . وَهٰذَا النَّوْعُ لَا يَكُوْنُ عَامًّا وَإِنْ كَانَ أَضَرَّهَا ، لِأَنَّهُ لَيْسَ يُبْغِضُ كُلَّ النَّاسِ . وَالثَّانِيْ : أَنْ يَظْهَرَ مِنَ الْمَحْسُوْدِ فَضْلٌ يَعْجِزُ عَنْهُ فَيَكْرَهُ تَقَدُّمَهُ فِيْهِ وَاخْتِصَاصَهُ بِهِ . فَيُثِيْرُ ذٰلِكَ حَسَدًا لَوْلَاهُ لَكَفَّ عَنْهُ . وَهٰذَا أَوْسَطُهَا ، لِأَنَّهُ لَا يَحْسُدُ الْأَكْفَاءُ مَنْ دَنَا ، وَإِنَّمَا يَخْتَصُّ بِحَسَدِ مَنْ عَلَا . وَقَدْ يَمْتَزِجُ بِهٰذَا النَّوْعِ ضَرْبٌ مِنَ الْمُنَافَسَةِ وَلٰكِنَّهَا مَعَ عَجْزٍ فَلِذٰلِكَ صَارَتْ حَسَدًا . وَالثَّالِثُ : أَنْ يَكُوْنَ فِي الْحَاسِدِ شُحٌّ بِالْفَضَائِلِ، وَبُخْلٌ بِالنِّعَمِ وَلَيْسَتْ إِلَيْهِ فَيَمْنَعُ مِنْهَا، وَلَا بِيَدِهِ فَيَدْفَعُ عَنْهَا ، لِأَنَّهَا مَوَاهِبُ قَدْ مَنَحَهَا اللهُ مَنْ شَاءَ فَيَسْخَطُ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ قَضَائِهِ، وَيَحْسُدُ عَلٰى مَا مَنَحَ مِنْ عَطَائِهِ. وَإِنْ كَانَتْ نِعَمُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ عِنْدَهُ أَكْثَرَ، وَمِنَحُهُ عَلَيْهِ أَظْهَرَ. وَهٰذَا النَّوْعُ مِنَ الْحَسَدِ أَعَمُّهَا وَأَخْبَثُهَا إِذْ لَيْسَ لِصَاحِبِهِ رَاحَةٌ، وَلَا لِرِضَاهُ غَايَةٌ. فَإِنِ اقْتَرَنَ بِشَرٍّ وَقُدْرَةٍ كَانَ جَوْرًا وَانْتِقَامًا. وَإِنْ صَادَفَ عَجْزًا وَمَهَانَةً كَانَ كَمَدًا وَسَقَامًا. ادب الدنيا والدين ص ۲۷۰ اَلْفَصْلُ السَّادِسُ فِي الْحَسَدِ وَالْمُنَافَسَةِ .

يو خاوند دوه ببيانې ) سره په خپل مينځ کې حسد کوي ، بيا خاصکر د خپل تره ځوي سره او د خپل ورور سره هم حسد زيات کولې شي . لهذا د حسد نه ځان ساتل په کار دي . (١)

## د حسد علاج

امام رازي رَحِمَهُ اللهُ په "تفسير کبير" کې او امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په "احياء العلوم" کې د حسد تفصيلي علاج ذکر کړی ، زه يې درته خلاصه رانقل کوم :

حسد د زړه بيماري ده او د زړه د بيمارۍ علاج په عِلم او عمَل دواړو سره کيږي :

## ١ . د حسد ختمولو د پاره عِلمي علاج

چې کله انسان د الله ﷻ په فيصله باندې راضي شي ، دا ورته معلومه شي چې په مخلوقاتو کې دا نعمتونه الله تعالی تقسيم کړي دي او زما په حسد سره د چا نه نعمت نه

---

(١) اِعْلَمْ أَنَّ الْحَسَدَ إِنَّمَا يَكْثُرُ بَيْنَ قَوْمٍ تَكْثُرُ فِيهِمُ الْأَسْبَابُ الَّتِيْ ذَكَرْنَاهَا، إِذِ الشَّخْصُ الْوَاحِدُ يَجُوزُ أَنْ يَحْسُدَ لِأَنَّهُ يَمْتَنِعُ مِنْ قَبُولِ الْمُتَكَبِّرِ وَلِأَنَّهُ يَتَكَبَّرُ وَلِأَنَّهُ عَدُوٌّ لِغَيْرِ ذَلِكَ مِنَ الْأَسْبَابِ . وَهٰذِهِ الْأَسْبَابُ إِنَّمَا تَكْثُرُ بَيْنَ قَوْمٍ تَجْمَعُهُمْ رَوَابِطُ يَجْتَمِعُوْنَ بِسَبَبِهَا فِيْ مَجَالِسِ الْمُخَاطَبَاتِ وَيَتَوَارَدُوْنَ عَلَى الْأَغْرَاضِ ، وَالْمُنَازَعَةُ مَظِنَّةُ الْمُنَافَرَةِ . وَالْمُنَافَرَةُ مُؤَدِّيَةٌ إِلَى الْحَسَدِ فَحَيْثُ لَا مُخَالَطَةَ فَلَيْسَ هُنَاكَ مُحَاسَدَةٌ . وَلَمَّا لَمْ تُوجَدِ الرَّابِطَةُ بَيْنَ شَخْصَيْنِ فِيْ بَلَدَيْنِ لَا جَرَمَ لَمْ يَكُنْ بَيْنَهُمَا مُحَاسَدَةٌ . فَلِذٰلِكَ تَرَى الْعَالِمَ يَحْسُدُ الْعَالِمَ دُوْنَ الْعَابِدِ، وَالْعَابِدَ يَحْسُدُ الْعَابِدَ دُوْنَ الْعَالِمِ، وَالتَّاجِرَ يَحْسُدُ التَّاجِرَ. بَلِ الْإِسْكَافُ يَحْسُدُ الْإِسْكَافَ وَلَا يَحْسُدُ الْبَزَّازَ. وَيَحْسُدُ الرَّجُلُ أَخَاهُ وَابْنَ عَمِّهِ أَكْثَرَ مِمَّا يَحْسُدُ الْأَجَانِبَ ، وَالْمَرْأَةُ تَحْسُدُ ضَرَّتَهَا وَسُرِّيَّةَ زَوْجِهَا أَكْثَرَ مِمَّا تَحْسُدُ أُمَّ الزَّوْجِ وَابْنَتَهُ . لِأَنَّ مَقْصِدَ الْبَزَّازِ غَيْرُ مَقْصِدِ الْإِسْكَافِ فَلَا يَتَزَاحَمُوْنَ عَلَى الْمَقَاصِدِ، ثُمَّ مُزَاحَمَةُ الْبَزَّازِ الْمُجَاوِرِ لَهُ أَكْثَرُ مِنْ مُزَاحَمَةِ الْبَعِيدِ عَنْهُ إِلَى طَرَفِ السُّوْقِ ، وَبِالْجُمْلَةِ فَأَصْلُ الْحَسَدِ الْعَدَاوَةُ وَأَصْلُ الْعَدَاوَةِ التَّزَاحُمُ عَلَى غَرَضٍ وَاحِدٍ ، وَالْغَرَضُ الْوَاحِدُ لَا يَجْمَعُ مُتَبَاعِدَيْنِ بَلْ لَا يَجْمَعُ إِلَّا مُتَنَاسِبَيْنِ، فَلِذٰلِكَ يَكْثُرُ الْحَسَدُ بَيْنَهُمْ. نَعَمْ مَنِ اشْتَدَّ حِرْصُهُ عَلَى الْجَاهِ الْعَرِيْضِ وَالصِّيْتِ فِيْ أَطْرَافِ الْعَالَمِ فَإِنَّهُ يَحْسُدُ كُلَّ مَنْ فِي الْعَالَمِ مِمَّنْ يُشَارِكُهُ فِي الْخَصْلَةِ الَّتِيْ يَتَفَاخَرُ بِهَا . تفسير كبير ج ٣ ص ٦٤٩ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، احياء علوم الدين ج٣ ص١٩٢ بيان الحسد و المنافسة .

اخيستل کيږي نو داسې کس به د هيچا سره حسد اونکړي .

((( يعنى چې کله انسان دا سوچ اوکړي چې الله تعالى دا ټول عالم پيدا کړى ، بيا يې د خپل حِکمت او مصلحت په بِناء خلقو ته مختلف قِسمه نعمتونه ورکړي :

چاته يې د مال و دولت نِعمت ورکړى ، چاته يې د ښه صحت نعمت ورکړى ، چاته يې د عِلم نعمت ورکړى ، او چاته يې نور خاص نعمتونه ورکړي ، دا ټول د تقدير فيصلې دي ، په دې باندې ناراضه کيدل ندي په کار ، ځکه د الله ﷻ په فيصله باندې ناراضه کيدل په هغه باندې اعتراض کول دي،نو چې کله انسان دا سوچ اوکړي نو دا به د هيچا سره حسد اونکړي

بل دا چې الله تعالى چې ده ته دا بعضې نِعمتونه ندي ورکړي نو کيدې شي په دې کې هم دده خير وي ځکه که دا بعضې نعمتونه يې ده ته هم ورکړي وى نو کيدې شي چې ددې په وجه دا په فساد کې اَخته شوې وى ، ځکه خو الله تعالى فرمايي :

﴿ وَلَا تَتَمَنَّوۡا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعۡضَكُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ ؕ ﴾ (١)

ترجمه : او الله تعالى چې په تاسو کې يو له په بل باندې کوم فضيلت ورکړى تاسو د هغې تمنّا مه کوئ .

په هر انسان باندې هم الله ﷻ بې شماره نعمتونه کړي که انسان دا ځان ته رامُستَحضر کړي نو بيا به هيڅ کله د بل چا په نعمتونو باندې حسد اونکړي ))) .

بل دا چې کله حسد کوونکي ته دا خبره يقيني معلومه شي چې ددې حسد په وجه زما دِين او دُنيا دواړو ته نقصان رسي ، او زه چې د چا سره حسد کوم د هغه دِين او دُنيا ته هيڅ نقصان نه رسي بلکه اَلټه هغه ته پرې فائده رسي ، او دا حسد کوونکې د خپل ځان دُشمن هم نه وي نو داسې کس به هيڅ کله د چا سره حسد اونکړي . (٢)

---

(١) النساء آية ٣٢ .

(٢) امام رازي رَحِمَهُ اللّٰهُ په " تفسير کبير " کې د حسد علاج داسې ذکر کړى : اَلۡمَسۡأَلَةُ السَّادِسَةُ: فِي الدَّوَاءِ الۡمُزِيۡلِ لِلۡحَسَدِ ، وَهُوَ أَمۡرَانِ : اَلۡعِلۡمُ وَالۡعَمَلُ. أَمَّا الۡعِلۡمُ فَفِيۡهِ مَقَامَانِ : إِجۡمَالِيٌّ وَتَفۡصِيۡلِيٌّ . أَمَّا الۡإِجۡمَالِيُّ فَهُوَ أَنۡ يَعۡلَمَ أَنَّ كُلَّ مَا دَخَلَ فِي الۡوُجُوۡدِ فَقَدۡ كَانَ ذٰلِكَ مِنۡ لَوَازِمِ قَضَاءِ اللّٰهِ وَقَدَرِهٖ . لِأَنَّ الۡمُمۡكِنَ مَا لَمۡ يَنۡتَهِ إِلَى الۡوَاجِبِ لَمۡ يَقِفۡ ، وَمَتٰى كَانَ كَذٰلِكَ فَلَا فَائِدَةَ فِي النَّفۡرَةِ عَنۡهُ ، وَإِذَا حَصَلَ الرِّضَا بِالۡقَضَاءِ ←←←←←←←←←←

د دې آخري خبرې لږ تفصيل درته بيانوم چې پوره واضحه شي :

## تفصيل : د حسد په وجه د حسد کوونکي دين ته ضرر رسيدل

د حسد په وجه دانسان دِين ته ځکه نقصان رسي چې حسد کوونکی د الله تعالی فيصله بده ګڼړي ، او الله ﷻ چې په خلقو کې د نعمتونو کوم تقسيم کړی دا په هغې باندې راضي نه وي ، بلکه د الله ﷻ په تقسيم باندې اعتراض کوي چې فلانکي ته يې دا نِعمت ولې ورکړی ؟ او د الله ﷻ په تقسيم باندې اعتراض کول د انسان د اِيمان د پاره سخته نقصاني خبره ده .

دويم دا چې څوک د يو مسلمان سره حسد کوي نو دا په دې سره د الله ﷻ د دوستانو نه لرې کېږي ، ابليس او نورو کافرانو ته نزدې کېږي ، ځکه د الله ﷻ دوستان دا خوښوي چې مسلمانانو ته نعمتونه ملاوْ شي ، او ابليس او کافران دا خوښوي چې د مسلمانانو نه نعمتونه زائل شي او مصيبتونه ورباندې راشي . نو حسد کوونکی په خپل حسد سره د الله ﷻ دوستانو نه لرې کېږي ، اِبليس او کافرانو ته نزدې کېږي .

دريم دا چې د حسد په وجه انسان د آخرت د سختو عذابونو مستحق ګرځي .

څلورم دا چې حسد د انسان نېک اعمال داسې ختموي لکه اُور چې لرګي ختموي .

## د حسد په وجه د حسد کوونکي دُنيا ته ضرَر رسيدل

د حسد په وجه د حسد کوونکي دُنيا ته هم ضرَر رسي ځکه حاسِد هر وخت په غم او خفګان کې مبتلاء وي ، دا چې کله د بل چا نعمتونه ګوري نو همداسې د حسد په اُور باندې

---

تفسير کبير ج ۳ ص ۶۴۹ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ .

←←←← زَالَ الحَسَدُ . امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : اِعْلَمْ أَنَّ الحَسَدَ مِنَ الأَمْرَاضِ العَظِيْمَةِ لِلْقُلُوْبِ وَلَا تُدَاوٰى أَمْرَاضُ القُلُوْبِ إِلَّا بِالعِلْمِ وَالعَمَلِ . وَالعِلْمُ النَّافِعُ لِمَرَضِ الحَسَدِ هُوَ أَنْ تَعْرِفَ تَحْقِيْقًا أَنَّ الحَسَدَ ضَرَرٌ عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا وَالدِّيْنِ وَأَنَّهُ لَا ضَرَرَ فِيْهِ عَلَى المَحْسُوْدِ فِي الدُّنْيَا وَالدِّيْنِ بَلْ يَنْتَفِعُ بِهِ فِيْهِمَا ، وَمَهْمَا عَرَفْتَ هٰذَا عَنْ بَصِيْرَةٍ وَلَمْ تَكُنْ عَدُوَّ نَفْسِكَ وَصَدِيْقَ عَدُوِّكَ فَارَقْتَ الحَسَدَ لَا مَحَالَةَ . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۹۶ بَيَانُ الدَّوَاءِ الَّذِيْ يَنْفِيْ مَرَضَ الحَسَدِ عَنِ القَلْبِ .

سوزي ، تر دې چې د ډېر خفګان په وجه يې وجود هم بيمار شي ، وسوسې يې هم زياتې شي، سينه يې تنګه شي ، د خوراک او څکاک خوند يې هم ختم شي.

## د حسد په وجه محسود ته هيڅ ضرر نه رسي

د حسد په وجه محسود (يعنی چا سره چې حسد کولې شي ، هغه) ته هيڅ ضرر نه رسي ، د هغه نه نعمتونه نه زائله کېږي ، ځکه الله تعالی چې د هغه د پاره په تقدير کې دا نعمتونه د هر څومره وخت د پاره ليکلي وي تر هماغې وخته پورې به ورسره وي ، دده د حسد په وجه ورنه نه زائله کېږي.(۱)

## که د حسد په وجه د بل چا نه څه نعمت زائل کيدی نو اول به دده نه ټول نعمتونه زائل شوي وو

کله يو کس دا تمنا کوي چې زما د حسد په وجه دې د هغه بل کس نه دا نعمتونه زائل شي

(۱) امام رازي رحمه الله فرمايي : وَأَمَّا التَّفْصِيْلِيُّ فَهُوَ أَنْ تَعْلَمَ أَنَّ الْحَسَدَ ضَرَرٌ عَلَيْكَ فِي الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا، وَأَنَّهُ لَيْسَ فِيْهِ عَلَى الْمَحْسُوْدِ ضَرَرٌ فِي الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا، بَلْ يَنْتَفِعُ بِهِ فِي الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا. أَمَّا أَنَّهُ ضَرَرٌ عَلَيْكَ فِي الدِّيْنِ فَمِنْ وُجُوْهٍ : أَحَدُهَا: أَنَّكَ بِالْحَسَدِ كَرِهْتَ حُكْمَ اللهِ وَنَازَعْتَهُ فِي قِسْمَتِهِ الَّتِيْ قَسَمَهَا لِعِبَادِهِ وَعَدْلِهِ الَّذِيْ أَقَامَهُ فِي خَلْقِهِ بِخَفِيِّ حِكْمَتِهِ، وَهٰذِهِ جِنَايَةٌ عَلَى حَدَقَةِ التَّوْحِيْدِ وَقَذًى فِي عَيْنِ الْإِيْمَانِ. وَثَانِيْهَا: أَنَّكَ إِنْ غَشَشْتَ رَجُلًا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَارَقْتَ أَوْلِيَاءَ اللهِ فِي حُبِّهِمُ الْخَيْرَ لِعِبَادِ اللهِ وَشَارَكْتَ إِبْلِيْسَ وَسَائِرَ الْكُفَّارِ فِي مَحَبَّتِهِمْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ الْبَلَايَا. وَثَالِثُهَا: الْعِقَابُ الْعَظِيْمُ الْمُرَتَّبُ عَلَيْهِ فِي الْآخِرَةِ. وَأَمَّا كَوْنُهُ ضَرَرًا عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ أَنَّكَ بِسَبَبِ الْحَسَدِ لَا تَزَالُ تَكُوْنُ فِي الْغَمِّ وَالْكَمَدِ وَأَعْدَاؤُكَ لَا يُخَلِّيْهِمُ اللهُ مِنْ أَنْوَاعِ النِّعَمِ فَلَا تَزَالُ تَتَعَذَّبُ بِكُلِّ نِعْمَةٍ تَرَاهَا وَتَتَأَلَّمُ بِكُلِّ بَلِيَّةٍ تَنْصَرِفُ عَنْهُمْ فَتَبْقَى أَبَدًا مَغْمُوْمًا مَهْمُوْمًا. فَقَدْ حَصَلَ لَكَ مَا أَرَدْتَ حُصُوْلَهُ لِأَعْدَائِكَ وَأَرَادَ أَعْدَاؤُكَ حُصُوْلَهُ لَكَ فَقَدْ كُنْتَ تُرِيْدُ الْمِحْنَةَ لِعَدُوِّكَ فَسَعَيْتَ فِي تَحْصِيْلِ الْمِحْنَةِ لِنَفْسِكَ. ثُمَّ إِنَّ ذٰلِكَ الْغَمَّ إِذَا اسْتَوْلَى عَلَيْكَ أَمْرَضَ بَدَنَكَ وَأَزَالَ الصِّحَّةَ عَنْكَ وَأَوْقَعَكَ فِي الْوَسَاوِسِ وَنَغَّصَ عَلَيْكَ لَذَّةَ الْمَطْعَمِ وَالْمَشْرَبِ. وَأَمَّا أَنَّهُ لَا ضَرَرَ عَلَى الْمَحْسُوْدِ فِي دِيْنِهِ وَدُنْيَاهُ فَوَاضِحٌ لِأَنَّ النِّعْمَةَ لَا تَزُوْلُ عَنْهُ بِحَسَدِكَ. بَلْ مَا قَدَّرَهُ اللهُ مِنْ إِقْبَالٍ وَنِعْمَةٍ فَلَا بُدَّ وَأَنْ يَدُوْمَ إِلَى أَجَلٍ قَدَّرَهُ اللهُ. فَإِنْ كَانَ كُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِمِقْدَارٍ وَلِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ، وَمَهْمَا لَمْ تَزِلِ النِّعْمَةُ بِالْحَسَدِ لَمْ يَكُنْ عَلَى الْمَحْسُوْدِ ضَرَرٌ فِي الدُّنْيَا وَلَا عَلَيْهِ إِثْمٌ فِي الْآخِرَةِ. تفسير كبير ج ۳ ص ۶۳۹ سورة البقرة في تفسير آية ۱۰۹ ، احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۹۶ بَيَانُ الدَّوَاءِ الَّذِيْ يَنْفِيْ مَرَضَ الْحَسَدِ عَنِ الْقَلْبِ.

نو دا غټ جهالت دی ، ځکه که د حسد په وجه د بل چا نه نعمتونه زائل کيدی نو بيا خو په کار ده چې دده نه هم ټول نعمتونه زائل شوي وی ځکه دده د نعمتونو سره به هم خامخا څوک حسد کوونکی وي ، نو دا خو بيا دده د پاره هم نقصاني ده .

همدا رنګې په کار ده چې دده نه ايمان هم زائل شوې وی ځکه کافران د مسلمانانو سره د ايمان په وجه حسد کوي . (١)

او که يو کس دا وايي چې زه د چا سره حسد کوم د هغه نه دې نعمتونه زائل شي او د ماسره چې څوک حسد کوي د مانه دې نعمتونه زائل نشي نو داسې کس هم غټ جاهِل دی ، ځکه هر حسد کوونکی همدا غواړي ، څوک چې دده سره حسد کوي هغه هم همدا غواړي. نو په کار ده چې د هغه د حسد په وجه دده نه دا نعمتونه زائل شي . (٢)

## د حسد په وجه مَحسود ته د دِين او دُنيا دواړو فائده رسي

د حسد په وجه مَحسود (يعنی د چا سره چې حسد کولې شي ، هغه) ته د دِين او دُنيا دواړو فائده رسي :

د دِين فائده ورته دا رسي چې کله هغه سره حسد کولې شي نو هغه مظلوم شو ، بيا خاصکر چې د محسود غِيبت اوکړې شي ، يا ورپسې بدې خبرې اوکړې شي ، يا د هغه بې عزتي اوکړې شي نو په دې سره د حاسِد د عمَلنامې نه نېک اعمال ځي او د هغه په عمَلنامه کې جمع کيږي ، بيا که دده سره نېک اعمال ختم شي نو د هغه ګناهونه دده عملنامې ته

---

(١) الله تعالی فرمايي : ﴿ وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ بَعْدِ إِيمٰنِكُمْ كُفَّارًا ۚ حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ﴾ . البقرة آية ١٠٩ .

(٢) امام رازي رَحِمَهُ الله فرمايي : وَلَعَلَّكَ تَقُوْلُ : لَيْتَ النِّعْمَةَ كَانَتْ لِيْ وَتَزُوْلُ عَنِ الْمَحْسُوْدِ بِحَسَدِيْ ، وَهٰذَا غَايَةُ الْجَهْلِ فَإِنَّهُ بَلَاءٌ تَشْتَهِيْهِ أَوَّلًا لِنَفْسِكَ فَإِنَّكَ أَيْضًا لَا تَخْلُوْا عَنْ عَدُوٍّ يَحْسُدُكَ ، فَلَوْ زَالَتِ النِّعْمَةُ بِالْحَسَدِ لَمْ يَبْقَ لِلّٰهِ عَلَيْكَ نِعْمَةٌ لَا فِي الدِّيْنِ وَلَا فِي الدُّنْيَا ، وَإِنِ اشْتَهَيْتَ أَنْ تَزُوْلَ النِّعْمَةُ عَنِ الْخَلْقِ بِحَسَدِكَ وَلَا تَزُوْلَ عَنْكَ بِحَسَدِ غَيْرِكَ فَهٰذَا أَيْضًا جَهْلٌ ، فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْ حَمْقَى الْحُسَّادِ يَشْتَهِيْ أَنْ يَخْتَصَّ بِهٰذِهِ الْخَاصِيَّةِ ، وَلَسْتَ أَوْلٰى بِذٰلِكَ مِنَ الْغَيْرِ . فَنِعْمَةُ اللهِ عَلَيْكَ فِيْ أَنْ لَمْ يُزِلِ النِّعْمَةَ بِالْحَسَدِ مِمَّا يَجِبُ شُكْرُهَا عَلَيْكَ وَأَنْتَ بِجَهْلِكَ تَكْرَهُهَا . تفسير كبير ج ٣ ص ٦٥٠ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ١٩٦ بَيَانُ الدَّوَاءِ الَّذِيْ يَنْفِيْ مَرَضَ الْحَسَدِ عَنِ الْقَلْبِ .

راځي ، نو په دې کې د مَحسود دِيني فائده ده ، او د حاسِد په کې نقصان دی .

د حسد په وجه مَحسود ته دُنيوي فائده دا رَسي چې کله هغه خبر شي چې فلانکی کس د ماسره حسد کوي او زما د نعمتونو په وجه سوزي نو محسود خوشحاليږي چې پرېږده چې حاسد د خپل حسد په اُور کې نور هم اُوسوزي نو ښه ده .

دويم دا چې حسد کوونکی د حسد په وجه د نورو خلقو هم بدي شي او د الله ﷻ د طرفه پرې هم لعنت راوريږي ، نو محسود چې حاسِد داسې ذليل اوګوري نو پرې خوشحاليږي .

نو چې کله يو هوښيار کس د حسد دا نقصانات ځانته رامخې ته کړي نو دا به هيڅ کله د چا سره د څه نعمت په وجه حسد اونکړي . (۱)

---

(۱) امام رازي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : وَأَمَّا أَنَّ الْمَحْسُوْدَ يَنْتَفِعُ بِهٖ فِي الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا فَوَاضِحٌ . أَمَّا مَنْفَعَتُهٗ فِي الدِّيْنِ فَهُوَ أَنَّهٗ مَظْلُوْمٌ مِنْ جِهَتِكَ . لَا سِيَّمَا إِذَا أَخْرَجْتَ الْحَسَدَ إِلَى الْقَوْلِ وَالْفِعْلِ بِالْغِيْبَةِ وَالْقَدْحِ فِيْهِ وَهَتْكِ سِتْرِهٖ وَذِكْرِ مَسَاوِئِهٖ . فَهِيَ هَدَايَا يُهْدِيْهَا اللهُ إِلَيْهِ . أَعْنِيْ أَنَّكَ تُهْدِيْ إِلَيْهِ حَسَنَاتِكَ فَإِنَّكَ كُلَّمَا ذَكَرْتَهٗ بِسُوْءٍ نَقَلَ إِلٰى دِيْوَانِهٖ حَسَنَاتَكَ وَازْدَادَتْ سَيِّئَاتُكَ . فَكَأَنَّكَ اشْتَهَيْتَ زَوَالَ نِعَمِ اللهِ عَنْهُ إِلَيْكَ فَأُزِيْلَتْ نِعَمُ اللهِ عَنْكَ إِلَيْهِ . وَلَمْ تَزَلْ فِيْ كُلِّ حِيْنٍ وَأَوَانٍ تَزْدَادُ شَقَاوَةً . وَأَمَّا مَنْفَعَتُهٗ فِي الدُّنْيَا فَمِنْ وُجُوْهٍ : اَلْأَوَّلُ: أَنَّ أَهَمَّ أَغْرَاضِ الْخَلْقِ مَسَاءَةُ الْأَعْدَاءِ وَكَوْنُهُمْ مَغْمُوْمِيْنَ مُعَذَّبِيْنَ وَلَا عَذَابَ أَعْظَمُ مِمَّا أَنْتَ فِيْهِ مِنْ أَلَمِ الْحَسَدِ . بَلِ الْعَاقِلُ لَا يَشْتَهِيْ مَوْتَ عَدُوِّهٖ بَلْ يُرِيْدُ طُوْلَ حَيَاتِهٖ لِيَكُوْنَ فِيْ عَذَابِ الْحَسَدِ لِيَنْظُرَ فِيْ كُلِّ حِيْنٍ وَأَوَانٍ إِلٰى نِعَمِ اللهِ عَلَيْهِ فَيَتَقَطَّعَ قَلْبُهٗ بِذٰلِكَ . وَلِذٰلِكَ قِيْلَ : لَا مَاتَ أَعْدَاؤُكَ بَلْ خُلِّدُوْا ✿ حَتّٰى يَرَوْا مِنْكَ الَّذِيْ يُكْمِدُ

لَا زِلْتَ مَحْسُوْدًا عَلٰى نِعْمَةٍ ✿ فَإِنَّمَا الْكَامِلُ مَنْ يُحْسَدُ

اَلثَّانِيْ : أَنَّ النَّاسَ يَعْلَمُوْنَ أَنَّ الْمَحْسُوْدَ لَا بُدَّ وَأَنْ يَكُوْنَ ذَا نِعْمَةٍ فَيَسْتَدِلُّوْنَ بِحَسَدِ الْحَاسِدِ عَلٰى كَوْنِهٖ مَخْصُوْصًا مِنْ عِنْدِ اللهِ بِأَنْوَاعِ الْفَضَائِلِ وَالْمَنَاقِبِ . وَأَعْظَمُ الْفَضَائِلِ مِمَّا لَا يُسْتَطَاعُ دَفْعُهٗ وَهُوَ الَّذِيْ يُوْرِثُ الْحَسَدَ فَصَارَ الْحَسَدُ مِنْ أَقْوَى الدَّلَائِلِ عَلَى اتِّصَافِ الْمَحْسُوْدِ بِأَنْوَاعِ الْفَضَائِلِ وَالْمَنَاقِبِ . اَلثَّالِثُ: أَنَّ الْحَاسِدَ يَصِيْرُ مَذْمُوْمًا بَيْنَ الْخَلْقِ مَلْعُوْنًا عِنْدَ الْخَالِقِ . وَهٰذَا مِنْ أَعْظَمِ الْمَقَاصِدِ لِلْمَحْسُوْدِ . اَلرَّابِعُ : وَهُوَ أَنَّهٗ سَبَبٌ لِازْدِيَادِ مَسَرَّةِ إِبْلِيْسَ وَذٰلِكَ لِأَنَّ الْحَاسِدَ لَمَّا خَلَا عَنِ الْفَضَائِلِ الَّتِيْ اخْتَصَّ الْمَحْسُوْدُ بِهَا فَإِنْ رَضِيَ بِذٰلِكَ اسْتَوْجَبَ الثَّوَابَ الْعَظِيْمَ فَخَافَ إِبْلِيْسُ مِنْ أَنْ يَرْضٰى بِذٰلِكَ فَيَصِيْرَ مُسْتَوْجِبًا لِذٰلِكَ الثَّوَابِ . فَلَمَّا لَمْ يَرْضَ بِهٖ بَلْ أَظْهَرَ الْحَسَدَ فَاتَهٗ ذٰلِكَ الثَّوَابُ وَاسْتَوْجَبَ الْعِقَابَ فَيَصِيْرُ ذٰلِكَ سَبَبًا لِفَرَحِ إِبْلِيْسَ وَغَضَبِ اللهِ تَعَالٰى ... تفسير كبير ج ۳ ص ۶۵۰ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۹۷ بَيَانُ الدَّوَاءِ الَّذِيْ يَنْفِيْ مَرَضَ الْحَسَدِ عَنِ الْقَلْبِ .

# ٢. د حسد ختمولو د پاره عملي علاج

د حسد ختمولو د پاره عمَلي علاج دادی چې د حسد په وجه د انسان نه کوم کارونه پيدا شوي وي هغه ختم کړي: که د حسد په وجه ده د مَحسود غِيبت کولو ، يا يې د هغه پسې بدې خبرې کولی نو ددې علاج دادی چې خپله ژبه دې د هغه پسې د غيبت او بدو خبرو کولو نه کنټرول کړي ، او د هغه صفت دې شروع کړي.

که په ده کې د تکبّر په وجه د هغه سره حسد پيدا شوې وي نو په ځان کې دې تواضع پيدا کړي. که د حسد په وجه ده د هغه سره احسان نه کولو نو د هغه سره دې احسان شروع کړي.

نو چې کله دا د هغه صفت شروع کړي ، د هغه د وړاندې تواضع کوي ، او د هغه سره اِحسان کول شروع کړي نو خامخا هغه به هم ده سره محبت کول شروع کړي ، نو د ده د زړه نه به د هغه سره حسد ختم شي.

اګر چې په اول کې به ده ته دا کارونه کول سخت معلوميږي خو ددې فائده به په آخر کې په خپله اوګوري ، او چې دا سختي برداشت نکړي نو د هغه محبت نشي حاصلولی.

مشهوره خبره ده چې: څوک د ترخې دوا په خوړلو باندې صبر اونکړي نو دا به د شِفاء خوږوالی او نه ګوري. (١)

---

(١) امام رازي رَحِمَهُ اللّٰہ فرمايي: وَأَمَّا الْعَمَلُ النَّافِعُ فَهُوَ أَنْ يَأْتِيَ بِالْأَفْعَالِ الْمُضَادَّةِ لِمُقْتَضَيَاتِ الْحَسَدِ، فَإِنْ بَعَثَهُ الْحَسَدُ عَلَى الْقَدْحِ فِيهِ كَلَّفَ لِسَانَهُ الْمَدْحَ لَهُ ، وَإِنْ حَمَلَهُ عَلَى التَّكَبُّرِ عَلَيْهِ كَلَّفَ نَفْسَهُ التَّوَاضُعَ لَهُ . وَإِنْ حَمَلَهُ عَلَى قَطْعِ أَسْبَابِ الْخَيْرِ عَنْهُ كَلَّفَ نَفْسَهُ السَّعْيَ فِي إِيصَالِ الْخَيْرَاتِ إِلَيْهِ ، فَمَهْمَا عَرَفَ الْمَحْسُودُ ذٰلِكَ طَابَ قَلْبُهُ وَأَحَبَّ الْحَاسِدَ . وَذٰلِكَ يُفْضِي آخِرَ الْأَمْرِ إِلَى زَوَالِ الْحَسَدِ مِنْ وَجْهَيْنِ : الْأَوَّلُ: أَنَّ الْمَحْسُودَ إِذَا أَحَبَّ الْحَاسِدَ فَعَلَ مَا يُحِبُّهُ الْحَاسِدُ فَحِينَئِذٍ يَصِيرُ الْحَاسِدُ مُحِبًّا لِلْمَحْسُودِ وَيَزُولُ الْحَسَدُ حِينَئِذٍ. الثَّانِي: أَنَّ الْحَاسِدَ إِذَا أَتَى بِضِدِّ مُوجِبَاتِ الْحَسَدِ عَلَى سَبِيلِ التَّكَلُّفِ يَصِيرُ ذٰلِكَ بِالْآخِرَةِ طَبْعًا لَهُ فَيَزُولُ الْحَسَدُ عَنْهُ. تفسير كبير ج ٣ ص ٦٥١ سورة البقرة في تفسير آية ١٠٩.

امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰہ د حسد علاج ذکر کولو په آخر کې فرمايي: فَهٰذِهِ هِيَ أَدْوِيَةُ الْحَسَدِ وَهِيَ نَافِعَةٌ جِدًّا إِلَّا أَنَّهَا مُرَّةٌ عَلَى الْقُلُوبِ جِدًّا وَلٰكِنَّ النَّفْعَ فِي الدَّوَاءِ الْمُرِّ . فَمَنْ لَمْ يَصْبِرْ عَلَى مَرَارَةِ الدَّوَاءِ لَمْ يَنَلْ حَلَاوَةَ الشِّفَاءِ . وَإِنَّمَا تَهُونُ مَرَارَةُ هٰذَا الدَّوَاءِ أَعْنِي التَّوَاضُعَ لِلْأَعْدَاءِ وَالتَّقَرُّبَ إِلَيْهِمْ بِالْمَدْحِ وَالثَّنَاءِ بِقُوَّةِ الْعِلْمِ بِالْمَعَانِي الَّتِي ذَكَرْنَاهَا وَقُوَّةِ الرَّغْبَةِ فِي ثَوَابِ الرِّضَا بِقَضَاءِ اللّٰهِ تَعَالَى... احياء علوم الدين ج٣ ص١٩٧ .

## مرګ يادولو سره هم حسد ختميږي

حضرت ابودَرداء ﷺ فرمايي :

مَاأَكْثَرَ عَبْدٌ ذِكْرَ الْمَوْتِ إِلَّا قَلَّ فَرَحُهُ ، وَقَلَّ حَسَدُهُ . (۱)

کوم بنده چې مرګ ډير يادوي نو دده (د تکبّر) خوشحالي به کمه وي ، او حسد به يې هم کم وي .

## په دُنياوي معاملاتو کې د ځان نه ښکته کس ته کتل په کار دي

په هر انسان باندې الله تعالی بې شماره نعمتونه کړي دي ، اوس چې انسان خپلو نعمتونو ته نه ګوري بلکه د نورو خلقو نعمتونو ته ګوري نو ضرور به په ده کې حسد پيدا کيږي . لهذا انسان ته په کار دي چې په دُنياوي معاملاتو کې هميشه د ځان نه کم کس ته اوګوري نو په دې سره به په ده کې حسد نه پيدا کيږي .

البته په دِيني معاملاتو هميشه د ځان نه پورته کس ته په کار دي نو بيا به کامياب وي .

## د غريبانانو سره اُوسيدو په وجه راحت ملاويدل

عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې زه ډيره زمانه د مالدارو خلقو په مَحله کې اُوسيدم او د هغوی سره به په مجلس کې کيناستم نو په دغه وخت کې به هميشه زه غمجَن ووم ، ځکه چې کله به ما د هغوی ښې کپړې ، ښې سوَرلۍ او ښه کورونه کتل نو ما به په خپل زړه کې ويل چې " دوی ته دا نعمتونه ملاؤ شوي او ماته ندي ملاؤ شوي " نو زه به اکثر خفه ووم . بيا ما د غريبانانو مَحلې ته کور رانقل کړو نو زه به بيا هر وخت خوشحال ووم ، ځکه ما به چې دې خپلو نعمتونو ته کتل نو ما به دا د نورو نه بهتر ګڼل نو زه به خوشحال ووم .

## که د حسد په وجه حقوقُ العباد ضائع شوي وي نو د هغه نه به معافي غواړي

که د حسد په وجه چا د هغه بل کس غيبت هم کړې وي ، يا يې د هغه پسې بَدې خبرې هم کړې وي ، يا يې د هغه نه د نعمت ختمولو د پاره څه عمَلي اِقدام هم کړې وي نو بيا چونکه

(۱) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۹۳ ، حلية الاولياء و طبقات الأصفياء ج۱ ص ۲۲۰ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۸۹ بيان مذمّة الحسد .

په دې کې حقوق العباد هم ضائع شوي دي نو ددينه د توبې طريقه داده چې د هغه کس نه به معافي غواړي.

او که د حسد په وجه دده نه دا کارونه نه وي صادر شوي صرف په خپل زړه کې يې د هغه سره حسد کړې وي نو بيا ددې تعلق د حقوقُ الله سره دی، صرف توبه به اُوباسي د هغه نه د معافی غوښتلو ضرورت نشته.

## د حسد کوونکي شر د ځان نه په لسو (۱۰) اَسبابو سره دفع کول

( په قرآن کريم کې د حسد کوونکي د شر نه د پناه غوښتلو حکم شوی (۱) )

علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د حسد کوونکي شر د محسود نه په لسو (۱۰) اَسبابو سره دفع کيږي:

**اول سبب** : په الله ﷻ سره د حسد کوونکي د شر نه پناه غوښتل، او د الله ﷻ په حفاظت کې خپل ځان داخلول.

**دويم سبب** : د الله ﷻ نه ويريدل، هغه چې د کومو کارونو حکم کړی هغه منل، او د کومو کارونو نه يې چې منع کړی د هغې نه ځان ساتل، ځکه څوک چې د الله ﷻ نه ويريږي نو الله ﷻ د هغه د حفاظت ذِمه واري اَخلي او نورو ته يې نه سپاري.

**دريم سبب** : د دُشمن (يعنی حسد کوونکي) په حسد باندې صبر کول، د هغه سره جَګړې نه کول، او هغه ته شکايتونه نه کول.

**څلورم سبب** : په الله ﷻ باندې توکّل کول، ځکه څوک چې په الله تعالی باندې توکّل اوکړي نو الله ﷻ د هغه د پاره کافي کيږي.

**پنځم سبب** : د حسد کوونکي د حسد هيڅ پرواه نه کول، د هغه نه هيڅ يره نه کول، بلکه خپل زړه د فکرونو او سوچونو نه فارغ ساتل.

**شپږم سبب** : الله ﷻ طرف ته متوجِّه کيدل، هر عمل د هغه د رَضا د پاره په اخلاص

---

(۱) ﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ .... وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴾. سورة الفلق آية ۱ و ۵.

ترجمه: ته ووايه: زه پناه غواړم په رب د صَبا سره .... او د شر د حسد کوونکي نه کله چې هغه حسَد کوي.

باندې کول ، او په خپل زړه کې د هغه سره محبت کول .

**اووم سبب** : د ټولو ګناهونو نه توبه ويستل ، بيا خاصکر د هغه ګناهونو نه توبه ويستل چې د هغې په وجه په انسان باندې الله ﷻ دُشمن مسلّط کوي ، ځکه بعضې مصيبتونه په انسان باندې د خپلو بدو اَعمالو په وجه راځي .

**اَتم سبب** : صدقه او اِحسان کول . ځکه د بلاګانو دفع کولو ، د بدنظر او حاسدانو شر دفع کولو د پاره صدقه ډير بهترين او مؤثِر علاج دی .

همدارنګې د خپلو نعمتونو شکريه اداء کول هم په کار دي ځکه په ناشکرئ سره دا نِعمتونه زائل کيږي .

**نهم سبب** : د حسد کوونکي سره احسان کول ، هغه ته نصيحت کول ، او په هغه باندې مهربانه کيدل ، دا کار اګر چې نفس ته ډير ګران دی خو چې د چا مرتبه د الله ﷻ په نزد اُوچته وي هغه ته دا کار آسان دی ، په دې سره به د حسد کوونکي د ده سره محبت پيدا شي ، او د هغه د شر نه به بچ شي .

**لسم سبب** : دا سبب د مخکيني ټولو اَسبابو د پاره جامِع دی ، او دا د الله ﷻ وحدانيت منل او دا عقيده ساتل دي چې دا هر څه د الله ﷻ په قدرت کې دي ، د الله ﷻ د حُکم نه بغير هيڅ شی انسان ته نفع او نقصان نشي رسولی . (۱)

---

(۱) قَالَ ابْنُ الْقَيِّمِ رَحِمَهُ اللّٰهُ : وَيَنْدَفِعُ شَرُّ الْحَاسِدِ عَنِ الْمَحْسُوْدِ بِعَشْرَةِ أَسْبَابٍ : اَلسَّبَبُ الْأَوَّلُ : اَلتَّعَوُّذُ بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّهِ ، وَالتَّحَصُّنُ بِهٖ وَاللُّجُوْءُ إِلَيْهِ . اَلسَّبَبُ الثَّانِيْ : تَقْوَى اللّٰهِ ، وَحِفْظُهُ عِنْدَ أَمْرِهٖ وَنَهْيِهٖ . فَمَنِ اتَّقَى اللّٰهَ تَوَلَّى اللّٰهُ حِفْظَهُ ، وَلَمْ يَكِلْهُ إِلٰى غَيْرِهٖ . اَلسَّبَبُ الثَّالِثُ : اَلصَّبْرُ عَلٰى عَدُوِّهٖ ، وَأَنْ لَا يُقَاتِلَهُ وَلَا يَشْكُوَهُ ، وَلَا يُحَدِّثَ نَفْسَهُ بِأَذَاهُ أَصْلًا . فَمَا نُصِرَ عَلٰى حَاسِدِهٖ وَعَدُوِّهٖ بِمِثْلِ الصَّبْرِ عَلَيْهِ . اَلسَّبَبُ الرَّابِعُ : اَلتَّوَكُّلُ عَلَى اللّٰهِ ، فَمَنْ تَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ، وَالتَّوَكُّلُ مِنْ أَقْوَى الْأَسْبَابِ الَّتِيْ يَدْفَعُ بِهَا الْعَبْدُ مَا لَا يُطِيْقُ مِنْ أَذَى الْخَلْقِ وَظُلْمِهِمْ وَعُدْوَانِهِمْ . وَهُوَ مِنْ أَقْوَى الْأَسْبَابِ فِيْ ذٰلِكَ ، فَإِنَّ اللّٰهَ حَسْبُهُ ، أَيْ كَافِيْهِ . وَمَنْ كَانَ اللّٰهُ كَافِيَهُ وَ وَاقِيَهُ فَلَا مَطْمَعَ فِيْهِ لِعَدُوِّهٖ . اَلسَّبَبُ الْخَامِسُ : فَرَاغُ الْقَلْبِ مِنَ الْاِشْتِغَالِ بِهٖ وَالْفِكْرِ فِيْهِ ، وَأَنْ يَقْصِدَ أَنْ يَمْحُوَهُ مِنْ بَالِهٖ كُلَّمَا خَطَرَ لَهُ . فَلَا يَلْتَفِتُ إِلَيْهِ ، وَلَا يَخَافُهُ ، وَلَا يَمْلَأُ قَلْبَهُ بِالْفِكْرِ فِيْهِ . وَهٰذَا مِنْ أَنْفَعِ الْأَدْوِيَةِ ←←←←←

په قرآن کريم کې ذکر دي :

﴿ وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ ﴾.(١)

ترجمه : او که تاته الله تعالى څه تکليف اُورسوي نو صرف د الله نه علاوه بل هيڅوک د هغې لرې کوونکى نشته ، او که هغه تاته څه خير رسول اُوغواړي نو د هغه فضل هيڅوک نشي رَد کولى .

---

←←←← وَأَقْوَى الْأَسْبَابِ الْمُعِينَةِ عَلَى انْدِفَاعِ شَرِّهِ. اَلسَّبَبُ السَّادِسُ: وَهُوَ الْإِقْبَالُ عَلَى اللهِ. وَالْإِخْلَاصُ لَهُ وَجَعْلُ مَحَبَّتِهِ وَرِضَاهُ وَالْإِنَابَةِ إِلَيْهِ فِي مَحَلِّ خَوَاطِرِ نَفْسِهِ وَأَمَانِيهَا تَدِبُّ فِيهَا دَبِيبَ تِلْكَ الْخَوَاطِرِ شَيْئًا فَشَيْئًا حَتَّى يَقْهَرَهَا وَيَغْمُرَهَا وَيُذِيبَهَا بِالْكُلِّيَّةِ. فَتَبْقَى خَوَاطِرُهُ وَهَوَاجِسُهُ وَأَمَانِيُّهُ كُلُّهَا فِي مَحَابِّ الرَّبِّ. وَالتَّقَرُّبِ إِلَيْهِ. اَلسَّبَبُ السَّابِعُ: تَجْرِيدُ التَّوْبَةِ إِلَى اللهِ مِنَ الذُّنُوبِ الَّتِي سَلَّطَتْ عَلَيْهِ أَعْدَاءَهُ. فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُولُ: وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ (الشورى آية ٣٠). اَلسَّبَبُ الثَّامِنُ: اَلصَّدَقَةُ وَالْإِحْسَانُ مَا أَمْكَنَهُ. فَإِنَّ لِذَلِكَ تَأْثِيرًا عَجِيبًا فِي دَفْعِ الْبَلَاءِ. وَدَفْعِ الْعَيْنِ. وَشَرِّ الْحَاسِدِ وَلَوْ لَمْ يَكُنْ فِي هَذَا إِلَّا بِتَجَارِبِ الْأُمَمِ قَدِيمًا وَحَدِيثًا لَكَفَى بِهِ. فَمَا حَرَسَ الْعَبْدُ نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْهِ بِمِثْلِ شُكْرِهَا وَلَا عَرَّضَهَا لِلزَّوَالِ بِمِثْلِ الْعَمَلِ فِيهَا بِمَعَاصِي اللهِ. وَهُوَ كُفْرَانُ النِّعْمَةِ. وَهُوَ بَابٌ إِلَى كُفْرَانِ الْمُنْعِمِ. اَلسَّبَبُ التَّاسِعُ: وَهُوَ مِنْ أَصْعَبِ الْأَسْبَابِ عَلَى النَّفْسِ. وَأَشَقِّهَا عَلَيْهَا. وَلَا يُوَفَّقُ لَهُ إِلَّا مَنْ عَظُمَ حَظُّهُ مِنَ اللهِ. وَهُوَ إِطْفَاءُ نَارِ الْحَاسِدِ وَالْبَاغِي وَالْمُؤْذِي بِالْإِحْسَانِ إِلَيْهِ. فَكُلَّمَا ازْدَادَ أَذًى وَشَرًّا وَبَغْيًا وَحَسَدًا ازْدَدْتَ إِلَيْهِ إِحْسَانًا. وَلَهُ نَصِيحَةً. وَعَلَيْهِ شَفَقَةً. وَمَا أَظُنُّكَ تُصَدِّقُ بِأَنَّ هَذَا يَكُونُ فَضْلًا عَنْ أَنْ تَتَعَاطَاهُ. فَاسْتَمِعِ الْآنَ إِلَى قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ ۝ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ۝ وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ. (فصلت آية ٣٤- ٣٦). اَلسَّبَبُ الْعَاشِرُ: وَهُوَ الْجَامِعُ لِذَلِكَ كُلِّهِ. وَعَلَيْهِ مَدَارُ هَذِهِ الْأَسْبَابِ. وَهُوَ تَجْرِيدُ التَّوْحِيدِ. وَالتَّرَحُّلُ بِالْفِكْرِ فِي الْأَسْبَابِ إِلَى الْمُسَبِّبِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ. وَالْعِلْمُ بِأَنَّ هَذِهِ الْآلَاتِ بِمَنْزِلَةِ حَرَكَاتِ الرِّيَاحِ. وَهِيَ بِيَدِ مُحَرِّكِهَا. وَفَاطِرِهَا وَبَارِئِهَا. وَلَا تَضُرُّ وَلَا تَنْفَعُ إِلَّا بِإِذْنِهِ. فَهُوَ الَّذِي يُحْسِنُ عَبْدَهُ بِهَا. وَهُوَ الَّذِي يَصْرِفُهَا عَنْهُ وَحْدَهُ لَا أَحَدَ سِوَاهُ. قَالَ تَعَالَى: وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ. نضرة النعيم ج١٠ ص ٤٤٢٠ الحسد.

التفسير القيم لابن القيم ص ٥٨٥، ٥٩٣.

(١) يونس آية ١٠٧.

## چې چاته د حسد په وجه څه ضرر رسيدلې وي د هغې علاج

چاته چې د حاسِد د حسد په وجه څه ضرر رسيدلې وي نو ددې نَبوي علاج دادی چې : دا دې تعَوّذات ډير لولي ، يعنى سورة الفلق ، سورة النّاس ، سورة الفاتحة او آية الکرسي دې ډيره وايي ، همدارنګې په احاديثو مبارکهٔ کې چې کوم تعوّذات ذکر شوي هغه دې هم وايي لکه :

أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ .

همدارنګې په احاديثو مبارکهٔ کې چې کومې دُعاګانې ذکر شوي هغه دې هم وايي ، لکه حضرت جبريل عليه السلام چې نبي عليه السلام ته کومه دُعا خودلې وه ، کومه چې په مسلم شريف کې ذکر ده :

بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ، مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ، مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ، اَللهُ يَشْفِيكَ بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ .(۱)

نو په دې سره به د حسد ضرر ختم شي .(۲)

## چې د کوم حاسِد د حسد په وجه بل ته ضرر رسي د هغه د پاره تدبير

که چاته دا معلومه شي چې زما د حسد په وجه بل ته ضرر رسي نو په احاديثو مبارکهٔ کې دداسې کس د پاره دا تدبير خودل شوی چې دا حاسد به د هغه بل کس د پاره د برکت دُعا

---

(۱) عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رضي الله عنه . أَنَّ جِبْرِيلَ عليه السلام أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ اشْتَكَيْتَ ؟ فَقَالَ: نَعَمْ. قَالَ : بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ، مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ، مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ، اَللهُ يَشْفِيكَ بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ . صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ الطِّبِّ وَالمَرَضِ وَالرُّقَى رقم الحديث ۴۰(۲۱۸۶) ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۵۲۳ ، سنن الترمذي رقم الحديث ۹۷۲ .

(۲) عِلَاجُ الْمَحْسُودِ مِمَّا لَحِقَ بِهِ مِنْ أَذًى بِسَبَبِ الْحَسَدِ : اَلْمَقْصُودُ بِالْعِلَاجِ هُنَا الْعِلَاجُ النَّبَوِيُّ لِتِلْكَ الْعِلَّةِ وَهُوَ أَنْوَاعٌ : أَحَدُهَا : الْإِكْثَارُ مِنَ التَّعَوُّذِ، وَمِنْ ذٰلِكَ قِرَاءَةُ الْمُعَوِّذَتَيْنِ، وَفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَآيَةِ الْكُرْسِيِّ ، وَالتَّعَوُّذَاتِ النَّبَوِيَّةِ، نَحْوِ " أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ " . اَلثَّانِي : الرُّقَى : وَمِنْ أَمْثِلَتِهَا رُقْيَةُ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي رَوَاهَا مُسْلِمٌ فِي صَحِيحِهِ وَهِيَ : بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيكَ ..... الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱۷ ص ۲۷۶ حسد .

کوي ، او چې د هغه نِعمت ورته ښائسته معلوم شي نو دا به " مَاشَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ "
وايي ، نو بيا به دده د حسد په وجه بل ته ضرر نه رسي . (۱)

# د غونډ تقرير خلاصه

د غونډ تقرير خلاصه دا رااووته چې حسد ډېره خطرناکه بيماري ده : په قرآن کريم کې د حسد کوونکي د شَر نه د پناه غوښتلو حُکم شوی ، نبي عليه السلام د حسد نه منع کړی ، د حسد په وجه د انسان نېک اعمال ختمېږي .

حسد د انسان دِين او دُنيا دواړو ته نقصان رسوي ، د انسان په زړه کې اِيمان او حسد نه جمع کېږي ، په آسمانونو او زمکه کې د اَولني ګناه سبب همدا حسد وُ .

د حسد کوونکي دُعا نه قبلېږي ، حسد کوونکی د الله ﷻ د نِعمتونو دُشمن دی ، دا د الله ﷻ په تقسيم باندې راضي نه وي ، او د هغه سره جګړه کوونکی وي .

حسد کوونکی هر ځای د نقصان سره مخامخ کېږي ، حسد داسې خطرناکه بيماري ده چې ددې نقصان اول په خپله حسد کوونکي ته رسي ، او ددې ډير ضَررونه دي ، لهذا د هيچا سره حسد په کار ندی .

څوک چې د حسد نه بچ شو نو دا خلق کامياب دي ، دوی ته په احاديثو کې د جنت زيرې ورکړې شوی ، دوی د الله ﷻ په نزد مُقرّب خلق دي .

(۱) وَمِمَّا يُدْفَعُ بِهِ ضَرَرُ الحَاسِدِ عَنْ غَيْرِهِ دُعَاؤُهُ لِغَيْرِهِ بِالبَرَكَةِ ، وَقَوْلُهُ : مَاشَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ . كَمَا فِيْ قَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ فِي الحَدِيثِ الَّذِيْ رَوَاهُ أَبُوْ أُمَامَةَ عَنْ أَبِيْهِ : إِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مِنْ أَخِيْهِ مَا يُعْجِبُهُ فَلْيَدْعُ لَهُ بِالبَرَكَةِ . سنن ابن ماجة باب العين رقم الحديث ۳۵۰۹ ، وصححه ابن حبان.
وَكَمَا فِيْ قَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِن حَدِيثِ أَنَسٍ رضي الله عنه : مَنْ رَأَى شَيْئًا فَأَعْجَبَهُ فَقَالَ : مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ ، لَمْ يَضُرَّهُ . مسند البزار رقم الحديث ۷۳۳۹ ، شعب الايمان ج۶ ص ۲۱۳ ، مجمع الزوائد ۵/۱۰۹ .
وَرَوَى هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ كَانَ إِذَا رَأَى شَيْئًا يُعْجِبُهُ ، أَوْ دَخَلَ حَائِطًا مِنْ حِيْطَانِهِ قَالَ : مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ . زاد المعاد ۳ / ۱۱۹ ، وتبيين الحقائق مع حاشية الشلبي ۶ / ۱۶ - ۱۷ ، وابن عابدين ۵ / ۲۳۲ - ۲۳۳. الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱۷ ص ۲۷۶ حسد.

نو انسان ته په کار دي چې د حسد د ټولو اَسبابو نه ځان اُوساتي ، او علماؤ چې د حسد کوم علاج خودلی هغه عمَلي کړي .

## دُعا

الله تعالى دې زمونږ د ټولو زړونه د حسد او نورو باطني بيماريو نه پاک کړي ، او ربِّ کائنات دې په مونږ ټولو کې بهترين صفات پيدا کړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ﴾ القلم اية ۴

# د خوش اَخلاقۍ فضائِل

# او د نبي ﷺ د خوش اَخلاقۍ واقعات

**تالِيف**


اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اکاخيل کالونۍ مردان

## نوټ :

دا آئنده تقریر په دوه (۲) غټو عُنواناتو باندې تقسیم دی :

**۱ . د خوش اخلاقۍ فضائل او فوائد** ( صفحه ۶۲ )

**۲ . د نبي علیه السلام د خوش اخلاقۍ واقعات** ( صفحه ۸۸ )

که د مُقرّر سره وخت زیات وي نو ټول تقریر په یوه جُمعه کې هم بیانولې شي ، خو که وخت ورسره کم وي نو هر عُنوان دې په ځانله ځانله جُمعه کې بیان کړي .

ابوالشمس عفي عنه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د خوش اخلاقۍ فضائل او فوائد

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهٗ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهٗ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ أَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهٗ وَتَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ

أَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ : ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ﴾ .(۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا ﴾ . (۲)

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا . (۳)

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ : إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا . (۴)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ .

---

(۱) القلم آية ۴ .

(۲) البقرة آية ۸۳ .

(۳) صحيح البخاري كتاب أصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَابُ مَنَاقِبِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رقم الحديث ۳۷۵۹ ، مشكاة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ۵۰۷۴(۷) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۷۶۹۷ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۱۹ ، كنزالعمال رقم الحديث ۵۱۵۴ .

وفي رواية : عَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّيْ مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَحَاسِنَكُمْ أَخْلَاقًا ...... سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ مَعَالِي الْأَخْلَاقِ رقم الحديث ۲۰۱۸ قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح باب البيان والشعر الفصل الثاني رقم الحديث ۴۷۹۸ (۱۶) ، رياض الصالحين رقم الحديث ۶۳۰ ، الكبائر للذهبي ج۱ ص۲۲۴ الكبيرة الستون الجدل والمراء واللدد ، الزواجر ج۱ ص ۱۱۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۶۲(۲۴) ، و رقم الحديث ۲۸۹۷(۸) .

(۴) صحيح البخاري كِتَابُ الْمَنَاقِبِ بَابُ صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۵۵۹ ، مشكوة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ۵۰۷۵(۸) ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱۵۲ ، شعب الإيمان رقم الحديث ۷۶۱۷ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۷۵۲۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم ۲۶۴۰(۲) الترغيب في حسن الخلق وفضله .

# تمهيدي خبره

عزت منډو مسلمانانو ورونو ! په قرآن كريم او احاديثو مباركه وْ كښې چې د انسان كوم بهترين صفات ذكر شوي په هغې كې يو بهترين صفت "خُوش اَخلاقي" هم ده ، د خوش اَخلاقۍ په وجه د مسلمانانو سره د دوارو جهانو د كاميابۍ وعده شوى ، خوش اَخلاقي د دِين حصه او بهترين عمل دى ، او دا د ټولو ښه صفاتو د پاره جامِع صفت دى .

## د خوش اَخلاقۍ تعريف

علامه جرجانى رَحِمَهُ اللهُ د خُوش اَخلاقۍ تعريف داسې كړى :

خوش اَخلاقي د نفس داسې هيئتِ راسخه دى چې ددې په وجه دده نه ښائسته اخلاق په آسانۍ باندې صادريږي . (١)

بعضې علماؤ د خوش اخلاقۍ تعريف داسې كړى :

اَلتَّخَلِّيْ مِنَ الرَّذَائِلِ، وَالتَّحَلِّيْ بِالْفَضَائِلِ. (٢)

---

(١) اَلْخُلُقُ فِي اللغةِ : هو العادة ، والسجيّة ، والطّبع ، والمروءة ، والدِّين . موسوعة الاخلاق ج١ ص ٢١ الخراز .

قال ابن منظور : اَلْخُلُقُ، بِضَمِّ اللَّامِ وَسُكُوْنِهَا: وَهُوَ الدِّين والطبْع وَالسَّجِيَّةُ . لسان العرب ١٠ / ٨٦ فصل الخاء .

و اصطلاحا : قال الجرجاني : اَلْخُلُقُ : عِبَارَةٌ عَنْ هَيْئَةٍ لِلنَّفْسِ رَاسِخَةٍ تَصْدُرُ عَنْهَا الْأَفْعَالُ بِسُهُوْلَةٍ وَيُسْرٍ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ إِلٰى فِكْرٍ وَ رؤيَةٍ، فَإِنْ كَانَتِ الْهَيْئَةُ بِحَيْثُ تَصْدُرُ عَنْهَا الْأَفْعَالُ الْجَمِيْلَةُ عَقْلًا وَشَرْعًا بِسُهُوْلَةٍ سُمِّيَتِ الْهَيْئَةُ "خُلُقًا حَسَنًا" . وَإِنْ كَانَ الصَّادِرُ مِنْهَا الْأَفْعَالُ الْقَبِيْحَةُ سُمِّيَتِ الْهَيْئَةُ "خُلُقًا سَيِّئًا" .

وإنما قلنا: إنه هيئة راسخة، لأنّ مَن يصدر منه بذلُ المالِ على الندور بحالة عارضة لا يقال: خلقه السخاء. ما لم يثبت ذلك في نفسه، وكذلك من تكلّف السّكوت عند الغضب بجهد أو روية لا يقال: خلقه الحلم. وليس الخلق عبارة عن الفعل، فرب شخص خلقه السخاء ولا يبذل إما لفقد المال أو لمانع. و ربما يكون خلقه البخل وهو يبذل لباعث أو رياء. التعريفات للجرجاني ص ١٠١ باب الخاء .

وفي الاصطلاح يطلق إطلاقين أحدهما أعمّ من الثاني . فيطلق على الصّفة الّتي تقوم بالنّفس على سبيل الرّسوخ ويستحق الموصوف بها المدح أو الذم . ويطلق على التّمسك بأحكام الشرع وآدابه فعلا وتركا . من اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ١ ص ٣٩ اخلاقه صلى الله عليه وسلم .

(٢) مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين ج٢ ص ٢٩٤ فَصْلٌ الدِّيْنُ كُلُّهُ خُلُقٌ . سوء الخلق ج١ ص ٩٧ .

خراب صفتونه د ځان نه لرې كول ، او په ښه صفتونو باندې ځان ښائسته كول .
علماؤ د خوش اخلاقۍ نور تعريفونه هم كړي . (١)

## الله ﷻ د نبي عليه السلام صفت په خوش اخلاقۍ سره كړى

خوش اَخلاقي داسې بهترين صفت دى چې په قرآن مجيد كې د نبي عليه السلام صفت په خوش اخلاقۍ سره شوى ، الله تعالى فرمايي : ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾ . (٢)

ترجمه : او ( اې پيغمبره ! ) بيشكه ته په اُوچتو اَخلاقو باندې ( موصوف ) يې .

**فائده** : د قرآن كريم سورة القلم په اِبتدائي آيت كې الله تعالى قسَم اوكړو او بيا يې په څلورم آيت كې د نبي عليه السلام صفت دا ذكر كړو چې : اې پيغمبره ! ته د اخلاقو په اُوچته مرتبه باندې يې .

## د رسولُ الله ﷺ اَخلاق " په قرآن كريم باندې عمل كول " وو

١ . په مسلم شريف كې اُوږد حديث ذكر دى ، حضرت سعد بن هِشام رحمه الله فرمايي ....
ما حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وويل :

---

(١) وَقِيْلَ: إِنَّ حُسْنَ الْخُلُقِ بَذْلُ النَّدَى، وَكَفُّ الْأَذَى، وَاحْتِمَالُ الْأَذَى .

وَقِيْلَ: حُسْنُ الْخُلُقِ : بَذْلُ الْجَمِيْلِ، وَكَفُّ الْقَبِيْحِ . مدارج السالكين ج٢ ص ٢٩٤ فَصْلٌ الدِّينُ كُلُّهُ خُلُقٌ .

قال الماوردي رَحِمَهُ اللهُ : وَحُسْنُ الْخُلُقِ أَنْ يَكُوْنَ سَهْلَ الْعَرِيكَةِ ، لَيِّنَ الْجَانِبِ ، طَلِيْقَ الْوَجْهِ ، قَلِيْلَ النُّفُوْرِ ، طَيِّبَ الْكَلِمَةِ . ادب الدنيا والدين ص ٢٤٣ اَلْفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الْخُلُقِ

وقال الشيخ ابن سعدي رحمه الله في حسن الخلق: هو خلقٌ فاضلٌ عظيمٌ . أساسه الصبر والحلم والرغبة في مكارم الأخلاق . وآثاره العفو والصفح عن المسيئين وإيصال المنافع إلى الخلق أجمعين . فهو احتمال الجنايات . والعفو عن الزلات . ومقابلة السيئات بالحسنات . وقد جمع الله ذلك في آية واحدة وهي قوله: { خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ } . الرياض الناضرة لابن سعدي ص ٦٨ . سوء الخلق ج١ ص ٨٠ .

**نوټ** : څه نور تعريفونه روستو په صفحه ١٤١ باندې تفصيل سره راروان دي . ابوالشمس عفي عنه

(٢) القلم آية ٤ .

يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَنْبِئِيْنِيْ عَنْ خُلُقِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

اي د مؤمنانو مور ! ماته د رسول الله ﷺ د اخلاقو متعلق خبر راکړه .

نو حضرت عائشې رضي الله عنها راته او فرمايل :

أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ ؟ آيا ته قرآن کريم نه لولې ؟

ما ورته وويل : لولم يې . هغې اوفرمايل :

فَإِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ .

بيشکه د نبي عليه السلام اخلاق " قرآن کريم " وو .(۱)

( يعنی د قرآن کريم په ټولو احکاماتو باندې عمل کول وو ) . (۲)

---

(۱) عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ رضي الله عنه ..... فَقُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَنْبِئِيْنِيْ عَنْ خُلُقِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَتْ: « أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ » قُلْتُ : بَلَى . قَالَتْ: « فَإِنَّ خُلُقَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ » . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِيْنَ وَقَصْرِهَا بَابُ جَامِعِ صَلَاةِ اللَّيْلِ، وَمَنْ نَامَ عَنْهُ أَوْ مَرِضَ رقم الحديث ۱۳۹(۷۴۶) ، سنن النسائي باب قيام الليل رقم الحديث ۱۶۰۱ ، المستدرک على الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۴۲۲۲ ، صحيح ابن حبان فصلٌ في قيام الليل رقم ۲۵۵۱ ، مشكوة المصابيح باب الوتر الفصل الاول رقم ۱۲۵۷(۴) .

وفي رواية : عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ رضي الله عنه ، قَالَ: أَتَيْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ، فَقُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَخْبِرِيْنِيْ بِخُلُقِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَتْ: كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ، أَمَا تَقْرَأُ الْقُرْآنَ، قَوْلَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ: { وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيْمٍ } . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۴۶۰۱ ، و رقم الحديث ۲۵۳۰۲ .

(۲) (فَإِنَّ خُلُقَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ) أَيْ: كَانَ خُلُقُهُ جَمِيْعَ مَا فُصِّلَ فِي الْقُرْآنِ مِنْ مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ، فَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ مُتَحَلِّيًا بِهِ . وَقِيْلَ: تَعْنِيْ كَانَ خُلُقُهُ مَذْكُوْرًا فِي الْقُرْآنِ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالَى: {وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيْمٍ} [ القلم آية ۴] تَعْنِيْ أَنَّ الْعَظِيْمَ إِذَا عَظَّمَ أَمْرًا لَمْ يُقَدِّرْ أَحَدٌ قَدْرَهُ. وَلَمْ يَعْرِفْ أَحَدٌ طَوْرَهُ . وَقَالَ صَاحِبُ الْإِحْيَاءِ : أَرَادَتْ بِقَوْلِهَا كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ مِثْلَ قَوْلِهِ تَعَالَى: {خُذِ الْعَفْوَ} [ الاعراف آية ۱۹۹] الْآيَةَ. وَقَوْلِهِ { إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ} [ النحل آية ۹۰] الْآيَةَ. وَقَوْلِهِ: {وَاصْبِرْ عَلَى مَا أَصَابَكَ} [ لقمان آية ۱۷] ، وَقَوْلِهِ تَعَالَى: {فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ } [ المائدة آية ۱۳] ، وَقَوْلِهِ تَعَالَى : {وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ} [ آل عمران آية ۱۳۴] . وَقَوْلِهِ تَعَالَى: {يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِنَ الظَّنِّ} [الحجرات آية ۱۲] مِنَ الْآيَاتِ الدَّالَّةِ عَلَى تَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ الذَّمِيْمَةِ، وَتَحْصِيْلِ الْأَخْلَاقِ الْحَمِيْدَةِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج۳ ص ۹۴۱ في تشريح حديث ۱۲۵۷ .

۲ . په ځنې احاديثو کې داسې ذکر دي چې د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د نبي عليه السلام د أخلاقو متعلق پوښتنه اوشوه ، نو دې ورته اوفرمايل : كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ .

د رسول الله صلى الله عليه وسلم اخلاق په قرآن کريم باندې عمل کول وو . (۱)

يعنى په قرآن کريم کې چې الله تعالى د کومو کارونو حُکم کړی نبي عليه السلام به هغه کول ، او د کومو کارونو نه يې چې منع کړې د هغې نه به يې ځان ساتل . (۲)

او خوش اخلاقي همدې ته وايي چې انسان په ټولو هغه بهترينو صفاتو باندې عمل اوکړي چې په قرآن کريم کې ذکر شوي ، او د ټولو بدو صفاتو نه ځان اُوساتي .

## په خُوش اَخلاقۍ سره د الله جل جلاله د حُکم تابعداري راځي

الله ربّ العزت فرمايي :

﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴾ . (۳)

ترجمه : ته معافي کوه ، د نېک کار حُکم کوه ، او د جاهِلانو نه مخ واړوه .

(يعنى د هغوى نه ډَډه اوکړه او پرواه يې مه کوه) .

حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنهما فرمايي چې دا آيت د أخلاقو په باره کې نازل شوی . (۴)

---

(۱) عَنِ الْحَسَنِ قَالَ: سُئِلَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنْ خُلُقِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ فَقَالَتْ: كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۵۸۱۳ ، شرح السنّة للبغوي باب حسن الخلق ج۱۳ ص ۷۶ ، صحيح الادب المفرد رقم الحديث ۲۳۴/۳۰۸ باب مَن دَعا الله ان يحسن خُلقه .

(۲) ... وَلِذَا قَالَتِ الصِّدِّيْقَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآنَ . أَيْ يَأْتَمِرُ بِمَا أَمَرَ اللهُ تَعَالٰى فِيْهِ . وَيَنْتَهِيْ عَمَّا نَهَى اللهُ عَنْهُ . مرقاة المفاتيح ج۱ ص ۱۱۹ في تشريح حديث ۴۶ .

(۳) الاعراف آية ۱۹۹ .

(۴) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما ﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ ﴾ قَالَ : مَا أَنْزَلَ اللهُ إِلَّا فِيْ أَخْلَاقِ النَّاسِ . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ : خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ رقم الحديث ۴۶۴۳ .

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما قَالَ : أَمَرَ اللهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْخُذَ الْعَفْوَ مِنْ أَخْلَاقِ النَّاسِ ، أَوْ كَمَا قَالَ . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ : خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ رقم الحديث ۴۶۴۴ .

## نبي علیه السلام د ښه اخلاقو د تکمیل د پاره رالیږلي شوی ؤ

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

إِنَّمَا بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ صَالِحَ الْأَخْلَاقِ . (۱)

بیشکه زه ددې د پاره رالیږلي شوی یم چې د ښو اَخلاقو تکمیل اوکړم.

یعنی دُنیا ته زما د راتللو غټ مقصد دادی چې انساني ښائسته اَخلاق بیان کړم، او دا درجهٔ کمال ته اُورسوم.

دا مذکوره حدیث په نورو الفاظو سره هم بیان شوی . (۲)

## د خوش اَخلاقۍ په وجه د الله ﷻ محبوب جوړیدل

د خوش اَخلاقۍ په وجه انسان د الله ﷻ محبوب جوړیږي ، ځکه ښائسته اخلاق الله ﷻ ته ډیر خوښ دي.

حضرت اُسامه بن شریک رضی الله عنه فرمایي چې مونږ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس کې داسې (په اَدب باندې) ناست وو ګویا چې زمونږ په سَرونو باندې مرغۍ ناستې دي، په مونږ کې هیڅا خبرې نه کولې، په دې وخت کې نبي علیه السلام ته څه خلق راغلل (هغوی د پیغمبر علیه السلام نه څه پوښتنې اوکړې، دوی ورته جواب ورکړو)، هغوی دا پوښتنه

---

(۱) مسند احمد مخرجا رقم الحدیث ۸۹۵۲ ، مصنف ابن ابي شیبة رقم الحدیث ۳۱۷۷۳ ، الادب المفرد مخرجا رقم الحدیث ۲۷۳ باب حُسن الخلق ، المستدرک علی الصحیحین للحاکم رقم الحدیث ۴۲۲۱ وقال الحاکم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ مُسْلِمٍ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. ووافقه الذهبي ، السنن الکبری للبیهقي رقم الحدیث ۲۰۷۸۳ ، الآداب للبیهقي رقم الحدیث ۱۵۳ ، شعب الایمان رقم الحدیث ۷۶۰۹ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحدیث ۳۶۲۲ ، مجمع الزوائد رقم الحدیث ۱۳۶۸۳ باب مکارم الاخلاق .

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ حُسْنَ الْأَخْلَاقِ . موطا الإمام مالک ۹۰۴/۲ كِتَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحدیث ۸ ، مشکوة المصابیح باب الرفق والحیاء وحسن الخلق الفصل الثالث رقم الحدیث ۵۰۹۶(۲۹) ، کنزالعمال رقم الحدیث ۵۲۱۸ .

وفي روایة : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّمَا بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ مَكَارِمَ الْأَخْلَاقِ. السنن الکبری للبیهقي كِتَابُ الشَّهَادَاتِ بَابُ بَيَانِ مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ وَمَعَالِيهَا... رقم الحدیث ۲۰۷۸۲ ، مسند البزار رقم الحدیث ۸۹۴۹ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحدیث ۳۶۲۲ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۵۲۱۷ .

هم او کړه: فَمَنْ أَحَبُّ عِبَادِ اللهِ إِلَى اللهِ؟

د الله ﷻ په بندګانو کې الله ته محبوب کس څوک دی؟

نبي علیه السلام ورته او فرمایل:

أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. په دوی کې چې د چا اَخلاق ډیر ښائسته وي.(۱)

بل دا چې په ښائسته اخلاقو کې "د یو بل سره احسان کول، صبر کول، او عدل کول" هم دي، او الله تعالی دې درې واړه قِسمه خلقو سره محبت کوي.

الله ﷻ فرمایي: ﴿ وَأَحْسِنُوٓا۟ ۛ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾.(۲)

ترجمه: او اِحسان (نیکي) کوئ، بیشکه الله تعالی نیکي کوونکي خلق خوښوي.

﴿ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴾.(۳)

ترجمه: او الله تعالی صابرین خوښوي.

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴾.(۴)

ترجمه: بیشکه الله تعالی اِنصاف کوونکي خوښوي.

## د ښه اخلاقو واله کس به د قیامت په ورځ نبي ﷺ ته محبوب او مُقرّب وي

د چا اخلاق چې ښه وي نو داسې کس به د قیامت په ورځ رسولُ الله ﷺ ته محبوب او مُقرّب وي:

۱ . د بخاري شریف حدیث دی، رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

---

(۱) عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ رضي الله عنه قَالَ: كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّ عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرَ. مَا يَتَكَلَّمُ مِنَّا مُتَكَلِّمٌ إِذْ جَاءَهُ أُنَاسٌ ..... قَالُوا: فَمَنْ أَحَبُّ عِبَادِ اللهِ إِلَى اللهِ؟ قَالَ: أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. المعجم الكبير للطبراني بَابُ الْأَلِفِ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّدَاوِي وَتَرْكِ الْهِيبَةِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۷۱، وقال الهيثمي في المجمع ۸/۲۴: رجاله رجال الصحيح. سوء الخلق ج۱ ص ۸۴.

(۲) البقرة آية ۱۹۵.

(۳) آل عمران آية ۱۴۶.

(۴) المائدة آية ۴۲.

إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا. (۱)

بیشکه په تاسو کې ماته ډیر محبوب هغه کس دی چې د چا اخلاق ډیر ښه وي. (۲)

۲ . په ترمذي شريف او مشکوة شريف کې ددې حديث سره نوره اِضافه هم شته ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّيْ مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَحَاسِنَكُمْ أَخْلَاقًا . وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ إِلَيَّ وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّيْ مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الثَّرْثَارُوْنَ وَالْمُتَشَدِّقُوْنَ وَالْمُتَفَيْهِقُوْنَ .

بیشکه د قیامت په ورځ به په تاسو کې ماته ډیر محبوب او د مجلس په اِعتبار سره ډیر مُقرّب هغه خلق وي چې په تاسو کې د چا أخلاق ډیر ښه وي ، او بیشکه د قیامت په ورځ به په تاسو کې ماته ډیر مَبغوض او زما د مجلس نه ډیر لرې خلق هغه وي چې (د چا اخلاق خراب وي ، يعنى كوم چې ) په ناحقه او تکلّف سره ډیرې خبرې کوي ، بې اِحتیاطه په تکلّف سره اوږدې خبرې کوي ، او تکبّر کوي . (۳)

۳ . حضرت عبدالله بن عَمرو رضي الله عنهما فرمايي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ( د صحابه کرامو ) په يو مجلس کې او فرمايل :

أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَحَبِّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّيْ مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ؟

آیا زه تاسو ته د هغه کس په باره کې خبر درکړم چې هغه به په تاسو کې ماته د قیامت په

---

(۱) صحيح البخاري كتاب أصحاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَابُ مَنَاقِبِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رقم الحديث ۳۷۵۹ ، مشكاة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّل رقم الحديث ۵۰۷۴(۷) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۷۶۹۷ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۱۹ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۱۵۴ .

(۲) ( إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ ) أَيْ: أَكْثَرِكُمْ مَحَبَّةً لِيْ أَوْ أَعْظَمِكُمْ مَحْبُوْبِيَّةً عِنْدِيْ ( أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا ) أَيْ: شَمَائِلَ مَرْضِيَّةً مُرَاعًى فِيْهَا حُدُوْدُ الرُّبُوْبِيَّةِ وَالْعُبُوْدِيَّةِ . مرقاة المفاتيح ج۸ ص ۳۱۷۴ في تشريح حديث ۵۰۷۳ .

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ مَعَالِي الْأَخْلَاقِ رقم الحديث ۲۰۱۸ قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح باب البيان والشعر الفصل الثاني رقم الحديث ۴۷۹۸ (۱۶) ، رياض الصالحين رقم الحديث ۶۳۰ ، الكبائر للذهبي ج۱ ص ۲۲۴ الكبيرة السـ[illegible] الجدل والمراء واللدد ، الزواجر ج۱ ص ۱۱۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۶۲(۲۴) ، و رقم الحديث ۲۸۹۷(۸) .

ورځ ډير محبوب او د مجلس په اعتبار سره ډير مُقرّب وي؟

نبي عليه السلام درې ( ۳ ) كرَت دا پوښتنه اوكړه.

صحابه كرام رضي الله عنهم فرمايي چې مونږ ورته وويل: اې د الله رسوله! د هغه په باره كې راته (ضرور) خبر راكړه. نو نبي عليه السلام اوفرمايل: أَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا.

( د قيامت په ورځ به ماته ډير مَحبوب او مُقرّب هغه كس وي ) په تاسو كې چې د چا اَخلاق ډير ښه وي. (۱)

## خوش اَخلاقه مسلمان په خلقو كې بهترين كس دى

**۱** . د بخاري شريف حديث دى، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا. (۲)

بيشكه په تاسو كې بهترين كس هغه دى چې د هغه اخلاق ډير ښائسته وي.

**۲** . په مسند احمد او مشكوة شريف كې دا حديث ذكر دى: حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ( صحابه كرامو ته ) اوفرمايل:

أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ؟

آيا زه تاسو ته خبر دركړم چې په تاسو كې بهترين كس څوك دى؟

صحابه كرامو رضي الله عنهم ورته اوفرمايل: آو، اې د الله رسوله (ضرور) خبر راكړئ.

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه، أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي مَجْلِسٍ: « أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَحَبِّكُمْ إِلَيَّ، وَأَقْرَبِكُمْ مِنِّي مَجْلِسًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ » ثَلَاثَ مَرَّاتٍ يَقُوْلُهَا. قُلْنَا: بَلَى يَا رَسُوْلَ اللهِ. قَالَ: « أَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا ». صحيح ابن حبان مخرجا بَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ ذِكْرُ الْبَيَانِ بِأَنَّ مَنْ حَسُنَ خُلُقُهُ كَانَ فِي الْقِيَامَةِ مِمَّنْ قَرُبَ مَجْلِسُهُ مِنَ الْمُصْطَفَى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۴۸۵ ، مسند احمد رقم الحديث ۶۷۳۵ ، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۲۷۲ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۱۹ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الْمَنَاقِبِ بَابُ صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۵۵۹ ، مشكوة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ۵۰۷۵(۸) ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱۵۲ ، شعب الإيمان رقم الحديث ۷۶۱۷ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۷۵۴۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم ۲۶۴۰(۲) الترغيب في حسن الخلق وفضله .

نبي عليه السلام ورته او فرمايل :

خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا ، وَأَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا .

په تاسو کې بهترين کس هغه دی چې اُوږد عُمريې وي ،او اخلاق يې ډير ښه وي. (١)

**فائده** : دا يقيني خبره ده چې د چا اخلاق ښه وي او عُمريې هم زيات وي نو ده به خامخا عبادات هم ډير کړي وي چې ددې په نتيجه کې به ورته کمالات او فضائل هم ډير حاصل وي، نو ځکه دا سې کس " بهترين کس " دی.

په نورو احاديثو کې هم دا مضمون ذکر شوی چې په مؤمنانو کې اَفضل ترين کس هغه دی چې اَخلاق يې ښه وي. (٢)

## چې د چا اَخلاق ښه وي د هغه اِيمان کامل وي

**١** . د ابوداؤد شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه . قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ ؟ » قَالُوْا : بَلَى . يَا رَسُوْلَ اللهِ . قَالَ : « خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا ، وَأَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٩٢٣٥ ، مشكوة المصابيح باب الرفق والحياء وحُسن الخلق الفصل الثالث رقم الحديث ٥١٠٠ (٣٣) ، مسند البزار رقم الحديث ٨٥٥٩ ، صحيح ابن حبان محققا رقم الحديث ٢٩٨١ ، شعب الايمان رقم الحديث ٧٦٢٠ ، كنزالعمال رقم ٥٣٨٥ .

وفي رواية : عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ ؟ » . قَالُوْا : بَلَى . قَالَ : خِيَارُكُمْ أَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا . مسند البزار رقم الحديث ١٧٢٣ ، ورقم الحديث ٩٣٢٢ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ١٢٦٦٧ .

(٢) عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ : كُنْتُ عِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . فَقَالَ : كُنْتُ عَاشِرَ عَشَرَةٍ فِي مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَبُوْ بَكْرٍ ، وَعُمَرُ ، وَعُثْمَانُ ، وَعَلِيٌّ ، وَابْنُ مَسْعُوْدٍ ، وَابْنُ جَبَلٍ ، وَحُذَيْفَةُ ، وَابْنُ عَوْفٍ ، وَأَبُوْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيُّ ، وَأَنَا ( رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ) ، فَجَاءَ فَتًى مِنَ الْأَنْصَارِ ، فَسَلَّمَ ، ثُمَّ جَلَسَ ، فَقَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ أَفْضَلُ ؟ فَقَالَ : « أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا » . قَالَ : فَأَيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ أَكْيَسُ ؟ قَالَ : « أَكْثَرُهُمْ لِلْمَوْتِ ذِكْرًا ، وَأَحْسَنُهُمْ اسْتِعْدَادًا قَبْلَ أَنْ يَنْزِلَ بِهِ ، أُولَئِكَ هُمُ الْأَكْيَاسُ » . المعجم الاوسط رقم الحديث ٤٦٧١ ، المستدرک على الصحيحين رقم الحديث ٧٦٢٣ قال الذهبي : صحيح . مجمع الزوائد رقم الحديث ٩٦١٥ ، مسند البزار رقم الحديث ٦١٧٥ .

أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِيْنَ إِيْمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. (۱)

په مؤمنانو کې د کامل ايمان واله خلق هغه دي چې د هغوی اخلاق ډير ښه وي.

۲. په ځنې احاديثو ورسره نوره اضافه هم شته، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِيْنَ إِيْمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا، وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ. (۲)

د ايمان په اعتبار سره کامل مؤمنان هغه خلق دي چې د هغوی اخلاق ډير ښه وي، او (بيا خاصکر) په تاسو کې بهترين کس هغه دی چې هغه د خپل کور واله د پاره ښه وي.

(يعنی د خپلې بي بي سره په نرمۍ او خوش اخلاقۍ باندې ژوند تيروي؛ ځکه زَنانه کمزورې وي، مستحق د رحمت وي، نو خوش اخلاقي او نرمي ورسره په کار ده).

۳. په يو حديث کې راځي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه اوشوه:

أَيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ أَكْمَلُ إِيْمَانًا؟ په مؤمنانو کې د کامل ايمان واله کس څوک دی؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:

أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. چې د چا اخلاق ډير ښه وي. (۳)

٤. امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په إحياء العلوم کې ذکر کړي:

إِنَّ حُسْنَ الْخُلُقِ هُوَ الْإِيْمَانُ، وَسُوْءَ الْخُلُقِ هُوَ النِّفَاقُ.

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ السُّنَّةِ بَابُ الدَّلِيلِ عَلَى زِيَادَةِ الْإِيمَانِ وَنُقْصَانِهِ رقم الحديث ۴۶۸۲ قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثالث ۵۱۰۱(۳۴)، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۲۱، و رقم الحديث ۳۰۳۷۰، مسند احمد رقم الحديث ۱۰۸۱۷، سنن الدارمي رقم ۲۸۳۴، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۷۹، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۰۷۸۳.

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ عَلَى زَوْجِهَا رقم الحديث ۱۱۶۲ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. و رقم الحديث ۲۶۱۲ أَبْوَابُ الْإِيمَانِ بَابُ مَا جَاءَ فِي اسْتِكْمَالِ الْإِيمَانِ وَزِيَادَتِهِ وَنُقْصَانِهِ. مشكوة المصابيح باب عشرة النساء وما لكل واحدة من الحقوق الفصل الثاني رقم ۳۲۶۴(۲۷)، مسند احمد رقم ۷۴۰۲، و رقم ۱۰۱۰۶، السنن الكبرى للنسائي رقم ۹۱۰۹، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۱۷۴، المعجم الاوسط رقم الحديث ۴۴۲۰.

(۳) المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۱۲۳، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۹۳، و رقم الحديث ۳۶۴۳، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۲۳۳۰/۳۱.

بيشکه خوش اخلاقي ايمان دی ، او بدا خلاقي منافقت دی . (۱)

## د دين تکميل او اصلاح په خوش اخلاقۍ سره کيږي

۱ . رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ اللهَ تَعَالَى اخْتَارَ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِيْنًا فَأَكْرِمُوْهُ بِحُسْنِ الْخُلُقِ وَالسَّخَاءِ فَإِنَّهُ لَا يَكْمُلُ إِلَّا بِهِمَا . (۲)

بيشکه الله تعالی ستاسو د پاره د اسلام دين غوره کړې دی ، پس تاسو ددې دين اکرام په خوش اخلاقۍ او سخاوت سره اوکړئ ، ځکه ددې دين تکميل صرف په همدې دوو خويونو سره کيږي .

۲ . په يو حديث کې ذکر دي ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِنَّ هٰذَا الدِّيْنَ هُوَ الَّذِي ارْتَضَيْتُهُ لِنَفْسِيْ ، وَلَا يُصْلِحُهُ إِلَّا خَصْلَتَانِ : اَلسَّخَاءُ وَحُسْنُ الْخُلُقِ . فَأَكْرِمُوْهُ بِهِمَا مَا صَحِبْتُمُوْهُ . (۳)

بيشکه دا (اسلام) هغه دين دی کوم چې ما د خپل ځان د پاره خوښ کړې دی ، او ددې اصلاح صرف په دوه خويونو سره کيږي : يو سخاوت ، او دويم خوش اخلاقي ، پس ترڅو پورې چې تاسو دا دين خپل کړې وي نو په دې دوه خويونو سره ددې اکرام کوئ .

## خوش اخلاقي د کامل مؤمن صفت دی

خوش اَخلاقي د کامل مؤمن صفت دی ، په منافق کې خوش اَخلاقي نه راځي .

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

---

(۱) احياء علوم الدين ج ۳ ص ۶۹ كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلب بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۰ سوء الخلق .

(۲) ادب الدنيا والدين للماوردي اَلْبَابُ الْخَامِسُ أَدَبُ النَّفْسِ الْفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الْخُلُقِ ص ۲۴۲ ، التربية الإسلامية اصولها وتطورها في البلاد العربية ج ۱ ص ۳۵۲ آداب رياضة النفس واستصلاحها .

(۳) تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين للسمرقندي ص ۲۶۳ بَابُ فَضْلِ إِطْعَامِ الطَّعَامِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ .

خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِي مُنَافِقٍ : حُسْنُ سَمْتٍ، وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّينِ. (۱)

دوه (۲) صفتونه په منافق کښې نه جمع کيږي : (يو) خوش أخلاقي ، او (دويم) په دين کښې پوهه.

د نبي عليه السلام مقصد دادی چې مؤمنان دې دا دوه صفتونه په ځان کښې پيدا کړي.

## خوش أخلاقي به د قيامت په ورځ په تله د ميزان کښې وزن دار عمل وي

۱ . رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

مَا شَيْءٌ أَثْقَلُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ ، وَإِنَّ اللهَ لَيُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ . (۲)

د قيامت په ورځ به د مؤمن سړي په تله (د ميزان) کښې د خوش أخلاقي نه دروند بل هيڅ څيز نه وي (يعنی خوش أخلاقي به د ثواب په اعتبار سره وزن دار عمل وي) ، او بيشکه الله تعالی فحش ويونکی او بيهوده خبرې کوونکی (بداخلاقه) نه خوښوي.

۲ . رسولُ الله صلی الله عليه وسلم حضرت ابوذر ﷺ ته اوفرمايل :

يَا أَبَا ذَرٍّ ! أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَصْلَتَيْنِ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ وَأَثْقَلُ فِي الْمِيزَانِ ؟

---

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْعِلْمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْفِقْهِ عَلَى الْعِبَادَةِ رقم الحديث ۲۶۸۴ قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح كتاب العلم الفصل الثاني رقم الحديث ۲۱۹(۲۲) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۰۱۰ ، كنزالعمال رقم الحديث ۲۸۷۷۷ ، حسن السمت فى الصمت ج۱ ص ۲۱ .

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۲۰۰۲ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. مشكوة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸(۱۴) ، كنزالعمال رقم الحديث ۵۱۸۵ كتاب الاخلاق ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۴۱(۳) الترغيب فى الخلق الحسن وفضله ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۸۱ .

وفي رواية : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ شَيْءٍ يُوضَعُ فِي الْمِيزَانِ أَثْقَلُ مِنْ حُسْنِ الْخُلُقِ ... سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۲۰۰۳ قال الالباني : صحيح . كنزالعمال رقم الحديث ۵۱۵۰ الاخلاق .

اې ابوذر ! آيا زه تاته داسې دوه عملونه اُوښائم چې هغه په شا ( يا : ژبه ) باندې ډير آسان دي ، ليکن ( د قيامت په ورځ ) په تله د ميزان کې ډير درانه دي .

حضرت ابوذر ﷺ ورته اوفرمايل : آو ( ضروريې اُوښايې ) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

طُوْلُ الصَّمْتِ ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ ، وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ مَا عَمِلَ الْخَلَائِقُ بِمِثْلِهِمَا . (۱)

اُوږده چُوپتيا ( يعنی ډير خاموش پاتې کيدل ) ، او خُوش اَخلاقي ، قسَم په هغه ذات چې د هغه په قبضهٔ قدرت کې زما ساه ده خلقو ددې دوه خصلتونو نه بهتر بل هيڅ عمل ندې کړی ( يعنی ددې دوه خُويونو نه بهترين بل هيڅ عمل نشته ) .

همداسې مضمون په نورو آحاديثو کې هم ذکر شوی . (۲)

## د خوش اَخلاقۍ په وجه د تهجدو او نفلي روژو ثواب حاصلول

د ابوداؤد شريف حديث دی ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ الصَّائِمِ الْقَائِمِ .

بيشکه ( کامِل ) مؤمن د خپلو ښو اخلاقو په وجه د روژه دار او شپې عبادت کوونکي

---

(۱) عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : « يَا أَبَا ذَرٍّ ! أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَصْلَتَيْنِ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ وَأَثْقَلُ فِي الْمِيْزَانِ ؟ » قَالَ : قُلْتُ : بَلَى . قَالَ : « طُوْلُ الصَّمْتِ ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ ، وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ مَا عَمِلَ الْخَلَائِقُ بِمِثْلِهِمَا . مشكوة المصابيح بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيْبَةِ وَالشَّتْمِ اَلْفَصْلُ الثالث رقم الحديث ۴۸۶۷ (۵۶) ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۴۱ . قَالَ مِيرَكُ نَقْلًا عَنِ الْمُنْذِرِيِّ: أَخْرَجَهُ ابْنُ أَبِي الدُّنْيَا وَالْبَزَّارُ وَالطَّبَرَانِيُّ وَأَبُو يَعْلَى. وَرُوَاتُهُ ثِقَاتٌ . مرقاة ج ۷ ص ۳۰۵۴ .

(۲) وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ وَرَوَاهُ أَبُو الشَّيْخِ ابْنُ حِبَّانَ مِنْ حَدِيْثِ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَلَا أُنَبِّئُكَ بِأَمْرَيْنِ خَفِيْفٌ أَمْرُهُمَا عَظِيْمٌ أَجْرُهُمَا لَمْ تَلْقَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ بِمِثْلِهِمَا : طُوْلُ الصَّمْتِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ » .

وَرَوَاهُ ابْنُ أَبِي الدُّنْيَا أَيْضًا عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ مُرْسَلًا قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَيْسَرِ الْعِبَادَةِ وَأَهْوَنِهَا عَلَى الْبَدَنِ ؟ اَلصَّمْتُ وَحُسْنُ الْخُلُقِ » . مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۰۵۴ بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيْبَةِ وَالشَّتْمِ اَلْفَصْلُ الثالث في تشريح رقم الحديث ۴۸۶۷ (۵۶) .

درجه حاصلوي. (۱)

## د خوش اَخلاقۍ په وجه اوچتې درجې حاصلول

۱ . رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

إِنَّ الْعَبْدَ لَيَبْلُغُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ عَظِيْمَ دَرَجَاتِ الْآخِرَةِ ، وَشَرَفَ الْمَنَازِلِ وَ إِنَّهُ لَضَعِيْفُ الْعِبَادَةِ، وَإِنَّهُ لَيَبْلُغُ بِسُوْءِ خُلُقِهِ أَسْفَلَ دَرَجَةٍ فِي جَهَنَّمَ . (۲)

بیشکه بنده د خپلو ښو اَخلاقو په وجه د آخرت اُوچتو درجو او مُعزّز مقام ته رَسي اګر چې دده عبادات کمزوري وي ، او بیشکه بنده د بَداخلاقۍ په وجه د جهنم ښکته مرتبې ته رَسي.

۲ . جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

أَرْبَعٌ تَرْفَعُ الْعَبْدَ إِلَى أَعْلَى الدَّرَجَاتِ وَإِنْ قَلَّ عَمَلُهُ وَعِلْمُهُ : اَلْحِلْمُ وَالتَّوَاضُعُ وَالسَّخَاءُ وَحُسْنُ الْخُلُقِ ، وَهُوَ كَمَالُ الْإِيْمَانِ . (۳)

څلور شیان انسان اُوچتو درجو ته رسوي اګر چې دده عمَل او عِلم کم وي : حِلم ، تواضع، سخاوت ، او خوش اخلاقي ، او په دې خوش اَخلاقۍ سره اِیمان کامِل کیږي .

---

(۱) سنن ابي داود كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۷۹۸ قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸۲(۱۵) ، الآداب للبيهقي باب في حسن الخلق رقم الحديث ۱۵۴ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۱۴۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۴۳ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۱۲۰۱ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ..... وَإِنَّ صَاحِبَ حُسْنِ الْخُلُقِ لَيَبْلُغُ بِهِ دَرَجَةَ صَاحِبِ الصَّوْمِ وَالصَّلوةِ . سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۲۰۰۳ قال الالباني: صحيح .

كنز العمال رقم الحديث ۵۱۵۰ الاخلاق . مجمع الزوائد باب ماجاء في حسن الخلق رقم الحديث ۱۲۶۹۲ ، رقم الحديث ۷۵۴ ،

(۲) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۵۴ ، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ۶۱ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۵۱ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم ۴۰۰۸ الترغيب في الخلق الحسن وفضله ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۴۷ سوء الخلق . كنز العمال رقم الحديث ۵۱۴۹ ، صلاح الامة ج ۷ ص ۱۴۷ علوّ الهمة في

(۳) احياء علوم الدين ج ۳ ص ۵۲ بَيَانُ فَضِيلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَمَذَمَّةِ سُوْءِ الْخُلُقِ .

## خوش اَخلاقه کس د پاره نبي ﷺ د جنت په مینځ کې د کور ضمانت کړی

د چا اَخلاق چې ښه وي نو د داسې کس د پاره نبي علیه السلام د جنت په مینځ کې د کور ضمانت کړی ، د ابوداؤد شریف حدیث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَإِنْ كَانَ مُحِقًّا ، وَبِبَيْتٍ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَإِنْ كَانَ مَازِحًا ، وَبِبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ .

زه د هغه کس د پاره د جنت په اَطرافو کې د کور ضامِن یم چې هغه په حق باندې د کیدلو باوجود جګړه پرېږدي ، او دهغه چا د پاره د جنت په مینځ کې د کور ضامِن یم چې هغه په ټوقو کې هم دروغ پرېږدي ، او د هغه چا د پاره په اعلی جنت کې د کور ضامِن یم چې هغه خپل اخلاق ښائسته کړي . (۱)

## جنت ته ډېر بوتلونکې څیز تقوی او خوش اَخلاقي ده

حضرت ابوهریرة رضي الله عنه فرمایي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اوشوه :

مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ الْجَنَّةَ ؟

هغه کوم څیز دی چې هغه عام طور انسان جنت ته داخلوي ؟

نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

تَقْوَى اللهِ ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ . د الله جل جلاله نه يَره او ښائسته اخلاق .

تپوس کوونکي بیا عرض اوکړو :

وَمَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ النَّارَ ؟ هغه کوم څیز دی چې هغه اکثره انسان جهنم ته داخلوي ؟

نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

اَلْأَجْوَفَانِ : اَلْفَمُ وَالْفَرْجُ .

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۸۰۰ قال الالباني: حسنٌ. المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۷۸ ، و رقم الحديث ۴۶۹۳ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۴۸۸ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۱۷۶ ، شعب الايمان فصلٌ في المزاح ، و رقم الحديث ۷۶۵۳ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۷۰۷ ، كنزالعمال رقم الحديث ۸۲۹۹ ، و رقم الحديث ۸۳۰۸ .

هغه دوه ځائه ځيزونه دي: (يعني) خُله او شرمګاه.(۱)

## چې چاته خوش اخلاقي ورکړې شوه نو هغه ته بهترين نعمت ورکړې شو

صحابه کرامو رضي الله عنهم د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه اوکړه:

يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ الْإِنْسَانُ؟

اې د الله رسوله! انسان ته چې څه (نعمتونه) ورکړل شوي په هغې کې بهترين ځيز کوم يو دى؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: اَلْخُلُقُ الْحَسَنُ. ښائسته اخلاق.(۲)

## حضرت معاذ رضي الله عنه ته د خوش اخلاقۍ وصيت

رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت معاذ رضي الله عنه لره يَمن ته د قاضي په حيثيت ليږلو، نو د تللو په وخت يې ورته څه وصيتونه کړي وو، په هغې کې آخري وصيت يې ورته د خوش اخلاقۍ

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ الْجَنَّةَ؟ قَالَ: «تَقْوَى اللهِ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ»، قَالَ: وَمَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ النَّارَ؟ قَالَ: "اَلْأَجْوَفَانِ: اَلْفَمُ وَالْفَرْجُ". الادب المفرد مخرجا للبخاري رقم الحديث ۲۹۴ بَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ إِذَا فَقِهُوا.

وفي رواية: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْثَرِ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ الْجَنَّةَ، فَقَالَ: «تَقْوَى اللهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ»، وَسُئِلَ عَنْ أَكْثَرِ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ النَّارَ، فَقَالَ: «اَلْفَمُ وَالْفَرْجُ». سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۲۰۰۴ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. سنن ابن ماجة رقم الحديث ۴۲۴۶، مشكوة المصابيح بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيبَةِ وَالشَّتْمِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۸۳۲، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۹۱۹ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخْرِجَاهُ. ووافقه الذهبي، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۲۵.

(۲) عَنْ رَجُلٍ مِنْ مُزَيْنَةَ قَالَ: قَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ الْإِنْسَانُ؟ قَالَ: اَلْخُلُقُ الْحَسَنُ. مشكوة المصابيح باب الرّفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثالث رقم الحديث ۵۰۷۸(۱۱)، شعب الايمان رقم الحديث ۱۴۳۵، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۸۲۰۶، المعجم الاوسط رقم الحديث ۳۶۷، المعجم الكبير رقم الحديث ۳۶۶، و رقم الحديث ۴۷۹، و رقم الحديث ۴۸۵، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۱۲۱۰. الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۲۹۱:

په باره کښې کړې ؤ .

په مشکوة شریف او نورو د احادیثو په کتابونو کښې دا حدیث ذکر دی ، حضرت معاذ رضي الله عنه فرمايي :

كَانَ آخِرُ مَا وَصَّانِيْ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ وَضَعْتُ رِجْلِيْ فِي الْغَرْزِ أَنْ قَالَ : يَا مُعَاذُ ! أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ .

آخري وصيت چې ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم كړې ؤ کله چې ما خپله خپه (د اوښ) په رِکاب (پائیدان) کښې ایښې وه هغه دا ؤ : اې معاذ ! ته د خلقو سره خپل اخلاق ښه کړه ( یعنی خوش اخلاقي ورسره کوه ) . (۱)

نبي علیه السلام حضرت معاذ رضي الله عنه ته د تللو په وخت دا هم ویلي ؤ : " اې معاذ ! کیدې شي ته بیا ما او نه ګورې " . بیا همداسې اوشوه حضرت معاذ رضي الله عنه په یَمن کښې ؤ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفات شو .

## حضرت ابوذر رضي الله عنه ته د خوش اَخلاقۍ حُکم

د ترمذي شریف حدیث دی ، حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمایل :

اِتَّقِ اللهِ حَيْثُمَا كُنْتَ، وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا. وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ . (۲)

ته چې هر چیرته یې د الله جل جلاله نه ویریږه ، د بَدۍ پسې نیکي کوه نو دا نیکي به دا بَدي

(۱) مشكوة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ اَلْفَصْلُ الثَّالِث رقم الحديث ۵۰۹۵(۲۸) ، موطا مالک ۹۰۲/۲ كِتَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۱ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۰۲۹ الترغيب في الخلق الحسن وفضله .

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي مُعَاشَرَةِ النَّاسِ رقم الحديث ۱۹۸۷ وقال الترمذي : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. مسند احمد رقم الحديث ۲۱۳۵۴ ، و رقم الحديث ۲۱۴۰۳ ، و رقم الحديث ۲۱۹۸۸ ، سنن الدارمي رقم الحديث ۲۸۳۳ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۳۷۷۹ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۲۹۶ ، و رقم الحديث ۲۹۷ ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۱۷۸ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ، و وافقه الذهبي ، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸۳(۱۶) .

ختمه کړي، او د خلقو سره ښه اخلاق کوه (يعنی د خوش اخلاقۍ معامله ورسره کوه).
نبي عليه السلام به عامو صحابه کرامو ته هم د ښو اخلاقو حُکم کولو. (١)

## د خلقو سره په خوش اخلاقۍ باندې د خبرو کولو حُکم

الله ربّ العزت فرمايي: ﴿ وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا ﴾. (٢)
ترجمه: او خلقو ته ښه خبره کوئ.
(يعنی د خلقو سره په نرمۍ، رُوڼ تندي، او خوش اخلاقۍ باندې خبرې کوئ).

## په ښو اَخلاقو سره انسان نور خلق د ځان نه خوشحالولې شي

انسان په مال و دولت سره نور خلق د ځان نه دومره نشي خوشحالولی څومره چې په ښو اَخلاقو سره يې خوشحالولې شي، ځکه مال و دولت خو دومره ډير نه وي چې هر چاته اُورسي، خو خوش اَخلاقي انسان د هرچا سره کولې شي.
رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:
إِنَّكُمْ لَنْ تَسَعُوا النَّاسَ بِأَمْوَالِكُمْ، وَلٰكِنْ يَسَعُهُمْ مِنْكُمْ بَسْطُ الْوَجْهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ. (٣)
بيشکه تاسو خلق په خپلو مالونو سره نشی خوشحالولی (يعنی د تاسو سره دومره ډير

---

(١) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ: لَمَّا بَلَغَ أَبَا ذَرٍّ رضي الله عنه مَبْعَثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ لِأَخِيهِ: اِرْكَبْ إِلَى هٰذَا الْوَادِي فَاعْلَمْ لِي عِلْمَ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ. يَأْتِيهِ الْخَبَرُ مِنَ السَّمَاءِ. وَاسْمَعْ مِنْ قَوْلِهِ ثُمَّ ائْتِنِي. فَانْطَلَقَ الْأَخُ حَتّٰى قَدِمَهُ، وَسَمِعَ مِنْ قَوْلِهِ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى أَبِي ذَرٍّ رضي الله عنه فَقَالَ لَهُ: رَأَيْتُهُ يَأْمُرُ بِمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ، وَكَلَامًا مَا هُوَ بِالشِّعْرِ ... صحيح البخاري كتاب مَنَاقِبِ الأَنْصَارِ بَابُ إِسْلَامِ أَبِي ذَرٍّ الْغِفَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رقم الحديث ٣٨٦١ ، وَبَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ وَالسَّخَاءِ، وَمَا يُكْرَهُ مِنَ الْبُخْلِ قبل رقم الحديث ٦٠٣٣ ، صحيح مسلم كتاب فَضَائِلِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ بَابُ مِنْ فَضَائِلِ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رقم الحديث ١٣٣(٢٤٧٤).

(٢) البقرة آية ٨٣.

(٣) صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ٢٦٦١(٢٣) الترغيب في الخلق الحسن وفضله والترهيب من الخلق السيء وذمه . وقال المنذري: رواه أبو يعلى والبزار من طرق أحدها حسن جيد ، مجمع الزوائد رقم الحديث ١٢٦٧٥ باب ما جاء في حسن الخلق ، مسند البزار رقم الحديث ٩٣١٩ ، و رقم الحديث ٩٦٥١ ، ادب الدنيا والدين ص ٢٠١ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ٥٠ ، صفة الصفوة ج١ ص ٨٠ ، تنبيه الغافلين ص ٣٦٢ باب فضل اطعام الطعام وحسن الخلق.

مال نشته چې هر چاته يې ورکړې او خوشحال يې کړې (۱) ) ، بلکه دوی د تاسو نه د مخ په تازګۍ (رُونِ تَندي) او ښو اخلاقو سره خوشحالېږي .

## د خوش اَخلاقه سړي دوستان زيات او دُشمنان يې کم وي

چې کله د انسان اخلاق ښه وي نو دده دوستان زيات وي، خلق ورسره محبت کوي ، او دُشمنان يې کم وي ، نو ده ته سخت کارونه آسان وي ، او غضب ناک زړونه ورته نرم وي . (۲)

## د خوش اَخلاقۍ په وجه خپل مينځي محبت پيدا کيږي

د خوش اَخلاقۍ او نرمۍ په وجه د مسلمانانو په خپل مينځ کې محبت پيدا کيږي ، دُشمني او نفرتونه ختميږي .

الله ربّ العزت فرمايي :

﴿ وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ۚ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ ﴾ . (۳)

ترجمه : او نيکي او بَدي برابر ندي ، ته (بَدي) په داسې طريقې سره دَفع (لرې) کړه چې هغه ښه وي (يعنی د بَدۍ جواب په نرمې طريقې سره ورکوه) نو فورًا به هغه کس چې ستا او د هغه په مينځ کې دُشمني وي هغه به داسې (نرم) شي ګويا هغه (ستا) ګرم (مُخلصه) دوست دی .

علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې نبي عليه السلام اکثره د تقوی او خوش اَخلاقۍ حُکم

---

(۱) (إِنَّكُمْ لَنْ تَسَعُوا النَّاسَ بِأَمْوَالِكُمْ) اي لا تتسع أموالكم لعطائهم فوسعوا اخلاقكم لصحبتهم . شرح المشكاة للطيبي ج٦ ص ۲۰۰۸ .

(۲) فَإِذَا حَسُنَتْ أَخْلَاقُ الْإِنْسَانِ كَثُرَ مُصَافُوهُ ، وَقَلَّ مُعَادُوهُ ، فَتَسَهَّلَتْ عَلَيْهِ الْأُمُورُ الصِّعَابُ ، وَلَانَتْ لَهُ الْقُلُوبُ الْغِضَابُ . ادب الدنيا والدين ص ۲۴۳ اَلْبَابُ الْخَامِسُ أَدَبُ النَّفْسِ اَلْفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الْخُلُقِ . نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۴ حسن الخلق .

فَإِذَا حَسُنَتْ أَخْلَاقُ الْمُسْلِمِ كَثُرَ مُصَافُوهُ ، وَأَحَبَّهُ النَّاسُ . موسوعة الاخلاق الخراز ج۱ ص ۷۸ .

(۳) حم السجدة (فصلت) آية ۳۴ .

یو ځای کړی. (۱)

دا ځکه چې د تقولی په وجه د بنده او الله ﷻ په مینځ کې ښه تعلق جوړیږي ( یعنی د تقولی په وجه انسان د الله ﷻ محبوب جوړیږي ) ، او د خوش اَخلاقۍ په وجه د مسلمانانو په خپل مینځ کې محبت پیدا کیږي. (۲)

د خوش اَخلاقۍ په وجه انسان ځان ته د نورو خلقو زړونه راماِئل کولې شي ، بیا د هرې طبقې خلق دده سره محبت کوي او دده سره د کیناستلو مِینه لري.

تر دې چې دده دُشمنان هم دده سره محبت شروع کړي ، او دده په مجلس کې کیناستل خوَښوي. (۳)

## په خوش اخلاقۍ سره په عِلم کې زیادت راځي

د خوش اخلاقۍ په وجه د انسان زړه صفا او مطمئن کیږي ، تواضع او اَدب په کې پیدا

---

(۱) لکه په دې حدیث کې هم د تقوی او خوش اخلاقۍ حُکم یو ځای شوی :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه : سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ الْجَنَّةَ ؟ قَالَ: تَقْوَى اللهِ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ .... الادب المفرد مخرجا للبخاري رقم الحديث ۲۹۴ بَابُ حُسْنِ الْخُلُقِ إِذَا فَقِهُوا.

(۲) جَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ تَقْوَى اللهِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ ، لِأَنَّ تَقْوَى اللهِ يُصْلِحُ مَا بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ رَبِّهِ ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ يُصْلِحُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ خَلْقِهِ . فَتَقْوَى اللهِ تُوجِبُ لَهُ مَحَبَّةَ اللهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ يَدْعُو النَّاسَ إِلَى مَحَبَّتِهِ. الفوائد لابن القيم ص ۵۴ .

(۳) فحسن الخلق من أعظم الأسباب الداعية لكسب القلوب، فهو يحبب صاحبه للبعيد والقريب، وبه ينقلب العدو صديقا، ويصبح البغيض حبيبا، ويصير البعيد قريبا. وبحسن الخلق يتقرب المرء للناس، ويتمكن من إرضائهم على اختلاف مشاربهم، وطبقاتهم، فكل من جالس حسَن الخلق أحبه، و رغب في مجلسه. سوء الخلق ص ۸۳ المبحث الثاني: فضائل حسن الخلق.

اَلخلقُ الحسنُ يحبّب المسلم الى النّاس جميعًا حتى أعدائه ، و يتمكن بذلک من إرضاء النّاس على اختلاف طبقاتهم . وكلّ مَن جالسه او خالطه أحبّه ، و بهذا يسهل على الدّاعية إدراک مطالبه السامية بإذن الله تعالى لأنّ الدعاة إلى الله عز وجل لا يَسعَون الناس بأموالهم ولكن ببسط الوجه وحسن الخلق . الخلق الحسن في ضوء الكتاب والسنّة ج۱ ص ۱۱ .

کيږي ، او دا خبره يقيني ده چې کله په انسان کې آدب وي او په عِلمي مجلس کې شِرکت کوي نو په دې سره دده په علم کې اضافه کيږي . (١)

## په خوش اخلاقۍ سره رزق فراخه کيږي

يحيٰى بن معاذ رحمه الله فرمايي : فِي سَعَةِ الْأَخْلَاقِ كُنُوزُ الْأَرْزَاقِ . (٢)
په خوش اخلاقۍ کې د رزق خزانې دي .

## چې چاته الله ﷻ د خير اراده اوکړي . يا ورسره محبت کول اوغواړي نو ښه اخلاق ورکړي

١. رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

إِنَّ هٰذِهِ الْأَخْلَاقَ مِنَ اللهِ. فَمَنْ أَرَادَ اللهُ بِهِ خَيْرًا مَنَحَهُ خُلُقًا حَسَنًا . وَمَنْ أَرَادَ بِهِ سُوْءًا مَنَحَهُ سَيِّئًا . (٣)

بيشکه دا اخلاق د الله ﷻ د طرفه دي ، پس چاته چې الله تعالى د خير اراده اوکړي نو هغه ته ښائسته اخلاق ورکړي ، او چاته چې بَده اِراده اوکړي نو بَد اَخلاق ورکړي .

---

(١) فبالخلق الحسن يصفو القلب، وتطمئن النفس، وذلك مدعاة لأن يتمكن المرء من معرفة العلوم التي يسعى لإدراكها، والمعارف التي يروم تحصيلها. ثم إن حسن الخلق يدعو صاحبه للتواضع. والتأدب في مجالس العلم. وهذا مما يزيد العلم. ويقوي الإدراك. سوء الخلق ص ٨٦ المبحث الثاني: فضائل حسن الخلق.

(٢) احياء علوم الدين ج٣ ص ٥٢ بَيَانُ فَضِيلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَمَذَمَّةِ سُوءِ الخلق . صلاح الأمة في علو الهمة ج ٧ ص ١٤٧ علو الهمة في حسن الخلق.

(٣) المعجم الاوسط للطبراني رقم الحديث ٨٦٢١ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ٤٠٣٩ الترغيب في الخلق الحسن وفضله . مجمع الزوائد باب ماجاء في حسن الخلق رقم الحديث ١٢٦٦١ ، كنزالعمال رقم الحديث ٥١٥٦، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج٢ ص ٣٢٣ ، مرقاة المفاتيح ج٨ ص ٣١٧٤ في تشريح حديث ٥٠٧٣ ، و ص ٣٢٦١ في تشريح حديث ٥٢٠٨ .

وفي رواية : إِنَّ هٰذِهِ الْأَخْلَاقَ مَنَائِحُ يَمْنَحُهَا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ . فَإِذَا أَرَادَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ بِعَبْدٍ خَيْرًا مَنَحَهُ مِنْهَا خُلُقًا صَالِحًا . مكارم الأخلاق لإبن ابي الدنيا ج١ ص ٢٦ رقم ٣٤ ، مرقاة المفاتيح ج ٨ ص ٣١٧٤ في تشريح حديث ٥٠٧٣ ، كنزالعمال رقم الحديث ٥١٥٣ الكتاب الثالث في الاخلاق .

۲. په یو حدیث کې ذکر دي ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِنَّ النَّاسَ لَمْ يُعْطَوْا شَيْئًا خَيْرًا مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ . (۱)

بيشكه خلقو ته د خوش اخلاقۍ نه بهترين بل هيڅ څيز ندې ورکړې شوی .

## د انسان شرافت په خوش اَخلاقۍ کې دی

۱. رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

كَرَمُ الْمُؤْمِنِ دِيْنُهُ ، وَمُرُوْءَتُهُ عَقْلُهُ ، وَحَسَبُهُ خُلُقُهُ . (۲)

د مؤمِن عزت دده دِين دی ، دده مُروّت دده عقل دی ، او دده شرافت دده اخلاق دي .
(يعنی د انسان شرافت دده په اخلاقو سره دی) .

۲. په يو بل حديث کې راځي ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوذر رضي الله عنه ته وصيت کولو سره اوفرمايل :

يَا أَبَا ذَرٍّ ! لَا عَقْلَ كَالتَّدْبِيْرِ ، وَلَا وَرَعَ كَالْكَفِّ ، وَلَا حَسَبَ كَحُسْنِ الْخُلُقِ . (۳)

(۱) ...قَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! فَمَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ النَّاسُ ؟ فَقَالَ: إِنَّ النَّاسَ لَمْ يُعْطَوْا شَيْئًا خَيْرًا مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۶۳ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۱۵۱ ، صلاح الامة في علو الهمة ج۷ ص ۱۴۳ .
وفي روايةٍ : قَالُوْا: مَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ النَّاسُ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ: خُلُقٌ حَسَنٌ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۸۴۵۴ . سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۴۳۶ كِتَابُ الطِّبِّ بَابُ مَا أَنْزَلَ اللهُ دَاءً إِلَّا أَنْزَلَ لَهُ شِفَاءً .

(۲) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۴۲۵ وقال الحاكم : هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحٌ عَلَى شَرْطِ مُسْلِمٍ ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ وَلَهُ شَاهِدٌ . ووافقه الذهبي ، مسند احمد رقم الحديث ۸۷۷۴ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۸۳ ، المعجم الاوسط للطبراني رقم الحديث ۶۶۸۶ ، مكارم الاخلاق للطبراني رقم الحديث ۲۸ ، تنبيه الغافلين ص ۴۶۲ ، سنن الدار قطني رقم الحديث ۳۸۰۴ ، و رقم الحديث ۳۸۰۷ ، الآداب للبيهقي رقم ۱۶۴ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم ۱۳۷۷۷ ، و رقم ۲۰۸۱۰ ، شعب الايمان رقم ۴۳۳۵ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم ۴۰۱۱ ، معجم ابن عساكر رقم ۸۰۶ .

(۳) صحيح ابن حبان مخرجا رقم الحديث ۳۶۱ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۲۶۸۸ ، سنن ابن ماجة باب الورع والتقوى رقم الحديث ۴۲۱۸ ، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ۴۸ ، مكارم الاخلاق للطبراني رقم الحديث ۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۴۳۲۵ ، و رقم ۴۳۲۶ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۱۲۰۷ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم ۳۳۷۸ ، و رقم ۴۰۱۲ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۷۱۱۳ ، ورقم الحديث ۱۸۰۳۸ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۴۳۶ ، و رقم الحديث ۸۷۳۴ ، مشكوة المصابيح باب الحذر والتاني في الامور الفصل الثالث رقم الحديث ۵۰۶۶(۱۴) .

اې ابوذر ! د تدبير په شان هيڅ عقل نشته ، د گناهونو نه د بچ کيدو په شان هيڅ پرهيزگاري نشته ، او د ښو اخلاقو په شان هيڅ شرافت نشته .

( يعنى يو کس چې د هر کار په باره کې تدبير کوي او د هغې أنجام ته گوري نو ددې په شان بهترين عقل بل نشته ، او څوک چې ځان د حرامو او شبهاتو نه ساتي نو ددې په شان بله هيڅ پرهيزگاري نشته ، او د خوش اخلاقۍ په شان بل عزت او شرافت نشته ) . (۱)

## خوش اَخلاقه انسان نېک بَخته وي

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

مِنْ سَعَادَةِ ابْنِ آدَمَ حُسْنُ الْخُلُقِ ، وَمِنْ شِقْوَتِهِ سُوْءُ الْخُلُقِ . (۲)

د انسان د نېک بَختيا علامه دا ده چې دده اخلاق به ښه وي ، او دده د بَدبَختيا علامه داده چې دده اخلاق به خراب وي .

## غټه نيکي خوش اخلاقي ده

۱. د مسلم شريف حديث دی ، حضرت نوّاس بن سِمعان ﷺ فرمايي چې ما د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم نه د نېکۍ او بَدۍ متعلق پوښتنه اوکړه ( چې دا چاته وايي ؟ ) ، نو دوی راته اوفرمايل :

اَلْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ، وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِيْ صَدْرِكَ، وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ .

---

(۱) (لَا عَقْلَ كَالتَّدْبِيْرِ ) ... فَالْمَعْنٰى لَا عَقْلَ كَعَقْلِ التَّدْبِيْرِ أَيْ كَالْعَقْلِ الَّذِيْ يَصْحَبُهُ التَّدْبِيْرُ، وَهُوَ الَّذِيْ يَنْظُرُ فِيْ دُبُرِ الْأَمْرِ وَعَاقِبَتِهِ وَيُمَيِّزُ مَا يُحْمَدُ وَيُذَمُّ فِي الْآخِرَةِ . وَلَا شَكَّ أَنَّ مَدَارَهُ عَلَى الْعَقْلِ الْمَسْمُوْعِ (وَلَا وَرَعَ كَالْكَفِّ) أَيْ وَلَا تَوَرُّعَ عَنِ الْمُحَرَّمَاتِ وَالشُّبُهَاتِ مِثْلَ الْكَفِّ عَنِ الْمُعَامَلَاتِ وَتَرْكِ الْمُبَاحَاتِ لَا الضَّرُوْرِيَّاتِ (وَلَا حَسَبَ) أَيْ: لَا مَكْرَمَةَ وَشَرَفَ (كَحُسْنِ الْخُلُقِ) أَيْ كَمُدَارَاةِ الْخَلْقِ مَعَ مُرَاعَاةِ الْحَقِّ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج۸ ص۳۱۶۸ في تشريح حديث ۵۰۶۵ .

(وَلَا حَسَبَ) أَيْ لَا شَرَفَ لِلنَّفْسِ مِثْلُ الشَّرَفِ الْحَاصِلِ بِحُسْنِ الْخُلُقِ . شرح محمد فؤاد عبد الباقي على سنن ابن ماجه في تشريح حديث ۴۲۱۸ .

(۲) شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۷۹ ، كنزالعمال رقم الحديث ۵۲۲۳ ، المنتقى من كتاب مكارم الاخلاق و معاليها رقم الحديث ۲۲ ، مكارم الاخلاق للخرائطي .

غټه نيکي خوش اَخلاقي ده (يعنى د نيکۍ ښه صورت خوش اخلاقي ده)، او ګناه هغه کار دى چې هغه ستا په زړه کې تردّد پيدا کوي، او ته دا خبره بده ګڼرې چې خلق په دې کار باندې خبر شي. (۱)

**فائده** : په دې حديث کې رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نيکۍ تفسير په خوش اخلاقۍ سره او کړو، يعنى چې يو کس ښه اخلاق کاروي نو همدا د نيکۍ ښه صورت دى.

او د ګناه پيژندلو طريقه يې دا ذکر کړه، چې کله د يو کار په کولو سره د نېک سړي په زړه کې تردّد پيدا کيږي، او په دې باندې د نورو خلقو خبريدل بد ګڼرې نو دا علامه ددې ده چې دا کار د ګناه دى. (۲)

---

(۱) عَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سِمْعَانَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ. فَقَالَ: اَلْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ، وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِيْ صَدْرِكَ، وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ. صحيح مسلم كِتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ تَفْسِيرِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ رقم الحديث ۱۴(۲۵۵۳)، و رقم الحديث ۱۵(۲۵۵۳)، الادب المفرد رقم الحديث ۲۹۵، و رقم الحديث ۳۰۲، سنن الترمذي أَبْوَابُ الزُّهْدِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبِرِّ وَالْإِثْمِ رقم الحديث ۲۳۸۹، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۹۷، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۲۱۷۲، شعب الايمان رقم الحديث ۶۸۸۷، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الاول رقم الحديث ۵۰۷۳(۶)، كنزالعمال رقم ۵۱۶۳، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۱۷۳۳(۳).

أَيْ: مَعَ الْخَلْقِ بِأَمْرِ الْحَقِّ أَوْ مُدَارَاةُ الْخَلْقِ.
(۲) (اَلْبِرُّ) أَيْ: أَعْظَمُ خِصَالِهِ، أَوِ الْبِرُّ كُلُّهُ مُجْمَلًا (حُسْنُ الْخُلُقِ) وَمُرَاعَاةُ الْحَقِّ. قِيْلَ: فُسِّرَ الْبِرُّ فِي الْحَدِيْثِ بِمَعَانٍ شَتَّى: فَفَسَّرَهُ فِيْ مَوْضِعٍ بِمَا اطْمَأَنَّتْ إِلَيْهِ النَّفْسُ وَاطْمَأَنَّ إِلَيْهِ الْقَلْبُ، وَفَسَّرَهُ فِيْ مَوْضِعٍ بِالْإِيْمَانِ، وَفِيْ مَوْضِعٍ بِمَا يُقَرِّبُكَ إِلَى اللهِ، وَهُنَا بِحُسْنِ الْخُلُقِ، وَفُسِّرَ حُسْنُ الْخُلُقِ بِاحْتِمَالِ الْأَذٰى وَقِلَّةِ الْغَضَبِ وَبَسْطِ الْوَجْهِ وَطِيْبِ الْكَلَامِ، وَكُلُّهَا مُتَقَارِبَةٌ فِي الْمَعْنٰى ذَكَرَهُ الطِّيْبِيُّ ...... (وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ) أَيْ: تَرَدَّدَ وَتَحَرَّكَ وَأَثَّرَ (فِيْ صَدْرِكَ) : وَرِوَايَةُ الْأَرْبَعِيْنَ: فِيْ نَفْسِكَ بِأَنْ لَمْ تَنْشَرِحْ لَهُ وَحَلَّ فِي الْقَلْبِ مِنْهُ الشَّكُّ وَالْخَوْفُ مِنْ كَوْنِهِ ذَنْبًا وَأَقْلَقَهُ وَلَمْ يَطْمَئِنَّ إِلَيْهِ. قَالَ التُّوْرِبِشْتِيُّ: يُرِيْدُ أَنَّ الْإِثْمَ مَا كَانَ فِي الْقَلْبِ مِنْهُ شَيْءٌ فَلَا يَنْشَرِحُ لَهُ الصَّدْرُ، وَالْأَقْرَبُ أَنَّ ذٰلِكَ أَمْرٌ يَتَهَيَّأُ لِمَنْ شَرَحَ اللهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ دُوْنَ عُمُوْمِ الْمُؤْمِنِيْنَ، وَقَالَ شَارِحٌ: يَعْنِي الْإِثْمَ مَا أَثَّرَ قُبْحُهُ فِيْ نَفْسِكَ أَيْ تَرَدَّدَ فِيْ قَلْبِكَ وَلَمْ تُرِدْ أَنْ تُظْهِرَهُ لِكَوْنِهِ قَبِيْحًا، وَهُوَ الْمَعْنِيُّ بِقَوْلِهِ: (وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ) أَيْ: أَعْيَانُهُمْ وَأَمْثَالُهُمْ إِذِ الْجِنْسُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْكَامِلِ، وَذٰلِكَ لِأَنَّ النَّفْسَ بِطَبْعِهَا تُحِبُّ اطِّلَاعَ النَّاسِ عَلٰى خَيْرِهَا، فَإِذَا كَرِهْتَ الْاِطِّلَاعَ عَلٰى بَعْضِ أَفْعَالِهَا فَهُوَ غَيْرُ مَا تُقُرِّبَ بِهِ إِلَى اللهِ، أَوْ غَيْرُ مَا أَذِنَ الشَّرْعُ فِيْهِ، وَعَلِمَ أَنَّهُ لَا خَيْرَ فِيْهِ وَلَا بِرَّ، فَهُوَ إِذًا إِثْمٌ وَشَرٌّ. مرقاة ج ۸ ص ۳۱۷۳

۲. په يو بل حديث کې هم خوش اخلاقي ته نيکي ويل شوي، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ شَيْئًا وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ. (۱)

ته هيڅ نيکي سپکه (معمولي) مه ګڼه اګر چې هغه ستا د خپل ورور سره په رُوڼ تندي ملاقات کول وي.

(يعنی که ته د خپل ورور سره په خوشحالي ملاؤ شوې نو دا هم نيکي ده، ځکه په دې سره به د هغه زړه ښه شي، او د يو مسلمان زړه خوشحالول نيکي ده).

۳. په يو حديث کې ذکر دي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

... إِنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ. (۲)

بيشکه دا هم نيکي ده چې ته د خپل ورور سره په رُوڼ (رُوښانه) تندي باندې ملاؤ شې.

۴. بلکه په احاديثو کې خپل ورور ته مُسکې کيدل هم صدقه ګرځول شوي:

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

تَبَسُّمُكَ فِيْ وَجْهِ أَخِيْكَ لَكَ صَدَقَةٌ. (۳)

خپل ورور ته تَبَسّم کول (يعنی هغه ته مُسکې کيدل) ستا د پاره صدقه ده.

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ اسْتِحْبَابِ طَلَاقَةِ الْوَجْهِ عِنْدَ اللِّقَاءِ رقم الحديث ۱۴۴ (۲۶۲۶)، مشكاة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الاول رقم الحديث ۱۸۹۴(۷)، مسند احمد رقم الحديث ۲۰۶۳۵، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۶۱۶، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۲۳، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۶۳۸۵

(۲) پوره حديث داسې دی: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُّ مَعْرُوْفٍ صَدَقَةٌ. وَإِنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ. وَأَنْ تُفْرِغَ مِنْ دَلْوِكَ فِيْ إِنَاءِ أَخِيْكَ. سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ طَلَاقَةِ الْوَجْهِ وَحُسْنِ الْبِشْرِ رقم الحديث ۱۹۷۰ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۴۸۷۷، الادب المفرد مخرجا باب طيب النفس رقم الحديث ۳۰۴، مشكاة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الثاني رقم الحديث ۱۹۱۰(۲۳)، كنزالعمال رقم الحديث ۱۶۳۳۹، صحيح الترغيب والترهيب رقم ۲۶۸۳(۲) الترغيب في طلاقة الوجه وطيب الكلام وغير ذلك مما يذكر.

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ صَنَائِعِ الْمَعْرُوْفِ رقم الحديث ۱۹۵۶ قال الالباني: صحيح. مشكاة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الثاني رقم الحديث ۱۹۱۱(۲۴)، صحيح ابن حبان رقم ۴۷۴، المعجم الاوسط رقم ۸۳۴۲، مجمع الزوائد رقم ۴۷۴۳، كنزالعمال رقم الحديث ۱۶۳۰۵، صحيح الترغيب والترهيب ۲۳۲۱(۲۰).

# د نبي عليه السلام ښائسته اخلاق

مسلمان به په اخلاقو کې هم د رسول الله ﷺ اتباع کوي، او د هغوی اخلاق خو ډير ښائسته وو، الله تعالى نبي عليه السلام ته فرمايي:

﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾. (۱)

ترجمه: او (اې پيغمبره!) بيشکه ته په اُوچتو اَخلاقو باندې (موصوف) يې.

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي:

كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ خُلُقًا. (۲)

رسول الله صلى الله عليه وسلم په ټولو خلقو کې د ښائسته اخلاقو واله ؤ.

اوس درته د نبي عليه السلام د ښائسته اخلاقو متعلق يو څو واقعات ذکر کوم، ددې د پاره چې مونږ د هغوی د اخلاقو نه خبر شو، او هغه شان اخلاق په ځان کې پيدا کړو:

## په لس (۱۰) کاله کې اُف يا سخته خبره نه کول

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي:

خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِينَ، فَمَا قَالَ لِي: أُفٍّ، وَلَا: لِمَ صَنَعْتَ؟ وَلَا: أَلَا صَنَعْتَ؟. (۳)

---

(۱) القلم آية ۴.

(۲) صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابُ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا رقم الحديث ۵۵(۲۳۱۰)، ورقم الحديث ۲۶۷(۶۵۹)، ورقم الحديث ۳۰(۲۱۵۰)، ورقم الحديث ۵۴(۲۳۱۰)، صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الكُنْيَةِ لِلصَّبِيِّ وَقَبْلَ أَنْ يُولَدَ لِلرَّجُلِ رقم الحديث ۶۲۰۳، سنن ابي داؤد كِتَاب الأَدَبِ بابٌ في الحلم واخلاق النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۴۷۷۳.

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ حُسْنِ الخُلُقِ وَالسَّخَاءِ، وَمَا يُكْرَهُ مِنَ البُخْلِ رقم الحديث ۶۰۳۸، صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابُ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا رقم الحديث ۵۱(۲۳۰۹)، سنن الترمذي باب ماجاء في خلق النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۲۰۱۵، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۳۶۷۵، شعب الايمان رقم الحديث ۱۳۵۶، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۸۹۴.

ما د نبي عليه السلام لس (۱۰) کاله خدمت کړی خو دوی ماته ( په دې لس کاله کې ) " أف " ندې ويلی ، او نه يې راته ( د يو کار په کولو سره ) دا ويلي چې " تا دا کار ولې اوکړو ؟ " او ( نه يې راته د يو کار په نه کولو سره دا ويلي چې ) " تا دا کار ولې اونکړو ؟ " . (۱)

همدا سې مضمون په نورو احاديثو کې هم ذکر شوی . (۲)

په ځنې احاديثو کې اُووه (۷) کاله او په ځنو کې نهه (۹) کاله هم ذکر شوي . (۳)

## د حضرت انس ﷺ سره خوش اخلاقي

د مسلم شريف او ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت انس ﷺ فرمايي چې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم په ټولو خلقو کې ډير خوش اَخلاقه وُ ، يوه ورځ يې زه د يو کار پسې ليږلم ( يعنی ماته يې وويل چې د دې کار پسې لاړ شه ) ، ما ورته وويل :

قسَم په الله ، زه نه ځم ( يعنی د ماشوم والي د تقاضا په وجه مې ظاهرًا دا خبره اوکړه ) حالانکه زما په زړه کې دا خبره وه چې ماته نبي عليه السلام د کوم کار حُکم کړی د هغې

---

(۱) ( وَلَا لِمَ صَنَعْتَ ) أَيْ لِأَيِّ شَيْءٍ صَنَعْتَ هٰذَا بِالْفِعْلِ . ( وَلَا أَلَّا ) : بِتَشْدِيْدِ اللَّامِ أَيْ هَلَّا ( صَنَعْتَ ) . أَيْ لِمَ لَا فَعَلْتَ هٰذَا الْأَمْرَ . وَالْمَعْنٰى لَمْ يَقُلْ لِشَيْءٍ صَنَعْتُهُ لِمَ صَنَعْتَهُ ، وَلَا لِشَيْءٍ لَمْ أَصْنَعْهُ ، وَكُنْتُ مَأْمُوْرًا بِهٖ لِمَ لَا صَنَعْتَهُ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۹ ص ۳۷۱۰ في تشريح حديث ۵۸۰۱ .

(۲) خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِيْنَ بِالْمَدِيْنَةِ وَأَنَا غُلَامٌ لَيْسَ كُلُّ أَمْرِيْ كَمَا يَشْتَهِيْ صَاحِبِيْ أَنْ أَكُوْنَ عَلَيْهِ مَا قَالَ لِيْ فِيْهَا أُفٍّ قَطُّ ، وَمَا قَالَ لِيْ لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا أَوْ أَلَّا فَعَلْتَ هٰذَا » . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي الْحِلْمِ وَأَخْلَاقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۴۷۷۴ .

(۳) قَالَ أَنَسٌ ﷺ : وَاللهِ لَقَدْ خَدَمْتُهُ سَبْعَ سِنِيْنَ ، أَوْ تِسْعَ سِنِيْنَ ، مَا عَلِمْتُ قَالَ لِشَيْءٍ صَنَعْتُ : لِمَ فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا ؟ وَلَا لِشَيْءٍ تَرَكْتُ : هَلَّا فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي الْحِلْمِ وَأَخْلَاقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۴۷۷۳ .

قَالَ أَنَسٌ ﷺ وَاللهِ لَقَدْ خَدَمْتُهُ تِسْعَ سِنِيْنَ ، مَا عَلِمْتُهُ قَالَ لِشَيْءٍ صَنَعْتُهُ : لِمَ فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا ؟ أَوْ لِشَيْءٍ تَرَكْتُهُ : هَلَّا فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا . صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابٌ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا رقم الحديث ۵۴(۲۳۰۹) .

پسې به خامخا ځم .

پس زه د هغه کار پسې اُووتم ، تر دې چې زه په څه هلکانو باندې تېر شوم چې هغوی په بازار کې لوبې کولې ، ناګهانه رسول الله صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د شا طرف نه زما څټ اُونيولو .

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې ما ورته اُوکتل نو دوی اُوخندل ، راته وې فرمايل :

يَا أُنَيْسُ ! أَذَهَبْتَ حَيْثُ أَمَرْتُكَ ؟

اې اُنَيس ! ما چې درته د کوم کار حُکم کړې وُ ته د هغې پسې تللې وی ؟ (۱)

ما ورته وويل : نَعَمْ أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُوْلَ اللهِ .

آو ، اې د الله رسوله ! ورپسې ځم . (۲)

## د نبي صلى الله عليه وسلم په شونډو مبارکو به اکثر تبسّم وُ

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی ، حضرت عبد الله بن حارث رضي الله عنه فرمايي :

مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . (۳)

(۱) ( يَا أُنَيْسُ ) تَصْغِيرُ أَنَسٍ لِلشَّفَقَةِ وَالْمَرْحَمَةِ . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۰ في تشريح حديث ۵۸۰۲ .

أُنَيْس د أَنَس تصغير دی ، دا نبي عليه السلام ورته د شفقت او مينې په وجه وويل .

(۲) قَالَ أَنَسٌ رضي الله عنه : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ خُلُقًا ، فَأَرْسَلَنِيْ يَوْمًا لِحَاجَةٍ ، فَقُلْتُ: وَاللهِ لَا أَذْهَبُ ، وَفِيْ نَفْسِيْ أَنْ أَذْهَبَ لِمَا أَمَرَنِيْ بِهِ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَخَرَجْتُ حَتّٰى أَمُرَّ عَلٰى صِبْيَانٍ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ فِي السُّوْقِ ، فَإِذَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَبَضَ بِقَفَايَ مِنْ وَرَائِيْ ، قَالَ : فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَضْحَكُ ، فَقَالَ: « يَا أُنَيْسُ ! أَذَهَبْتَ حَيْثُ أَمَرْتُكَ ؟ » قَالَ قُلْتُ : نَعَمْ أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُوْلَ اللهِ . صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابُ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا رقم الحديث ۵۴ (۲۳۱۰) ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۴۷۷۳ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ الأَدَبِ باب في الحلم واخلاق النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۴۷۷۳ . مشكاة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الأول رقم الحديث ۵۸۰۲(۲) .

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْمَنَاقِبِ بَابٌ فِي بَشَاشَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۶۴۱ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الثاني رقم الحديث ۵۸۲۹(۲۹) ، و رقم الحديث ۴۷۴۸(۴) باب الضحك الفصل الثاني ، مسند احمد رقم ۱۷۷۰۴ ، و رقم الحديث ۱۷۷۱۳ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۸۷ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ۳۳۵۰ ، و رقم الحديث ۳۷۰۲ ، تفسير البغوي ج۳ ص ۴۹۶ سورة النمل في تفسير آية ۱۹ .

ما د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم نه زيات مُسكې كيدونكى بل څوک ندې ليدلى .

يعنى د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم په شونډو مبارکو به اکثر مُسکا او تبَسّمؤ ، هيڅ كله يې د بداخلاقۍ مظاهره نده كړى .

## د باندېچي د سختۍ باوجود بيا هم ورسره خوش اَخلاقي كول

۱ د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دى ، حضرت انس ﷺ فرمايي چې زه د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم سره روان ووم ، دوى د نَجران علاقې جوړ شوې څادر اغوستې ؤ چې غاړې يې سختې وى ، ( په لاره كې ) يو باندېچي راغى او نبي عليه السلام يې د څادر نه په تيزۍ سره راښكلو .

حضرت انس ﷺ فرمايي چې ما د رسولُ الله ﷺ څټ مبارک ته اُوكتل نو د څادر سختو غاړو په كې د تېزو راښكلو په وجه نخې جوړې كړې وى ، بيا هغه باندېچي ووېل :

يَا مُحَمَّدُ ! مُرْ لِيْ مِنْ مَالِ اللهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ .

اې محمد (ﷺ) ! د تا سره چې د الله ﷻ كوم مال دى د هغې نه زما د پاره د راكولو حُكم اوكړه .

نبي عليه السلام هغه طرف ته اُوكتل او وې خندل ، بيا يې هغه ته ( د مال ) وركولو حُكم اوكړو .(۱)

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ ، قَالَ: كُنْتُ أَمْشِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيْظُ الْحَاشِيَةِ . فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيْدَةً . قَالَ أَنَسٌ ﷺ: فَنَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ أَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الرِّدَاءِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهِ . ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ ! مُرْ لِيْ مِنْ مَالِ اللهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ. فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ فَضَحِكَ ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ . صحيح البخاري كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ التَّبَسُّمِ وَالضَّحِكِ رقم الحديث ۶۰۸۸ ، و رقم الحديث ۳۱۴۹ كِتَابُ فَرْضِ الْخُمُسِ بَابُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي الْمُؤَلَّفَةَ قُلُوْبُهُمْ وَغَيْرَهُمْ مِنَ الْخُمُسِ وَنَحْوِهِ . و رقم الحديث ۵۸۰۹ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الْبُرُوْدِ وَالْحِبَرَةِ وَالشَّمْلَةِ ، صحيح مسلم كِتَابُ الزَّكَاةِ بَابُ إِعْطَاءِ مَنْ سَأَلَ بِفُحْشٍ وَغِلْظَةٍ رقم الحديث ۱۲۸(۱۰۵۷) ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۵۵۳ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۵۸۰۳(۳) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۲۵۴۸ .

۲ . په بخاري شريف کې دا واقعه ذکر ده ، حضرت جُبير بن مُطعِم ﷺ فرمايي چې زه او څه نور خلق د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم سره د غزوه حُنَين نه واپس راتللو ، نو (په لاره کې ) څه باندچيان د رسولُ الله ﷺ پورې اُونختل او مالِ غنيمت يې ترې غوښتلو (حالانکه نبي عليه السلام ددينه مخکې د غزوه حُنَين مالِ غنيمت تقسيم کړې وُ او په دې وخت کې ورسره نور مالِ غنيمت نه وُ ) ، تر دې چې باندچيانو نبي عليه السلام کِيکر اُونې طرف ته بوتللو باندې مجبور کړو ، هلته د کِيکر اَزغو د نبي عليه السلام څادر اُونيولو (يعنی د کِيکر په اُونو کې يې څادر اُونختلو ، يا باندچيانو ورنه اُونيولو ) ، نبي عليه السلام هلته اُودريد او دوی ته يې اوفرمايل :

أَعْطُوْنِيْ رِدَائِيْ . فَلَوْ كَانَ عَدَدُ هٰذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا ، لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوْنِيْ بَخِيْلًا وَلَا كَذُوْبًا وَلَا جَبَانًا .

تاسو ماته زما څادر راکړئ ، که چيرته د ماسره (ددې دَشتې ) د کِيکر د اُونو په مقدار څاروي (اُوښان ، چيلې وغيره ) وی نو ما به هغه ټول په تاسو باندې تقسيم کړي وی ، او تاسو به زه بخيل ، دروغجَن ، او بُزدِل نه وې موندلی . [1]

## د يو کس په نامناسب خبره اَوريدو باندې صبر کول

د بخاري شريف حديث دی ، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي چې د غزوه حُنَين په ورځ د مالِ غنيمت په تقسيمولو کې نبي عليه السلام (د څه مصلحت په بِناء) بعضې

(۱) عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ ﷺ أَنَّهُ بَيْنَا هُوَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ النَّاسُ ، مُقْبِلًا مِنْ حُنَيْنٍ ، عَلِقَتْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الأَعْرَابُ يَسْأَلُوْنَهُ حَتَّى اضْطَرُّوْهُ إِلَى سَمُرَةٍ ، فَخَطِفَتْ رِدَاءَهُ ، فَوَقَفَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : أَعْطُوْنِيْ رِدَائِيْ ، فَلَوْ كَانَ عَدَدُ هٰذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا ، لَقَسَمْتُهُ بَيْنَكُمْ ، ثُمَّ لَا تَجِدُوْنِيْ بَخِيْلًا ، وَلَا كَذُوْبًا ، وَلَا جَبَانًا . صحيح البخاري كِتَابُ فَرْضِ الْخُمُسِ بَابُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي الْمُؤَلَّفَةَ قُلُوْبُهُمْ وَغَيْرَهُمْ مِنَ الْخُمُسِ وَنَحْوِهِ رقم الحديث ۳۱۴۸ ، و رقم الحديث ۲۸۲۱ كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ الشَّجَاعَةِ فِي الْحَرْبِ وَالْجُبْنِ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الاول رقم الحديث ۵۸۰۷(۷) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۶۷۵۶ ، و رقم الحديث ۱۶۷۷۵ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۸۲۰ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۵۵۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۳۰۲۲۷ .

خلقو ته ترجيح ورکړه (يعنی په مال غنيمت کې يې ورته څه زياته حصه ورکړه).

اَقرع بن حابِس او عُيَينَه ته يې سَل (١٠٠) سل (١٠٠) اُوښان ورکړل، همدارنګې د عربو څه سَردارانو ته يې په دغه ورځ باندې (د څه مصلحت په خاطر) ترجيح ورکړه.

يو کس وويل : قسَم په الله، په دې تقسيم کې انصاف ندې شوی، او په دې تقسيم کې د الله ﷻ رَضا نده طلب شوی.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي (چې کله ما دا خبره واوريده نو) ما وويل :

وَاللهِ لَأُخْبِرَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

قسَم په الله، زه به ضرور ددې خبر نبي عليه السلام ته ورکوم.

پس زه رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته راغلم، او هغوی ته مې ددې خبر ورکړو، دوی اُوفرمايل :

فَمَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ يَعْدِلِ اللهُ وَرَسُوْلُهُ؟ رَحِمَ اللهُ مُوْسٰى عليه السلام قَدْ أُوْذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

چې کله الله ﷻ او د هغه رسول عدل اونکړي نو بل به څوک عدل اوکړي؟ الله تعالی دې په حضرت موسی عليه السلام باندې رَحم اوکړي هغه ته ددينه زيات تکليف رسول شوې ؤ خو هغه وربانديې صبر اوکړو (نو زه هم ددې کس په دې خبره باندې صبر کوم).(١)

## نبي عليه السلام د چا نه ذاتي بدل نه ؤ اخيستی

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي :

مَا خُيِّرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ قَطُّ إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا، مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا.

---

(١) عَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ آثَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُنَاسًا فِي الْقِسْمَةِ. فَأَعْطَى الْأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ. وَأَعْطَى عُيَيْنَةَ مِثْلَ ذٰلِكَ. وَأَعْطَى أُنَاسًا مِنْ أَشْرَافِ الْعَرَبِ فَآثَرَهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْقِسْمَةِ. قَالَ رَجُلٌ: وَاللهِ إِنَّ هٰذِهِ الْقِسْمَةَ مَا عُدِلَ فِيهَا. وَمَا أُرِيدَ بِهَا وَجْهُ اللهِ. فَقُلْتُ: وَاللهِ لَأُخْبِرَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَأَتَيْتُهُ. فَأَخْبَرْتُهُ. فَقَالَ: فَمَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ يَعْدِلِ اللهُ وَرَسُوْلُهُ. رَحِمَ اللهُ مُوْسٰى عليه السلام قَدْ أُوْذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ. صحيح البخاري كِتَابُ فَرْضِ الْخُمُسِ بَابُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي الْمُؤَلَّفَةَ قُلُوبُهُمْ وَغَيْرَهُمْ مِنَ الْخُمُسِ وَنَحْوِهِ رقم الحديث ٣١٥٠، و رقم الحديث ٤٣٣٦ كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ غَزْوَةِ الطَّائِفِ.

فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ، وَمَا انْتَقَمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فِيْ شَيْءٍ قَطُّ، إِلَّا أَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللهِ، فَيَنْتَقِمَ بِهَا لِلّٰهِ. (۱)

چې کله هم رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په دوه کارونو کې اختيار ورکړل شوی ( چې يو په کې غوره کړه ) نو دوی به هغې کې هميشه آسان کار غوره کولو ، خو دا هغه وخت چې هغه کار به د ګناه نه وُ ، او که د ګناه کار به وُ نو نبي عليه السلام به ځان ددينه ډير لرې ساتل ، او رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هيڅ کله د چا نه د خپل ځان د پاره ( ذاتي ) بدل نه وُ اخيستی مګر که د الله ﷻ حُدود به مات کړې شو ( يعنی که چا به د الله ﷻ حُدود مات کړل ) نو بيا به يې د الله ﷻ د پاره ددې بدله اخيسته ( او هغه کس ته به يې شرعي سزا ورکوله ) .

## نبي عليه السلام هيڅ کله خپله بي بي او خادِم ندې وهلی

د مسلم شريف حديث دی ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي :

مَا ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ بِيَدِهِ، وَلَا امْرَأَةً، وَلَا خَادِمًا، إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ، وَمَا نِيْلَ مِنْهُ شَيْءٌ قَطُّ فَيَنْتَقِمَ مِنْ صَاحِبِهِ إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ شَيْءٌ مِنْ مَحَارِمِ اللهِ، فَيَنْتَقِمَ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. (۲)

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَسِّرُوْا وَلَا تُعَسِّرُوْا رقم الحديث ٦١٢٦ ، و رقم الحديث ٣٥٦٠ كِتَابُ الْمَنَاقِبِ بَابُ صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، صحيح مسلم كتاب الفَضَائِلِ بَابُ مُبَاعَدَتِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْآثَامِ وَاخْتِيَارِهِ مِنَ الْمُبَاحِ، أَسْهَلَهُ وَانْتِقَامِهِ لِلّٰهِ عِنْدَ انْتِهَاكِ حُرُمَاتِهِ رقم الحديث ٧٧(٢٣٢٧) ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ٤٧٨٥ ، مسند احمد رقم الحديث ٢٤٨٣٠ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِيْ أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم الفصل الاول رقم الحديث ٥٨١٧(١٧) .

(۲) صحيح مسلم كتاب الفَضَائِلِ بَابُ مُبَاعَدَتِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْآثَامِ وَاخْتِيَارِهِ مِنَ الْمُبَاحِ، أَسْهَلَهُ وَانْتِقَامِهِ لِلّٰهِ عِنْدَ انْتِهَاكِ حُرُمَاتِهِ رقم الحديث ٧٩ (٢٣٢٨) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ٥٤٢٨ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِيْ أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم الفصل الاول رقم الحديث ٥٨١٨(١٨) ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ١٧٩٤٢ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ٢٥٤٥٩ ، سنن ابي داؤد بابٌ في التجاوز في الامر رقم الحديث ٤٧٨٦ ، سنن ابن ماجة باب ضرب النساء رقم الحديث ١٩٨٤ ، سنن الدارمي رقم الحديث ٢٢٦٤ ، مسند احمد رقم الحديث ٢٤٠٣٤ ، و رقم الحديث ٢٥٧١٥ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٦٤٤٤ ، شعب الايمان رقم الحديث ٧٧١٢ .

رسول الله صلى الله عليه وسلم هيڅ كله څوک (انسان) په خپل لاس باندې ندې وهلی، او (خاصكر) خپله بي بي او خادِم يې هم ندې وهلی، مګر د الله ﷻ په لار کې به يې جهاد كولو، او نبي عليه السلام ته چې د چا طرفه هم ضرر رسيدلی دوی هيڅ كله هم د هغه نه خپل ذاتي بدله نده اخيستی، مګر كه د الله ﷻ د حدودو سپكاوې به او شو (يعنی كه چا به هغه كارونه اوكړل چې الله ﷻ حرام كړي دي او شرعي حُدود به يې مات كړل) نو بيا به يې د الله ﷻ د رَضا د پاره د هغه نه بدله اخيسته.

**تشريح**: په دې حديث کې ذكر شو چې نبي عليه السلام هيڅ كله څوک انسان په خپل لاس باندې ندې وهلی، بيا خاصكر خپله بي بي او خادِم يې ندې وهلی (ځكه دا دواړه د انسان ماتَحت او مَحكوم وي، او په ماتَحتو باندې ظلم كول ناجائز دی).

اګر چې د اِصلاح او اَدب خاطر د خپلو شرائطو سره د خپل اَولاد او بي بي وهل جائز دي، خو د نبي عليه السلام داسې ښائسته اخلاق وو چې دا يې هم نه وو وهلي.(١)

## جهاد او حُدود جاري كول د خوش اخلاقۍ خلاف ندي

په مذكوره حديث کې دا هم ذكر شو چې نبي عليه السلام به جهاد كولو، او دا ښكاره خبره ده چې په جهاد کې يې د كافرانو سره سختي هم كړې، تر دې چې په غزوه اُحد کې يې اُبيّ بن خلف كافر هم په خپل لاس وژلی.

همدارنګې په مسلمانانو کې به چې چا د الله ﷻ حُدود مات كړل نو هغوی ته يې سزا هم وركړې خو دا ټول د خوش اخلاقۍ خلاف ندي، ځكه نبي عليه السلام دا ټول كارونه د الله ﷻ په حُكم او د الله ﷻ د رَضا د پاره كول، دا په بداخلاقۍ کې داخل ندي.

---

(١) (مَا ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا) أَيْ: آدَمِيًّا لِأَنَّهُ رُبَّمَا ضَرَبَ مَرْكُوْبَهُ (قَطُّ بِيَدِهِ، وَلَا امْرَأَةً وَلَا خَادِمًا). خُصَّا بِالذِّكْرِ اِهْتِمَامًا بِشَأْنِهِمَا، وَلِكَثْرَةِ وُقُوْعِ ضَرْبِ هٰذَيْنِ وَالْإِحْتِيَاجِ إِلَيْهِ، وَضَرْبُهُمَا وَإِنْ جَازَ بِشَرْطِهِ فَالْأَوْلٰى تَرْكُهُ. قَالُوْا بِخِلَافِ الْوَلَدِ، فَإِنَّ الْأَوْلٰى تَأْدِيْبُهُ وَيُوَجَّهُ بِأَنَّ ضَرْبَهُ لِمَصْلَحَةٍ تَعُوْدُ إِلَيْهِ، فَلَمْ يُنْدَبِ الْعَفْوُ بِخِلَافِ ضَرْبِ هٰذَيْنِ فَإِنَّهُ لِحَظِّ النَّفْسِ غَالِبًا فَنُدِبَ الْعَفْوُ عَنْهُمَا مُخَالَفَةً لِهَوَاهَا وَكَظْمًا لِغَيْظِهَا. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج٩ ص ٣٧١٦ في تشريح حديث ٥٨١٨.

دا مذکوره خبره ملا علي قاري رحمه الله په " مرقاة " کې ذکر کړې. (۱)

## نبي عليه السلام فحش خبرې کوونکی نه وُ

۱ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، حضرت عبد الله بن عَمرو رضي الله عنه فرمايي:

لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا، وَكَانَ يَقُوْلُ : إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا.

نبي عليه السلام (خِلقةً او طبعًا) فحش خبرې کوونکی نه وُ، او نه يې قصدًا فحش خبرې کولی (يعنی په هيڅ حالت کې يې فحش خبرې نه کولی)، او فرمايل به يې:
بيشکه په تاسو کې بهترين کس هغه دی چې د هغه اخلاق ښائسته وي. (۲)

۲ . د مشکوة شريف په حديث کې ورسره نوره اِضافه هم شته، حضرت عائشه رضي الله عنها

---

(۱) (إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ) فَإِنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتَلَ أُبَيَّ بْنَ خَلَفٍ بِأُحُدٍ، ثُمَّ لَيْسَ الْمُرَادُ بِهِ الْغَزْوُ مَعَ الْكُفَّارِ فَقَطْ . بَلْ يَدْخُلُ فِيْهِ الْحُدُوْدُ وَالتَّعَاوُزُ وَغَيْرُ ذٰلِكَ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج۹ ص ۳۷۱۶ في تشريح حديث ۵۸۱۸.

(يَا مُعَاذُ ! أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ) ..... قَالَ السُّيُوْطِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : تَحْسِيْنُ خُلُقِهِ أَنْ يُظْهِرَ لِمَنْ يُجَالِسُهُ أَوْ وَرَدَ عَلَيْهِ الْبِشْرَ وَالْحِلْمَ وَالْإِشْفَاقَ . وَالصَّبْرَ عَلَى التَّعْلِيْمِ، وَالتَّوَدُّدَ إِلَى الصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ. وَالْمُرَادُ بِالنَّاسِ مَنْ يَسْتَحِقُّ ذٰلِكَ. فَأَمَّا أَهْلُ الْكُفْرِ وَالْإِصْرَارِ عَلَى الْكَبَائِرِ وَالتَّمَادِيْ عَلَى الظُّلْمِ فَلَمْ يُؤْمَرْ بِتَحْسِيْنِ الْخُلُقِ لَهُمْ. بَلْ يُؤْمَرُ بِأَنْ يُغْلِظَ عَلَيْهِمْ. قُلْتُ: قَدْ يُقَالُ: إِنَّ الرِّفْقَ مِنْ جُمْلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ، فَيُمْكِنُ أَنْ يَعُمَّ جَمِيْعَ الْخَلْقِ. قَالَ اللهُ تَعَالَى: { أُدْعُ إِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ } [ النحل آية ۱۲۵ ] الْآيَةَ. مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۱۸۳ في تشريح حديث ۵۰۹۵.

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الْمَنَاقِبِ بَابُ صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۵۵۹، و رقم الحديث ۳۷۵۹ بَابُ مَنَاقِبِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، و رقم الحديث ۶۰۲۹ بَابُ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا ، و رقم الحديث ۶۰۳۵، صحيح مسلم كتاب الْفَضَائِلِ بَابُ كَثْرَةِ حَيَائِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۶۸ (۲۳۲۱)، سنن الترمذي باب ماجاء في الفحش والتفحش رقم الحديث ۱۹۷۵، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۳۲، شعب الايمان رقم الحديث ۷۶۱۷.

فرمايي :

لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَلَا سَخَّابًا فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَعْفُوْ وَيَصْفَحُ .(۱)

رسولُ الله صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه خو طبعًا فحش ګو ؤ او نه يې قصدًا فحش ګويي کوله ، نه يې په بازارونو کې شور کولو ، او نه يې د بَدی بدله په بَدی اخيسته ، بلکه بَدي کوونکې به يې د زړه نه معاف کولو ، او ظاهرًا به يې هم د هغه سره د دَرګزر ( معافی ) معامله کوله.(۲)

۳ . حضرت انس ﷺ فرمايي :

لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا، وَلَا لَعَّانًا، وَلَا سَبَّابًا. كَانَ يَقُوْلُ عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ : مَالَهُ تَرِبَ جَبِيْنُهُ .(۳)

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فحش ويونکی نه ؤ ، نه لعنت ويونکی ؤ ، او نه کنځل کوونکی ؤ ، دوی به د رټنې ( غصې ) په وخت صرف دا ويل : د هغه د پاره څه شوي : هغه تندي دې په خاورو ککړ شي .

---

(۱) مشكاة المصابيح كتاب الفَضَائِل وَالشَّمَائِل بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۵۸۲۰(۲۰) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۶۴۴۳ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۳۰ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۶۲۳ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۸۷۰۸ ، سنن الترمذي باب ماجاء في خلق النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۲۰۱۶ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۴۴ ، مسند احمد رقم الحديث ۲۵۴۱۷ .

(۲) (لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا ) أَيْ: ذَا فُحْشٍ فِي أَقْوَالِهِ وَأَفْعَالِهِ (وَلَا مُتَفَحِّشًا) أَيْ: مُتَكَلِّفًا فِيْهِ وَمُتَعَمِّدًا كَذَا فِي النِّهَايَةِ. قَالَ الْقَاضِيْ: نَفَتْ عَنْهُ تَوَلِّيَ الْفُحْشِ وَالتَّفَوُّهَ بِهِ طَبْعًا وَتَكَلُّفًا. (وَلَا سَخَّابًا) أَيْ: صَيَّاحًا (فِي الْأَسْوَاقِ. وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ) . أَيْ بَلْ بِالْحَسَنَةِ لِقَوْلِهِ: (وَلٰكِنْ يَعْفُوْ) أَيْ: فِي الْبَاطِنِ (وَيَصْفَحُ) . أَيْ يُعْرِضُ فِي الظَّاهِرِ عَنْ صَاحِبِ السَّيِّئَةِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى : {فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ} [المائدة آية ۱۳] . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۷ في تشريح حديث ۵۸۲۰ .

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ مَا يُنْهَى مِنَ السِّبَابِ وَاللَّعْنِ رقم الحديث ۶۰۴۶ ، صحيح الادب المفرد رقم الحديث ۳۳۳/۴۳۰ باب سباب المسلم فسوق ، مشكوة المصابيح باب في اخلاقه وشمائله صلى الله عليه وسلم الفصل الاول رقم الحديث ۵۸۱۱(۱۱) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۰۷۹۱ .

**تشريح** : ددې حديث نه معلومه شوه چې نبي عليه السلام به د سختې غصې او ناراضګۍ په وخت کې د خپلې ژبې مبارکې نه فحش او سختې خبرې نه راويستې ، بلکه صرف دا يوه جمله به يې ويله چې : مَالَهُ تَرِبَ جَبِيْنُهُ . د هغه د پاره څه شوي د هغه تندې دې په خاورو ککړ شي .

په دې جُملې کې هم نبي عليه السلام براهِ راست هغه کس ته خطاب ندې کړی چې په چا به غصه شوي وُ بلکه د غائب صيغه يې استعمال کړې .

دويم دا چې ددې جُملې دوه مطلبه کيدې شي : اول دا چې دا کنايه شي د ذِلت او خوارۍ نه . او دويم مطلب دا هم کيدې شي چې دا دُعا شي ، يعنی دا به کنايه شي د الله ﷻ د وړاندې د سجدې کولو نه ، ځکه د سجدې په حالت کې هم د انسان تندې او پوزه په خاورو باندې ککړيږي . (۱)

## يهودي عالِم د نبي ﷺ خوش اَخلاقي کتلو سره اِيمان راوړو

په مشکوة شريف ، دلائلُ النّبوّة ، مستدرک او نورو ډيرو کتابونو کې دا واقعه ذکر ده :

حضرت علي ﷺ فرمايي : يو يهودي عالِم وُ ( نوم يې جُرَيجِرَه وُ ) ، دده په رسولُ الله صلی الله عليه وسلم باندې څه دِينارونه قرضه وه ، يوه ورځ دا راغی او د نبي عليه السلام نه يې د خپل قرض مطالبه اوکړه ( په دې وخت کې د پيغمبر عليه السلام سره څه نه وو ) ، نبي عليه السلام ده ته وويل : يَا يَهُوْدِيُّ ! مَا عِنْدِيْ مَا أُعْطِيْكَ .

اې يهودي ! په دې وخت کې د ما سره څه نشته چې زه يې تا ته درکړم .

(يعنی نه راسره دِينار شته ، او نه راسره بل څه شته چې د قرض په عِوض کې يې درکړم) .

---

(۱) (كَانَ يَقُوْلُ عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ) : بِفَتْحِ التَّاءِ ، وَقِيْلَ بِكَسْرِهَا أَيْضًا بِمَعْنَى الْمَلَامَةِ وَالْعِتَابِ عَلَى مَا فِي الْقَامُوْسِ ، وَاخْتَارَهُ ابْنُ الْمَلَكِ . وَبِمَعْنَى الْغَضَبِ كَمَا فِي النِّهَايَةِ . وَاخْتَارَهُ شَارِحٌ . وَالْمَعْنَى غَايَةُ مَا يَقُوْلُهُ عِنْدَ الْمُعَاتَبَةِ ، أَوِ الْمُخَاصَمَةِ هٰذِهِ الْكَلِمَةُ مُعْرِضًا عَنْهُ غَيْرَ مُخَاطِبٍ لَهُ ( مَالَهُ تَرِبَ جَبِيْنُهُ ؟ ) وَهِيَ أَيْضًا ذَاتُ وَجْهَيْنِ ، إِذْ يُحْتَمَلُ أَنْ يَكُوْنَ دُعَاءً عَلَى الْمَقُوْلِ لَهُ بِمَعْنَى رَغِمَ أَنْفُهُ ، وَأَنْ يَكُوْنَ دُعَاءً لَهُ بِمَعْنَى سَجَدَ لِلّٰهِ وَجْهُهُ . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۴ في تشريح حديث ۵۸۱۱ .

يهودي ورته وويل : اې محمد ! زه به تر هغې وخته پورې د تانه نه جدا کيږم تر دې چې ته ماته خپل قرض راکړې . نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

إِذًا أَجْلِسُ مَعَكَ .

بيا خو به زه د تاسره ناست يم . (تر دې چې ته راته د تللو اجازت راکړې) .

نو پيغمبر عليه السلام دده سره (په مسجدِ نبوي يا بل ځاى کې) کيناست .

په همدغه ځاى باندې يې د ماسپخين ، مازيګر ، ماښام ، ماسخوتن او صبا سهَر مونځ اوکړو (يعنى پوره يو شواروز ددې يهودي سره ناست وُ ، نه اُوده شو او نه چيرته لاړ) .

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ (چې دا حالت اُوليد نو) دې يهودي ته (يې د وَهلو) دَهمکيانې ورکولې او يَرولو يې . (يعنى که ددې ګستاخۍ نه منع نشې نو مونږ به تا په زُور ددې ځاى نه اُوباسو ، او يا به دې قتل کړو) .

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابه کرامو په دې حالت باندې پوهه شو کوم چې دوى د يهودي سره کولو ، (ګويا نبي عليه السلام دوى ته واضحه کړه چې ستاسو دا حرکت صحيح ندى چې يهودي ته دَهمکي ورکوئ او يَروى يې) ، صحابه کرامو ورته (د معذرت په اَنداز کې) وويل :

يَا رَسُولَ اللهِ ! يَهُودِيٌّ يَحْبِسُكَ .

اې د الله رسوله ! يو يهودي تاسو دلته پابند کړې يې (نو دا ګستاخانه حرکت د يهودي مونږ نه شو برداشت کولى) . رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته اوفرمايل :

مَنَعَنِيْ رَبِّيْ أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَغَيْرَهُ .

زه خپل رَب ددينه منع کړې يم چې د هغه چا سره ظلم اوکړم چې د هغه سره زمونږ عهد شوى ، يا ددينه علاوه بل کس وي .

هر کله چې ورځ پوره راأوختله نو هغه يهودي (د نبي عليه السلام ښائسته اخلاقو کتلو سره) وويل :

أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ .

زه دا ګواهي ورکوم چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه علاوه بل معبود (د عبادت لائق) نشته ، او زه دا ګواهي ورکوم چې ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول يې . (يعنى يهودي اِيمان راوړو) .

(يهودي وويل: ددې مسلمانيدو په شکريه کې) زما نيم مال دې د الله ﷻ په لار کې صدقه وي. اې د الله رسوله! قسَم په الله، ما چې د تاسو سره دا کومه سخته رَويه اوکړه دا صرف ددې د پاره چې زه ستاسو هغه صفت اوګورم کوم چې په تورات کې ذکر دی:

(په تورات کې ستاسو صفت دا سې ذکر دی:)

مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَوْلِدُهٗ بِمَكَّةَ وَمُهَاجَرُهٗ بِطَيْبَةَ وَمُلْكُهٗ بِالشَّامِ لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيْظٍ وَلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا مُتَزَيٍّ بِالْفُحْشِ وَلَا قَوْلِ الْخَنَا .

د آخري پيغمبر نوم به محمد وي، د پلار نوم به يې عبدالله وي، پيدا ښت به يې مکه مُکرّمه وي، مديني طَيّبې ته به هجرت کوي، د هغه د مملکت حُدود به د شام او د هغې د اَطرافو پورې خواره وي، نه به بَداخلاقه وي، نه به سخت خُويه (سَنګ دِل) وي، نه به په بازارونو کې چغې وهونکی وي، په فحش او بې هُوده خبرو کولو سره به موصوف نه وي.

دې يهودي يو ځل بيا کلمه شهادت وويله: أَشْهَدُ أَنْ لَّآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ .

(بيا يهودي وويل): وَهٰذَا مَالِيْ فَاحْكُمْ فِيْهِ بِمَا أَرَاكَ اللهُ .

(اې د الله رسوله!) دا زما مال دی (ستاسو په خدمت کې حاضر دی) تاسو ته چې الله ﷻ کومه پوهه درکړې ده د هغې په رڼا کې ددې مال په باره کې فيصله اوکړئ (يعنی تاسو ته چې کوم ځای مناسب معلوميږي په هغې کې يې خرچ کړئ).

(راوي د حديث وايي چې) دا يهودي ډير مالدار وُ.[1]

---

(۱) وَعَن عَلِيٍّ رضي الله عنه أَنَّ يَهُوْدِيًا يُقَالُ لَهٗ : فُلَانٌ حَبْرٌ كَانَ لَهٗ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَنَانِيْرُ ، فَتَقَاضَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهٗ : « يَا يَهُوْدِيُّ ! مَا عِنْدِيْ مَا أُعْطِيْكَ » . قَالَ : فَإِنِّيْ لَا أُفَارِقُكَ يَا مُحَمَّدُ حَتّٰى تُعْطِيَنِيْ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِذًا أَجْلِسُ مَعَكَ » . فَجَلَسَ مَعَهٗ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ الْآخِرَةَ وَالْغَدَاةَ ، وَكَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَهَدَّدُوْنَهٗ وَيَتَوَعَّدُوْنَهٗ ، فَفَطِنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا الَّذِيْ يَصْنَعُوْنَ بِهٖ . فَقَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ يَهُوْدِيٌّ يَحْبِسُكَ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « مَنَعَنِيْ رَبِّيْ أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَغَيْرَهٗ » . فَلَمَّا تَرَجَّلَ النَّهَارُ قَالَ الْيَهُوْدِيُّ : أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ وَشَطْرُ مَالِيْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ أَمَا وَاللهِ مَا فَعَلْتُ بِكَ الَّذِيْ فَعَلْتُ بِكَ إِلَّا لِأَنْظُرَ إِلٰى نَعْتِكَ فِي التَّوْرَاةِ : مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَوْلِدُهٗ بِمَكَّةَ ←←←←←←←←←←←←←

# حضرت ثمامه رضي الله عنه د نبي ﷺ د خوش اَخلاقۍ په وجه اِيمان راوړو

په بخاري شريف او مسلم شريف کې دا واقعه ذکر ده، حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام نَجد طرف ته يو لښکر اُوليږل، دوی د بني حنيفه قبيلې يو کس اُونيولو چې نوم يې ثُمَامَة بن اُثَال ؤ، او مديني منوّرې ته يې راوستو (دا د يَمامه ښار سَردار ؤ، او تر اُوسه مسلمان شوې نه ؤ)، صحابه کرامو ثمامه د مسجدِ نبوي د يوې ستنې پورې اُوتړل (چې او نه تختي).

رسولُ الله ﷺ ده ته تشريف راوړو او ورته وې فرمايل:

مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟ اې ثمامه! د تاسره څه دي؟

(يعنی ستا زما په باره کې څه ګمان دی چې زه به درسره څه سلوک کوم؟).

ثمامه ورته وويل:

عِنْدِيْ خَيْرٌ يَا مُحَمَّدُ، إِنْ تَقْتُلْنِيْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلٰى شَاكِرٍ، وَإِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ الْمَالَ فَسَلْ مِنْهُ مَا شِئْتَ.

اې محمد (ﷺ)! ما سره خير دی (يعنی زه ستاسو په باره کې ښه ګمان کوم چې تاسو ظلم نه کوئ، بلکه د خلقو سره اِحسان او اِنعام کوئ)، خو که بيا هم تاسو ما قتل کړئ نو د يوې وِينې واله سړی به قتل کړئ (يعنی يو لوي شخصيت به قتل کړئ، زما قوم به ددې بدل ضرور واخلي. دا ثمامه د خپلې سردارۍ دعوی اوکړه. يا دا مطلب چې که تاسو ما قتلوئ نو زه د همدې مستحق يم. ګويا ثمامه د خپل عِجز اِقرار اوکړو)، او که تاسو په ما باندې اِحسان اوکړئ (په عزت سره مې پريږدئ) نو تاسو به په يو شکرګزار

---

←←← وَمُهَاجَرُهُ بِطَيْبَةَ وَمُلْكُهُ بِالشَّامِ لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيْظٍ وَلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا مُتَزَيٍّ بِالْفُحْشِ وَلَا قَوْلِ الْخَنَا أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَهٰذَا مَالِيْ فَاحْكُمْ فِيْهِ بِمَا أَرَاكَ اللّٰهُ. وَكَانَ الْيَهُوْدِيُّ كَثِيْرَ الْمَالِ. مشكوة المصابيح كتاب الفضائل والشمائل باب في أخلاقه وشمائله صلى الله عليه وسلم الفصل الثالث رقم الحديث ۵۸۳۲ (۳۲)، دلائل النبوة للبيهقي، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۴۲۴۲، تفسير مظهري ج۴ ص۴۱۷ سورة الاعراف في تفسير آية ۱۵۷.

بنده باندې احسان اوکړې ( چې ددې اِحسان بدله به زه درکړم ) ، او که تاسو مال غواړې نو څومره چې ستاسو خوښه وي وې غواړې هغه به درکړم.

نبي عليه السلام ثمامه په همدې حالت باندې پرېخود .

کله چې صبا شو رسولُ الله ﷺ ده ته بيا تشريف راوړو او ورته وې فرمايل :

مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ ؟ اې ثمامه ! اوس درسره څه خبره ده ؟

(يعنی زما په باره کې دې څه خيال دی چې څه سلوک به درسره کوم ؟ ) .

ثمامه ورته وويل : مَا قُلْتُ لَكَ : إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ .

زما ستاسو په باره کې هماغه ګمان دی کوم چې مې پرون درته ويلې وُ چې که تاسو اِحسان اوکړې نو په داسې سړي به اِحسان اوکړې چې هغه شُکرګزار دی .

نبي عليه السلام په دې ورځ هم ثمامه په همدې حالت باندې پرېخود (او ورنه لاړو) .

په دريمه ورځ نبي عليه السلام ده ته بيا تشريف راوړو او ورته وې فرمايل :

مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ ؟

اې ثمامه ! د تاسره څه دي ؟ (يعنی ستا زما متعلق څه ګمان دی ؟ )

ثمامه ورته وويل : د ماسره خو هماغه خبره ده کومه چې ما درته مخکې ويلې وه .

پيغمبر عليه السلام حکم اوکړو :

أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ . تاسو ثمامه خلاص کړئ .

( ثمامه په دې درې ورځو کې د رسولُ الله ﷺ د ښائسته اخلاقو نه ډير متأثر شوي وُ ) ، پس ثمامه د مسجد نبوي سره نزدې د قجورو يو باغ ته لاړو ( هلته لږې اُوبه وی ) غُسل يې اوکړو ، بيا مسجدِ نبوي ته راغی او د نبي عليه السلام د وړاندې يې وويل :

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ .

زه دا ګواهي ورکوم چې د الله ﷻ نه علاوه بل معبود ( د عبادت لائق ) نشته ، او دا ګواهي ورکوم چې محمد (ﷺ) د الله ﷻ رسول دی .

بيا ثمامه رضي الله عنه وويل : اې محمد ﷺ ! ددينه مخکې ستاسو د مخ نه علاوه بل مَبغوض ترين مخ ماته د بل هيچا نه وُ (يعنی ستاسو نه مې ډير نفرت وُ) خو اوس راته

ستاسو مخ په ټولو مخونو کې محبوب اُوګرځيد .

قسَم په الله ، ماته په دِينونو کې ستاسو د دِين نه علاوه مَبغوض ترين دِين بل نهٔ خو اوس راته ستاسو دِين په ټولو دِينونو کې مَحبوب دی .

او قسَم په الله ، ماته ستاسو د ښار (مديني منوّرې) نه علاوه مبغوض ترين ښار بل نهٔ خو اوس راته ستاسو ښار په ټولو کې دير محبوب دی .

( اې د الله رسوله ! ) ستاسو لښکر زه په داسې حالت کې نيولې ووم چې ما د عُمرې کولو اِراده کړې وه ( او مکې مُعظمې طرف ته روان ووم ) پس اوس تاسو ماته څه حکم کوئ ؟

نو رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته زيرې ورکړو ( چې په اسلام راوړلو سره تاته عظمت او شرافت ملاوُ شو ، او ستا مخکيني ګناهونه معاف کړې شو ) ، بيا يې هغه ته د عُمرې کولو حُکم اوکړو .

کله چې حضرت ثمامه ﷺ ( د عُمرې اداء کولو د پاره ) مکې معظمې ته راغی نو يو چا ده ته ووېل : صَبَوْتَ . ته بې دِينه شوې يې ؟

ده ورته ووېل : نه ، ما د رسولُ الله ﷺ په لاس مبارک باندې اسلام قبول کړی، زه بې دِينه شوې نه يم ، او قسَم په الله اوس به تاسو ته د يَمامې نه تر هغې وخته پورې د غنمو يوه دانه هم رانشي تر څو پورې چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ددې اِجازت اونکړي . (۱)

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ، فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ، فَرَبَطُوهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي المَسْجِدِ، فَخَرَجَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: « مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ ؟ » فَقَالَ: عِنْدِي خَيْرٌ يَا مُحَمَّدُ، إِنْ تَقْتُلْنِي تَقْتُلْ ذَا دَمٍ، وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ، وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ المَالَ فَسَلْ مِنْهُ مَا شِئْتَ . فَتُرِكَ حَتَّى كَانَ الغَدُ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: « مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ ؟ » قَالَ: مَا قُلْتُ لَكَ: إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ . فَتَرَكَهُ حَتَّى كَانَ بَعْدَ الغَدِ، فَقَالَ: « مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ ؟ » فَقَالَ: عِنْدِي مَا قُلْتُ لَكَ، فَقَالَ: « أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ » . فَانْطَلَقَ إِلَى نَجْلٍ قَرِيبٍ مِنَ المَسْجِدِ، فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ المَسْجِدَ، فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، يَا مُحَمَّدُ ! وَاللهِ مَا كَانَ ←←←←←←←←

چونکه مکې معظمې ته به غنم د يَمامه ښار نه راتلل نو ځکه حضرت ثمامة رضي الله عنه قسَم اوکړو چې تر څو پورې راته نبي عليه السلام اجازت نه وي کړی تاسو ته به يوه دانه غنم را او نه ليږم .

بيا حضرت ثمامة رضي الله عنه خپل ښار ته لاړ نو په اهلِ مکه والهٔ باندې غنم بند کړل ، کله چې په قريشو باندې د غنمو سختي راغله نو دوی رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته خط راأوليږل او د خپلوئى واسطه يې ورکړه چې ته ثمامه ته خط اوليکه چې مونږ ته غنم راليږي . نو رسولُ الله ﷺ حضرت ثمامة رضي الله عنه ته خط اوليکل چې د اهلِ مکهٔ سره د غنمو تجارت کوه . (۱)

بهر حال ددې واقعې نه دا معلومه شوه چې حضرت ثمامة رضي الله عنه د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم د ښائسته اخلاقو نه دومره متأثِر شو چې ايمان يې راوړو .

---

←←← عَلَى الْأَرْضِ وَجْهٌ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ وَجْهِكَ، فَقَدْ أَصْبَحَ وَجْهُكَ أَحَبَّ الْوُجُوهِ إِلَيَّ . وَاللهِ مَا كَانَ مِنْ دِيْنٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ دِيْنِكَ، فَأَصْبَحَ دِيْنُكَ أَحَبَّ الدِّيْنِ إِلَيَّ . وَاللهِ مَا كَانَ مِنْ بَلَدٍ أَبْغَضُ إِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ فَأَصْبَحَ بَلَدُكَ أَحَبَّ الْبِلَادِ إِلَيَّ، وَإِنَّ خَيْلَكَ أَخَذَتْنِيْ وَأَنَا أُرِيْدُ الْعُمْرَةَ، فَمَاذَا تَرٰى؟ فَبَشَّرَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَنْ يَعْتَمِرَ. فَلَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ قَالَ لَهُ قَائِلٌ : صَبَوْتَ، قَالَ: لَا، وَلٰكِنْ أَسْلَمْتُ مَعَ مُحَمَّدٍ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا وَاللهِ، لَا يَأْتِيْكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ، حَتّٰى يَأْذَنَ فِيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . صحيح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِيْ بَابُ وَفْدِ بَنِيْ حَنِيْفَةَ، وَحَدِيْثُ ثُمَامَةَ بْنِ أُثَالٍ رقم الحديث ۴۳۷۲ ، و رقم الحديث ۲۴۲۲ كِتَابُ الْخُصُوْمَاتِ بَابُ التَّوَثُّقِ مِمَّنْ تُخْشٰى مَعَرَّتُهُ ، صحيح مسلم كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ رَبْطِ الْأَسِيْرِ وَحَبْسِهِ، وَجَوَازِ الْمَنِّ عَلَيْهِ رقم الحديث ۵۹ (۱۷۶۴) ، مشكاة المصابيح كتاب الجهاد باب حكم الاسراء الفصل الاول رقم الحديث ۳۹۶۴(۵) ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۲۶۷۹ ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۲۵۳ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۱۲۳۹ .

(۱) وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ مِنْ طَرِيْقِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيْدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه . فَذَكَرَ قِصَّةَ إِسْلَامِ ثُمَامَةَ رضي الله عنه . وَفِيْ آخِرِهِ قَوْلُهُ لِأَهْلِ مَكَّةَ حِيْنَ قَالَ لَهُ قَائِلٌ: صَبَوْتَ. فَقَالَ: « إِنِّيْ وَاللهِ مَا صَبَوْتُ، وَلٰكِنِّيْ أَسْلَمْتُ وَصَدَّقْتُ مُحَمَّدًا وَآمَنْتُ بِهِ، وَايْمُ اللهِ الَّذِيْ نَفْسُ ثُمَامَةَ بِيَدِهِ لَا تَأْتِيْكُمْ حَبَّةٌ مِنَ الْيَمَامَةِ، وَكَانَتْ رِيْفَ مَكَّةَ حَتّٰى يَأْذَنَ فِيْهَا مُحَمَّدٌ . فَانْصَرَفَ إِلٰى بَلَدِهِ، وَمَنَعَ الْحَمْلَ إِلٰى مَكَّةَ حَتّٰى جَهِدَتْ قُرَيْشٌ، فَكَتَبُوْا إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُوْنَهُ بِأَرْحَامِهِمْ أَنْ يَكْتُبَ إِلٰى ثُمَامَةَ يُخَلِّيْ إِلَيْهِمْ الطَّعَامَ. فَفَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . مرقاة المفاتيح ج ۶ ص ۲۵۵۰ في شرح حديث ۳۹۶۴ .

د دينه علاوه ډير داسې واقعات شته چې د نبي عليه السلام د ښو اخلاقو په وجه کافرانو ايمان راوړی.

## نبي ﷺ ابوعُمَير ماشوم ته د مرغۍ په مړه کيدو تسلي ورکړه

د ابوداوُد شريف حديث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې کله کله به رسولُ الله صلی الله عليه وسلم مونږ کره راتلو، زما يو وړوکې ورور ؤ، د هغه کُنيَت "ابوعُمَير" ؤ، د هغه يوه وړه مرغۍ وه چې د هغې سره به يې لوبې کولې، بيا دا مرغۍ مړه شوه.

يوه ورځ نبي عليه السلام راغلو نو دا ابوعُمَير يې غمجَن (خفه) اُوليد، پوښتنه يې اوکړه: مَا شَأْنُهُ؟ دا په ده څه شوي؟ (ولې خفه دی؟).

خلقو ورته ووېل:

مَاتَ نُغَرُهُ. د ده هغه وړه مرغۍ مړه شوې ده (د هغې پسې خفه دی).

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم دې ماشوم ته (د تسلۍ د پاره) اوفرمايل:

يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟

اې ابوعُمَير! په هغه نُغَير (مرغۍ) باندې څه اوشو؟ (يعنی هغه څه شوه؟).(۱)

دا حديث په بخاري شريف، ترمذي شريف او نورو د احاديثو په کتابونو کې هم ذکر دی.(۲)

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَدْخُلُ عَلَيْنَا وَلِي أَخٌ صَغِيرٌ يُكْنَى أَبَا عُمَيْرٍ، وَكَانَ لَهُ نُغَرٌ يَلْعَبُ بِهِ، فَمَاتَ، فَدَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَرَآهُ حَزِينًا، فَقَالَ: «مَا شَأْنُهُ؟» قَالُوا: مَاتَ نُغَرُهُ، فَقَالَ: «يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟». سنن ابي داؤد كِتَاب الْأَدَبِ بَابٌ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَتَكَنَّى وَلَيْسَ لَهُ وَلَدٌ رقم الحديث ۴۹۶۹ قال الالباني: صحيح.

(۲) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يَقُولُ: إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا، حَتَّى يَقُولَ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ: يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟ .صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الِانْبِسَاطِ إِلَى النَّاسِ رقم الحديث ۶۱۲۹، سنن الترمذي أَبْوَابُ الصَّلَاةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عَلَى البُسُطِ رقم الحديث ۳۳۳، و رقم الحديث ۱۹۸۹ أَبْوَابُ البِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي المِزَاحِ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۷۲۰، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۰۴۲، مسند احمد رقم الحديث ۱۲۱۹۹، و رقم الحديث ۱۲۷۵۳، صحيح الادب المفرد رقم الحديث ۲۰۳/۲۶۹ ←←←←

**فائده** : نُغَير د چرچنړې په شان مرغۍ ده سره ټونکه یې وي. څوک وایي چې د وړې ټونکې او سُور سَر واله وړه مرغۍ ده. څوک وايي چې ددینه بلبله مراد ده ...
د نبي عليه السلام مقصد هغه ماشوم ته تسلي ورکول وو چې په هغه مرغۍ څه اُوشو چې د تاسره نشته. همدارنګې ددې واقعې نه د نبي عليه السلام خوش اَخلاقي هم معلوميږي چې د ماشوم سره یې خوش طَبعي کوله او هغه ته یې تسلي ورکوله. (۱)

## نبي عليه السلام به په خوراک کې عیب نه راویستلو

د بخاري شريف حديث دی، حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي:

مَا عَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ، إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ وَإِلَّا تَرَكَهُ . (۲)

---

←←← باب المزاح مع الصبي ، و رقم الحديث ۶۵۴/۸۴۷ باب الكنية للصبي ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۳۰۸ ، مشكوة المصابيح باب المزاح الفصل الاول رقم الحديث ۴۸۸۴(۱) .

وفي رواية : عَنْ أَنَسٍ ﷺ ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا. وَكَانَ لِي أَخٌ يُقَالُ لَهُ أَبُو عُمَيْرٍ _قَالَ: أَحْسِبُهُ_ فَطِيمًا، وَكَانَ إِذَا جَاءَ قَالَ: يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ ؟ . نُغَرٌ كَانَ يَلْعَبُ بِهِ ... صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الكُنْيَةِ لِلصَّبِيِّ وَقَبْلَ أَنْ يُولَدَ لِلرَّجُلِ رقم الحديث ۶۲۰۳ .

(۱) (يَا أَبَا عُمَيْرٍ) : بِالتَّصْغِيرِ ، وَاسْمُهُ كَبْشَةُ (مَا فَعَلَ) : بِصِيغَةِ الفَاعِلِ، أَيْ: مَا صَنَعَ (النُّغَيْرُ ؟) : بِضَمٍّ فَفَتْحٍ، تَصْغِيرُ نُغَرٍ بِضَمِّ النُّونِ وَفَتْحِ الغَيْنِ المُعْجَمَةِ، طَائِرٌ يُشْبِهُ العُصْفُورَ أَحْمَرُ المِنْقَارِ. وَقِيلَ: هُوَ العُصْفُورُ، وَقِيلَ: هُوَ الصَّعْوُ صَغِيرُ المِنْقَارِ أَحْمَرُ الرَّأْسِ ، وَقِيلَ: أَهْلُ المَدِينَةِ يُسَمُّونَهُ البُلْبُلَ. وَالمَعْنَى: مَا جَرَى لَهُ حَيْثُ لَمْ أَرَهُ مَعَكَ. وَفِي هٰذَا تَسْلِيَةٌ لَهُ عَلَى فَقْدِهِ بِمَوْتِهِ، بَيَّنَهُ بِقَوْلِهِ (كَانَ لَهُ نُغَيْرٌ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ) أَيِ: النُّغَيْرُ، وَحَزِنَ الوَلَدُ لِفَقْدِهِ عَلَى عَادَةِ الصِّغَارِ. مرقاة المفاتيح ج۷ ص ۳۰۶۱ في تشريح حديث ۴۸۸۴ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ المَنَاقِبِ بَابُ صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۵۶۳ ، و رقم الحديث ۵۴۰۹ كِتَابُ الأَطْعِمَةِ بَابُ مَا عَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا ، مشكوة المصابيح كتاب الاطعمة الفصل الاول رقم الحديث ۴۱۷۲(۱۴) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۴۶۲۱ باب ما عاب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طعاما قط .

وفي رواية : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ، قَالَ : مَا عَابَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ، كَانَ إِذَا اشْتَهَى شَيْئًا أَكَلَهُ، وَإِنْ كَرِهَهُ تَرَكَهُ. صحيح مسلم كتاب الأَشْرِبَةِ بَابُ لَا يَعِيبُ الطَّعَامَ رقم الحديث ۱۸۷(۲۰۶۴) ، سنن ابي داؤد باب في كراهية ذم الطعام رقم الحديث ۳۷۶۳ ، سنن الترمذي باب ما جاء في ترك العيب للنعمة رقم الحديث ۲۰۳۱ ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۲۵۹ ، مسند احمد رقم الحديث ۱۰۱۴۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۴۸۰ .

نبي کريم صلی الله عليه وسلم هيڅ کله په خوراک کې عيب ندې راويستی ، که اِشتهاء به يې ورته اُوشوه نو او به يې خوړو ، او که اِشتهاء به يې ورته نه کيده نو پرې به يې خود (خو عيب به يې په کې نه راويستلو) .

په خوراک کې عيب راويستل دادي چې انسان وايي : " په دې خوراک کې مالګه ډيره ده يا کمه ده ، يا تروش دی ، يا نرې دی ، يا ټينګ دی ، يا صحيح ندې پوخ شوی ، او يا داسې نور عيبونه " . (۱)

# د مُصافحې په وخت او مجلس کې د نبي عليه السلام خوش اخلاقي

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی ، حضرت انس ﷺ فرمايي :

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَقْبَلَهُ الرَّجُلُ فَصَافَحَهُ لَا يَنْزِعُ يَدَهُ مِنْ يَدِهِ حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ الَّذِي يَنْزِعُ ، وَلَا يَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنْ وَجْهِهِ حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ الَّذِي يَصْرِفُهُ ، وَلَمْ يُرَ مُقَدِّمًا رُكْبَتَيْهِ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيسٍ لَهُ . (۲)

د نبي عليه السلام سره به چې کوم سړی مخامخ شو نو دوی به ورسره مصافحه کوله ، دوی به خپل لاس مبارک د هغوی نه نه راخلاصولو (د هغه لاس به يې نيولې وُ) تر دې چې هغه سړي به خپل لاس په خپله خلاص (جدا) کړو ، او خپل مخ مبارک به يې د هغه د مخ نه نه راړولو (هغه طرف ته به متوجّه وُ) تر دې چې هغه سړي به په خپله خپل مخ واړولو ، او نبي

---

(۱) قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : اَلْعَيْبُ هُوَ أَنْ يَقُولَ : هٰذَا مَالِحٌ ، قَلِيلُ الْمِلْحِ ، حَامِضٌ ، رَقِيقٌ ، غَلِيظٌ ، غَيْرُ نَاضِجٍ وَنَحْوَ ذٰلِكَ . مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۲۶۹۷ في تشريح حديث ۴۱۷۲ .

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ صِفَةِ الْقِيَامَةِ وَالرَّقَائِقِ وَالْوَرَعِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۲۴۹۰ ، مشكوة المصابيح باب في اخلاقه وشمائله صلى الله عليه وسلم الفصل الثاني رقم الحديث ۵۸۲۴(۲۴) ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۳۷۱۶ باب اكرام الرجل جليسه ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۳۲۶ ، و رقم الحديث ۸۶۸۸ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱۶۲ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۰۷۹۰ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۸۰ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ۳۶۸۰ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۶۲۳ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۴۱۹۲ وقال الهيثمي : رواه البزار والطبراني في الاوسط واسناد الطبراني حسنٌ . كنز العمال رقم الحديث ۱۸۶۶۰ ، مسند البزار رقم الحديث ۷۳۵۵ ، و رقم الحديث ۸۵۲۸ .

کريم صلی الله عليه وسلم هيڅ کله داسې ندي ليدل شوی چې په مجلس کې يې د خپل ملګري نه زَنګونان مخکې کړي وي ( يا دا مطلب چې : په مجلس کې يې خپل ملګري طرف ته خپې ندي غزولي ) .

**د آخري جُملې تشريح :** د آخري جُملې مطلب دادی چې نبي عليه السلام به په مجلس کې د مُتکبّرينو په شان داسې نه کيناستلو چې د ملګري نه زَنګونان ( ګونډې ) مخکې کړي بلکه د هغه سره به يو شان ناستۀ .

يا دا مطلب دی چې په ملګري به يې زَنګونان نه اُوچتول .

او يا دا مطلب دی چې ملګري طرف ته به يې خپې نه غزولی .

په دې حديث کې د اُمت د پاره تعليم دی چې د خپل ملګري احترام به کوي ، او هغه طرفته به په مجلس کې خپې نه غزوي . (۱)

همدارنګې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته به چې چا په غوږ کې پټه خبره کوله نو تر هغې پورې به يې ورنه سَر نه راديخوا کول تر دې چې هغه کس به په خپله خپل سر اخوا کړو ( يعنی دا د نبي عليه السلام اُوچت اخلاق وو چې د بل خبرې ته به يې تر آخره پورې غوږ نيولو ) . (۲)

---

(۱) ( مُقَدِّمًا رُكْبَتَيْهِ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيْسٍ ) أَيْ: مُجَالِسٍ لَهُ . قِيْلَ أَيْ: مَا كَانَ يَجْلِسُ فِيْ مَجْلِسٍ تَكُوْنُ رُكْبَتَاهُ مُتَقَدِّمَتَيْنِ عَلٰى رُكْبَتَيْ صَاحِبِهِ كَمَا يَفْعَلُ الْجَبَابِرَةُ فِيْ مَجَالِسِهِمْ ، وَقِيْلَ : مَا كَانَ يَرْفَعُ رُكْبَتَيْهِ عِنْدَ مَنْ يُجَالِسُهُ . بَلْ كَانَ يَخْفِضُهُمَا تَعْظِيْمًا لِجَلِيْسِهِ . وَقَالُوْا: أَرَادَ بِالرُّكْبَتَيْنِ الرِّجْلَيْنِ ، وَتَقْدِيْمُهُمَا مَدُّهُمَا وَبَسْطُهُمَا. كَمَا يُقَالُ: قَدَّمَ رِجْلًا وَأَخَّرَ أُخْرٰى ، وَمَعْنَاهُ كَانَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمُدُّ رِجْلَهُ عِنْدَ جَلِيْسِهِ تَعْظِيْمًا لَهُ. قَالَ الطِّيْبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْهِ ، وَفِيْ قَوْلِهِ : "كَانَ لَا يَنْزِعُ يَدَهُ قَبْلَ نَزْعِ صَاحِبِهِ " تَعْلِيْمٌ لِأُمَّتِهِ فِيْ إِكْرَامِ صَاحِبِهِ وَتَعْظِيْمِهِ . فَلَا يَبْدَأُ بِالْمُفَارَقَةِ عَنْهُ، وَلَا يُهِيْنُهُ بِمَدِّ الرِّجْلَيْنِ إِلَيْهِ. مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ج ۹ ص ۳۷۱۸ في تشريح حديث ۵۸۲۳ .

(۲) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ رَجُلًا الْتَقَمَ أُذُنَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُنَحِّيْ رَأْسَهُ حَتّٰى يَكُوْنَ الرَّجُلُ هُوَ الَّذِيْ يُنَحِّيْ رَأْسَهُ ، وَمَا رَأَيْتُ رَجُلًا أَخَذَ بِيَدِهِ فَتَرَكَ يَدَهُ ، حَتّٰى يَكُوْنَ الرَّجُلُ هُوَ الَّذِيْ يَدَعُ يَدَهُ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِيْ حُسْنِ الْعِشْرَةِ رقم الحديث ۴۷۹۴ قال الالباني: حسنٌ . شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۷۹ ، كنزالعمال رقم ۱۸۶۵۹ ، اخلاق النبي لابي الشيخ الاصبهاني رقم ۲۹ ، موارد الظمآن رقم الحديث ۲۱۳۲ .

## د حضرت عائشې رضي الله عنها سره منډه وهل

د ابوداؤد شريف حديث دی، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې زه د نبي عليه السلام سره په سفر کې ووم، ما د نبي عليه السلام سره پياده مَنډه اُووهله نو زه ورنه په منډه کې مخکې شوم، کله چې څه وخت پس زما وجود درُوند شو (يعنی وجود مې غټ شو) نو ما ورسره بيا مَنډه اُووهله، په دې ځل رانه نبي عليه السلام مخکې شو، دوی راته اوفرمايل:

هٰذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ.

دا زما مخکې کيدل د هغې ستا مخکې کيدو په مقابله کې شو (يعنی مخکې رانه ته په مَنډه کې مخکې شوې وې اوس درنه زه مخکې شوم، نو خبره سَر په سَر شوه). (۱)

**فائده** دا د نبي عليه السلام خوش اخلاقي او د خپلو بيبيانو سره نرمي وه چې د خپلې بي بي سره يې منډه وهله. (۲)

## په حضرت عائشې رضي الله عنها باندې د نېزه بازۍ تماشه کتل

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي:

د اختر ورځ وه، د حبشو خلقو په ډهال او ورو نيزو باندې لوبه کوله، ما په خپله نبي عليه السلام ته د تماشې کتلو د پاره ووېل، يا نبي عليه السلام راته اوفرمايل:

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، قَالَتْ: فَسَابَقْتُهُ فَسَبَقْتُهُ عَلَى رِجْلَيَّ، فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ سَابَقْتُهُ فَسَبَقَنِي فَقَالَ: «هٰذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ». سنن ابي داؤد كِتَابُ الجِهَادِ بَابٌ فِي السَّبْقِ عَلَى الرِّجْلِ رقم الحديث ۲۵۷۸، مشكاة المصابيح بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلٍّ وَاحِدَةٍ مِنَ الحُقُوقِ الفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۲۵۱(۱۴).

(۲) (فَسَابَقْتُهُ): أَيْ غَالَبْتُهُ فِي السَّبْقِ أَيْ فِي العَدْوِ وَالجَرْيِ، (فَسَبَقْتُهُ): أَيْ: غَلَبْتُهُ وَتَقَدَّمْتُ عَلَيْهِ.... وَفِيهِ بَيَانُ حُسْنِ خُلُقِهِ وَتَلَطُّفِهِ بِنِسَائِهِ، يُقْتَدٰى بِهِ، (فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ) أَيْ: سَمِنْتُ (سَابَقْتُهُ) أَيْ: مَرَّةً أُخْرٰى (فَسَبَقَنِي قَالَ: هٰذِهِ) أَيِ: السَّبْقَةُ (بِتِلْكَ السَّبْقَةِ) بِفَتْحِ الكَافِ وَكَسْرِهَا أَيْ تَقَدُّمِي عَلَيْكِ فِي هٰذِهِ النَّوْبَةِ فِي مُقَابَلَةِ تَقَدُّمِكِ فِي النَّوْبَةِ الأُوْلٰى وَالمُرَادُ حُسْنُ المُعَاشَرَةِ. مرقاة المفاتيح بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلٍّ وَاحِدَةٍ مِنَ الحُقُوقِ الفَصْلُ الثَّانِي ج ۵ ص ۲۱۲۳ في تشريح حديث ۳۲۵۱.

تَشْتَهِيْنَ تَنْظُرِيْنَ ؟ لوبه کتل غواړې ؟

ما ورته وويل : آو ( ګورم یې ) . نبي علیه السلام زه خپل شاته په داسې أنداز باندې أودرولم چې زما مخ ( آننګي ) د هغه په مخ باندې ؤ ( يعنی خپل سَر مې د هغوی په اُوګې مبارکې باندې داسې کيښود چې زما مخ د هغوی د مخ سره يو ځای شو ) .

نبي علیه السلام هغوی ته اوفرمايل : اې بني اَرفِدَه ؤ ( حبشو ) ! تکړه شئ ، ( دېر ښه ) .

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې بيا زه ( په ولاړه ) ستړې شوم ، نبي علیه السلام راته اوفرمايل : حَسْبُكِ؟ بس دی ( يعنی دا کافي ده ) .

ما ورته وويل : آو . دوی راته اوفرمايل : فَاذْهَبِيْ . پس ته ( اوس ) لاړه شه . (۱)

## په حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا باندې د يوې حبشې زَنانه لوبه کتل

د ترمذي شريف او مشکوة شريف حديث دی ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې رسولُ الله صلی الله علیه وسلم ( د ماسره ) ناست ؤ ، مونږ ناڅاپه شور او د ماشومانو آوازونه واوريدل ، رسولُ الله ﷺ ( د معلومات د پاره ) ورپاڅيد ، نو وې کتل چې يوه حبشي ښځه ټوپونه وهي ( يعنی رَقص کوي ) او ماشومان ورنه ګيرچاپيره ( تماشې د پاره ) ولاړ دي ، نبي علیه السلام ماته اوفرمايل :

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا ، قَالَتْ ..... وَكَانَ يَوْمَ عِيدٍ ، يَلْعَبُ السُّودَانُ بِالدَّرَقِ وَالْحِرَابِ . فَإِمَّا سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَإِمَّا قَالَ : « تَشْتَهِيْنَ تَنْظُرِيْنَ ؟ » فَقُلْتُ : نَعَمْ ، فَأَقَامَنِيْ وَرَاءَهُ ، خَدِّيْ عَلَى خَدِّهِ ، وَهُوَ يَقُوْلُ : « دُوْنَكُمْ يَا بَنِيْ أَرْفِدَةَ » حَتَّى إِذَا مَلِلْتُ ، قَالَ : « حَسْبُكِ ؟ » قُلْتُ : نَعَمْ ، قَالَ : « فَاذْهَبِيْ » . صحيح البخاري أَبْوَابُ الْعِيدَيْنِ بَابُ الْحِرَابِ وَالدَّرَقِ يَوْمَ الْعِيدِ رقم الحديث ۹۵۰ ، و رقم الحديث ۲۹۰۷ كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ الدَّرَقِ ، صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي اللَّعِبِ الَّذِي لَا مَعْصِيَةَ فِيهِ فِي أَيَّامِ الْعِيدِ رقم الحديث ۱۹ (۸۹۲) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۰۹۷۷ .

وفي رواية : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا ، قَالَتْ : جَاءَ حَبَشٌ يَزْفِنُونَ فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي الْمَسْجِدِ ، فَدَعَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَوَضَعْتُ رَأْسِي عَلَى مَنْكِبِهِ ، فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى لَعِبِهِمْ ، حَتَّى كُنْتُ أَنَا الَّتِي أَنْصَرِفُ عَنِ النَّظَرِ إِلَيْهِمْ . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي اللَّعِبِ الَّذِي لَا مَعْصِيَةَ فِيهِ فِي أَيَّامِ الْعِيدِ رقم الحديث ۲۰ (۸۹۲) .

يَا عَائِشَةُ ! تَعَالَيْ فَانْظُرِيْ .

اې عائشې ! دلته راشه ، دا (تماشه) ته هم اوګوره .

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زه راغلم او خپله زَنه مې د رسولُ الله ﷺ په اُوګه مبارکه باندې کيښوده ، ما دې حبشې ښځې ته د نبي عليه السلام د سَر او اُوګې په مينځ کې کتل، نبي عليه السلام به د مانه لږ ساعت پس دا تپوس کولو : أَمَا شَبِعْتِ، أَمَا شَبِعْتِ؟

آيا په تماشې کتلو سره ستا زړه مور شوې ندی ؟ آيا په تماشې کتلو سره ستا زړه مور شوې ندی ؟

ما به ورته ويل : نه (تر اُوسه مې زړه مور ندی) . حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې (تماشه کتل زما مقصود نه وه بلکه) ما صرف دا معلومول غوښتل چې زما مرتبه او محبت د نبي عليه السلام په زړه کې څومره دی ؟ ( يعنې څومره وخت زما د پاره اُودرېږي ؟ ) .

په دې وخت کې ناڅاپه حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راښکاره شو نو دده د هيبت په وجه ټول خلق خواره شو ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل :

إِنِّيْ لَأَنْظُرُ إِلَى شَيَاطِيْنِ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ قَدْ فَرُّوْا مِنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ .

زه ګورم چې اِنسي او جِنّي شيطانان د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يَرې نه اُوتختيدل .

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې بيا زه کور ته واپس راغلم . (١)

**فائده** : په دې حديث کې هم د نبي عليه السلام د خپلو بيبيانو سره د اُوچتو اخلاقو تذکره ده

---

(١) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا فَسَمِعْنَا لَغَطًا وَصَوْتَ صِبْيَانٍ، فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا حَبَشِيَّةٌ تَزْفِنُ وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهَا. فَقَالَ: « يَا عَائِشَةُ ! تَعَالَيْ فَانْظُرِيْ ». فَجِئْتُ فَوَضَعْتُ لَحْيَيَّ عَلَى مَنْكِبِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَيْهَا مَا بَيْنَ الْمَنْكِبِ إِلَى رَأْسِهِ. فَقَالَ لِيْ : «أَمَا شَبِعْتِ، أَمَا شَبِعْتِ ؟». قَالَتْ: فَجَعَلْتُ أَقُوْلُ : لَا ، لِأَنْظُرَ مَنْزِلَتِيْ عِنْدَهُ ، إِذْ طَلَعَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَتْ: فَارْفَضَّ النَّاسُ عَنْهَا : قَالَتْ: فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنِّيْ لَأَنْظُرُ إِلَى شَيَاطِيْنِ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ قَدْ فَرُّوْا مِنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ » قَالَتْ: فَرَجَعْتُ. سنن الترمذي رقم الحديث ٣٦٩١ وقال الترمذي : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ ، وقال الالباني: صحيحٌ. مشكوة المصابيح باب مناقب عمر رضي الله عنه الفصل الثاني رقم الحديث ٦٠٣٩(١٥) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ٨٩٠٨ .

چې په خپله ولاړ وُ او حضرت عائشې رضي الله عنها د دوی په اوګه باندې سَر ایخې وُ.(١)

# د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره د نبي عليه السلام مينه

١. په بخاري شريف او مسلم شريف کې اوږد حديث ذکر دی، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې يوولس (١١) زَنانه يو ځای ناستې وی او دا وَعده يې سره اوکړه چې رښتيا به وايو، او هره يوه به د خپل خاوند په باره کې صحيح صحيح خبره کوي.

نو هرې يوې زَنانه د خپل خاوند په باره کې خبره اوکړه.

يوولسمې (١١) زَنانه "اُمِّ زَرع" د خپل خاوند "ابو ذَرع" ډير زيات صفت اوکړو چې هغه د ما سره ډير محبت کوي او هر څه راله راوړي (نور ډير صفتونه يې هم ورله بيان کړل).

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا دا خبرې نبي عليه السلام ته بيان کړې، په آخر کې نبي عليه السلام حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته اوفرمايل: كُنْتُ لَكِ كَأَبِي زَرْعٍ لِأُمِّ زَرْعٍ.

زه ستا د پاره داسې يم لکه ابوذرع چې د اُمّ ذرع د پاره وُ. (يعنی ابوذرع چې د خپلې بي بي سره څومره محبت کوي زه د هغې نه زيات د تا سره محبت کوم).(٢)

٢. يو ځل نبي عليه السلام په کور کې تشريف فرما وُ، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته يې اوفرمايل: حَميرا! ته ما ته د ګچو او چوارو يو ځای خوړلو نه زياته خوږه يې.

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا په خندا شوه ورته وې ويل: اې د الله رسوله! تاسو ما ته د ګچو او شهدو يو ځای خوړو نه ډير خواږه يَی. نبي عليه السلام په خندا شو، وې فرمايل:

---

(١) (فَإِذَا حَبَشِيَّةٌ): بِفَتْحَتَيْنِ أَيْ جَارِيَةٌ أَوِ امْرَأَةٌ مَنْسُوبَةٌ إِلَى الْحَبَشِ (تَزْفِنُ): بِسُكُونِ الزَّايِ وَكَسْرِ الْفَاءِ وَيُضَمُّ أَيْ: تَرْقُصُ (وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهَا) أَيْ يَنْظُرُونَ إِلَيْهَا وَيَتَفَرَّجُونَ عَلَيْهَا ...... (فَرَجَعْتُ). أَيْ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَيْتِي، وَفِيهِ دَلِيلٌ عَلَى عَظَمَةِ خُلُقِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَغَلَبَةِ صِفَةِ الْجَمَالِ عَلَيْهِ، كَمَا يَدُلُّ عَلَى غَلَبَةِ الْجَلَالِ عَلَى عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. مرقاة المفاتيح ج ٩ ص ٣٩٠٣ في تشريح حديث ٦٠٤٩.

(٢) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَتْ: جَلَسَ إِحْدَى عَشْرَةَ امْرَأَةً، فَتَعَاهَدْنَ وَتَعَاقَدْنَ أَنْ لَا يَكْتُمْنَ مِنْ أَخْبَارِ أَزْوَاجِهِنَّ شَيْئًا ...... قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُنْتُ لَكِ كَأَبِي زَرْعٍ لِأُمِّ زَرْعٍ. صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ حُسْنِ الْمُعَاشَرَةِ مَعَ الأَهْلِ رقم الحديث ٥١٨٩، صحيح مسلم كتاب فَضَائِلِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ بَابُ ذِكْرِ حَدِيثِ أُمِّ زَرْعٍ رقم الحديث ٩٢(٢٤٤٨).

حَمیرا ! ستا جواب زما د جواب نه ډیر ښه دی.(۱)

۳. یو ځل حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په نبي علیه السلام باندې د داخلیدو اجازت اوغوښت ، په دې وخت کې ده د (خپلې لور) حضرت عائشې رضي الله عنها اُوچت آواز واورید.

(حضرت عائشې رضي الله عنها د نبي ﷺ سره څه خبره کوله په هغې کې ددې آواز اُوچت و).

کله چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه (د اجازت نه پس) کور ته راداخل شو نو حضرت عائشه رضي الله عنها یې رااُونیوه ددې د پاره چې په څپیړه یې اُووهي، او وې ویل:

آیا زه تا ګورم چې ته په نبي علیه السلام باندې آواز اُوچتوی؟

نبي علیه السلام حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لره د وهلو نه منع کړو ، ابوبکر صدیق رضي الله عنه په غصه باندې اُووت.

پیغمبر علیه السلام د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د وتلو نه پس حضرت عائشې رضي الله عنها ته اوفرمایل: کَیْفَ رَأَیْتِنِيْ أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ؟

تا زه اُولیدم چې څنګه مې د سړي (ابوبکر صدیق رضي الله عنه) نه خلاصه کړې؟ (۲)

سبحان الله، نبي علیه السلام خپلې بي بي سره څومره په خوش اخلاقۍ او مینه باندې خبرې کولې چې د پلار نه مې خلاصه کړې ګني وهلې یې. په دې کې د مسلمانانو د پاره د ښه ژوند تیرولو بهترینه نمونه ده.

---

(۱) خوري ملغلري پنځمه حصه ص ۵۲۵.

(۲) عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ رضي الله عنه، قَالَ: اِسْتَأْذَنَ أَبُوْ بَكْرٍ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ صَوْتَ عَائِشَةَ رضي الله عنها عَالِيًا. فَلَمَّا دَخَلَ تَنَاوَلَهَا لِيَلْطِمَهَا، وَقَالَ: أَلَا أَرَاكِ تَرْفَعِيْنَ صَوْتَكِ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْجِزُهُ. وَخَرَجَ أَبُوْ بَكْرٍ رضي الله عنه مُغْضَبًا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ خَرَجَ أَبُوْ بَكْرٍ رضي الله عنه «كَيْفَ رَأَيْتِنِيْ أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ؟» قَالَ: فَمَكَثَ أَبُوْ بَكْرٍ رضي الله عنه أَيَّامًا. ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَهُمَا قَدِ اصْطَلَحَا. فَقَالَ لَهُمَا: أَدْخِلَانِيْ فِيْ سِلْمِكُمَا كَمَا أَدْخَلْتُمَانِيْ فِيْ حَرْبِكُمَا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قَدْ فَعَلْنَا قَدْ فَعَلْنَا». سنن ابي داود كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمِزَاحِ رقم الحديث ۴۹۹۹، مشكوة المصابيح باب المزاح الفصل الثاني رقم الحديث ۴۸۹۱(۸)، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۸۴۴۱، و رقم الحديث ۹۱۱۰.

# د ښځې او خاوند په مینځ کې کله کله تاؤ تریخوالې هم راځي

په دې ځای کې ضِمناً درته ددې خبرې تفصیل ذکر کوم چې : د ښځې او خاوند په مینځ کې کله کله تاؤ تریخوالې هم پیدا کیږي خو خاوند به د بې بې خبرې برداشت کوي.

د بخاري شریف او مسلم شریف حدیث دی ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل :

إِنِّي لَأَعْلَمُ إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً، وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى .

اې عائشې ! چې کله ته د مانه خوشحاله یې نو هم ماته پته لږي ، او چې کله رانه خفه یې نو هم ماته پته لږي .

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ما ورته وویل : تاسو ته دا څنګه پته لږي ؟

نبي علیه السلام اوفرمایل :

چې ته کله د مانه خوشحاله یې ( او قسَم کوی ) نو داسې وایې : لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ .

قسَم دی په رَب د محمد باندی .(یعنی زما نوم په قسَم کې ذکر کوی) .

او چې کله د مانه خفه یې نو ( د قسَم کولو په وخت ) داسې وایې : لَا وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ .

قسَم په رب د ابراهیم علیه السلام باندې ( یعنی په قسَم کې د حضرت ابراهیم علیه السلام نوم اخلی ).

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ما ورته وویل :

أَجَلْ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ . مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ .

قسَم په الله چې زه ( د غصې په وخت غیر اختیاري ) صرف ستاسو نوم پریږدم خو په زړه کې مې ستاسو محبت هر وخت قائم وي.(۱) خبره همداسې ده ، خو اې د الله رسوله !

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . « إِنِّي لَأَعْلَمُ إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً، وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى » قَالَتْ : فَقُلْتُ: مِنْ أَيْنَ تَعْرِفُ ذٰلِكَ؟ فَقَالَ : " أَمَّا إِذَا كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً، فَإِنَّكِ تَقُولِينَ : لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ، وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى، قُلْتِ : لَا وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ " قَالَتْ : قُلْتُ : أَجَلْ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ . مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ . صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ غَيْرَةِ النِّسَاءِ وَوَجْدِهِنَّ رقم الحديث ۵۲۲۸ ، صحيح مسلم كتاب فَضَائِلِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنهُم بَابٌ فِي فَضْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا رقم الحديث ۸۰( ۲۴۳۹) ، ← ← ← ← ← ← ← ←

**فائده** : علماؤ ددې حديث نه دا معلومه کړې چې د ښځې او خاوند په مينځ کې ظاهري خفګان هم راتلې شي ، ځکه چې کله د نبي عليه السلام غوندې خوش اَخلاقه پيغمبر او د حضرت عائشې رضي الله عنها غوندې عاقِله زَنانه په مينځ کې لفظي خفګان راځي نو د نورو خلقو په مينځ کې به خامخا راځي ، خو انسان به د بي بي سره د نرمۍ او خوش اخلاقۍ معامله کوي ، او ددې خبرې به برداشت کوي .

## د بي بي خبرې برداشت کول په کار دي

بي بي د خاوند د پاره ډېر خدمتونه کوي که د هغې نه څه کار وران شي يا څه سختې خبرې اوکړي نو هغه د الله ﷻ د رَضا د پاره برداشت کول په کار دي ، او په ښه طريقه ورسره ژوند تيرول په کار دي .

١ . الله تعالى فرمايي : ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ . (١)

ترجمه : او تاسو د ښځو سره په ښه طريقه ژوند تيروئ ، بيا که چيرته تاسو دا ښځې نه خوښوئ نو دا کيدې شي (يعنى ممکن ده) چې تاسو به يو څيز بَد ګڼړئ خو الله تعالى به (تاسو له) په هغې کې ډېر خېر پيدا کړي .

٢ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

اِسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ ، فَإِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ ، وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلَاهُ . فَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهُ كَسَرْتَهُ . وَإِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ . فَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ .

زه تاسو ته د زَنانهٔ په باره کې وصيت کوم دا قبول کړئ ، ځکه ښځه د (چپې) پُختۍ

←←← مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٢٢٣١٨ ، ورقم الحديث ٢٥٧٧٩ ، صحيح ابن حبان محققا رقم الحديث ٢٣٣١ ، ورقم الحديث ٧١١٢ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٩٨١٢ ، مشكاة المصابيح بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنَ الحُقُوقِ الفصل الأول رقم الحديث ٣٢٢٥(٨) .

(١) النساء آية ١٩ .

نه پيدا شوی ، او په پُښتئ کې ډيره کږه هغه پورته حصه ده (۱) ، که چيرته ته دا سيده کوی نو ماته به يې کړی ( او ماتيدل يې طلاق دی ) ، او که ته دا همداسې پريږدی ( هيڅ نصيحت ورته نه کوی ) نو دا به هميشه کږه وي ، پس تاسو د ښځو په باره کې هيمشه زما په وصيت باندې عمل کوئ (او د دوی سره ميانه رَوي کوئ) . (۲)

همدا مضمون په نورو احاديثو کې هم ذکر شوی . (۳)

**فائده** : په دې حديث کې ترغيب دی چې د ښځو سره د نرمۍ ، او اِحسان معامله پکار ده ، او د دوی په خبرو باندې صبر په کار دی ، ځکه د دوی عقل کمزورې وي که څوک دا پوره سمول غواړي نو خبره به طلاقو ته لاړه شي خو دا به سمه نشي . لهذا مِيانه رَوي ورسره په کار ده . (۴)

---

(۱) د کومې نه چې حضرت حواء رَضِيَ اللهُ عَنهَا پيدا شوی . ځکه حضرت حواء رَضِيَ اللهُ عَنهَا د حضرت آدم عليه السلام د چَپې (ګسې) پُښتئ نه پيدا شوی .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ خَلْقِ آدَمَ صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ وَذُرِّيَّتِهِ رقم الحديث ۳۳۳۱ ، صحيح مسلم رقم الحديث ۶۰(۱۴۶۸) بَابُ الْوَصِيَّةِ بِالنِّسَاءِ .

(۳) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ لَنْ تَسْتَقِيمَ لَكَ عَلَى طَرِيقَةٍ، فَإِنِ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا وَبِهَا عِوَجٌ ، وَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهَا كَسَرْتَهَا وَكَسْرُهَا طَلَاقُهَا . صحيح مسلم بَابُ الْوَصِيَّةِ بِالنِّسَاءِ رقم الحديث ۵۹ (۱۴۶۸) .

(۴) ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په مرقاة کې ددې حديث بهترينه تشريح کړی : ( اِسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ خَيْرًا ) : قَالَ الطِّيبِيُّ: اَلسِّينُ لِلطَّلَبِ أَيِ اطْلُبُوا الْوَصِيَّةَ مِنْ أَنْفُسِكُمْ فِي حَقِّهِنَّ كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى جَلَّ جَلَالُهُ { وَكَانُوا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا } [ البقرة آية ۸۹ ] فَنُقِلَ بَاءَ بِخَيْرٍ مِنْهُ إِلَى النِّسَاءِ ، وَقَالَ الْقَاضِي: اَلْاِسْتِيصَاءُ قَبُولُ الْوَصِيَّةِ، وَالْمَعْنَى أُوصِيكُمْ بِهِنَّ خَيْرًا فَاقْبَلُوا وَصِيَّتِي فِيهِنَّ، اهـ. وَالْمَقْصُودُ الْمُدَارَاةُ مَعَهُنَّ، وَقَطْعُ الطَّمَعِ عَنِ اسْتِقَامَتِهِنَّ، وَالثَّبَاتُ مَعَ اعْوِجَاجِهِنَّ، كَمَا قِيلَ : اَلصَّبْرُ عَنْهُنَّ أَيْسَرُ مِنَ الصَّبْرِ عَلَيْهِنَّ ، وَالصَّبْرُ عَلَيْهِنَّ أَهْوَنُ مِنَ الصَّبْرِ عَلَى النَّارِ . قَالَ تَعَالَى جَلَّ جَلَالُهُ، { وَأَنْ تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَكُمْ } [ النساء آية ۲۵ ] أَيْ عَلَيْهِنَّ أَوْ عَنْهُنَّ ( فَإِنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ ضِلَعٍ ) : بِكَسْرِ الضَّادِ وَفَتْحِ اللَّامِ وَاحِدُ الْأَضْلَاعِ وَهُوَ عَظْمٌ مُعْوَجٌّ اسْتُعِيرَ لِلْمُعْوَجِّ صُورَةً أَوْ مَعْنًى، أَيْ خُلِقْنَ خَلْقًا فِيهِ اعْوِجَاجٌ فَكَأَنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ أَصْلٍ مُعْوَجٍّ . وَقِيلَ : ذَلِكَ لِأَنَّ أُمَّهُنَّ أَوَّلَ النِّسَاءِ وَهِيَ حَوَّاءُ خُلِقَتْ مِنْ أَعْوَجِ ضِلَعٍ مِنْ أَضْلَاعِ آدَمَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَهُوَ الضِّلَعُ الْأَعْلَى، ←←←←←←←

# حضرت عُمر رضي الله عنه د خپلې بي بي خبرې برداشت کولې

يو کس حضرت عُمر رضي الله عنه ته په دې نيت باندې راغی چې د خپلې بي بي شکايت ورته اوکړي ( ځکه ددې کس بي بي د ژبې نه تېزه وه ) ، کله چې دا د حضرت عُمر رضي الله عنه کور ته راأورسيد نو دننه د کور نه يې دده د بي بي " اُمّ کلثوم " آواز واوريد چې دوی ته يې تېزې خبرې کولې . دې سرې د ځان سره ( په زړه کې ) ووېل :

زه خو ددې د پاره راغلې ووم چې ده ته د خپلې بي بي شکايت اوکړم دا خو هم زما په شان په اِمتحان آوړيدلی . نو واپس روان شو .

حضرت عُمر رضي الله عنه د کور نه راأووَت نو دا يې واپس راأوغوښت ، پوښتنه يې ورنه اوکړه چې څنګه راغلې وی ؟

ده ورته ووېل : ما خو اِراده اوکړه چې تاته د خپلې بي بي شکايت اوکړم خو ما چې ستا د بي بي خبرې واوريدی نو زه واپس شوم .

حضرت عُمر رضي الله عنه ورته اوفرمايل : إِنِّي أَتَجَاوَزُ عَنْهَا لِحُقُوْقٍ لَهَا عَلَيَّ :

زه ديته معافي کوم د هغه حقوقو په وجه کوم چې ددې په ما باندې دي .

( هغه حقوق دادي : ) اول دا چې دا ښځه زما او د جهنم په مينځ کې پَرده ده ، ددې په وجه زما زړه د حرامو نه بچ دی .

دويم دا چې کله زه د کور نه بهَر اُووځم نو دا زما د کور او مال حفاظت کوي .

دريم دا چې دا زما دُهوبي ده ، ماله کپړې وينځي .

څلورم دا چې دا زما د اَولاد تربيت ( او پَالنه ) کوي .

---

←←← فَلَا يَسْتَطِيْعُ أَحَدٌ أَنْ يُغَيِّرَهُنَّ مِمَّا جُبِلَتْ عَلَيْهِ أُمُّهُنَّ. فَلَا يَتَهَيَّأُ الإِنْتِفَاعُ بِهِنَّ إِلَّا بِمُدَارَاتِهِنَّ وَالصَّبْرِ عَلَى اعْوِجَاجِهِنَّ فِيْمَا لَا إِثْمَ فِيْ مُعَاشَرَتِهِنَّ. (وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلَاهُ) : إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ أُمَّهُنَّ خُلِقَتْ مِنْهُ. (فَإِنْ ذَهَبْتَ) : أَيْ: شَرَعْتَ وَأَرَدْتَ (تُقِيْمُهُ) : أَيْ: إِقَامَتَهُ وَاسْتِقَامَتَهُ (كَسَرْتَهُ. وَإِنْ تَرَكْتَهُ) : أَيْ: مِنْ غَيْرِ كَسْرٍ (لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوْا بِالنِّسَاءِ) : كُرِّرَ لِلْمُبَالَغَةِ، وَإِشَارَةٌ إِلَى النَّتِيْجَةِ وَالْفَذْلَكَةِ. قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْهِ الْحَثُّ عَلَى الرِّفْقِ بِالنِّسَاءِ وَالإِحْسَانِ إِلَيْهِنَّ وَالصَّبْرِ عَلَى عِوَجِ أَخْلَاقِهِنَّ وَاحْتِمَالِ ضَعْفِ عُقُوْلِهِنَّ وَكَرَاهَةِ طَلَاقِهِنَّ بِلَا سَبَبٍ، وَأَنَّهُ لَا مَطْمَعَ فِي اسْتِقَامَتِهِنَّ. مرقاة المفاتيح ج ٥ ص ٢١١٧ في تشريح حديث ٣٢٣٨

پنځم دا چې دا زما د پاره روټۍ پخوي، او نور پخلې راله کوي.

دې سړي وويل : إِنَّ لِي مِثْلَ مَالَكَ فَمَا تَجَاوَزْتَ عَنْهَا فَأَتَجَاوَزُ.

دا څنګه فائدې ( چې د ښځې نه ) تاته حاصلې دي داسې خو ماته هم حاصلې دي نو لکه څرنګې چې ته ښځې ته معافي کوي نو داسې به يې زه هم ورته کوم. (۱)

## مِرزا مظهر جانِ جاناںؒ ته غټه مرتبه د خپلې بي بي د خبرو برداشت کولو په وجه ملاؤ شوې وه

مِرزامظهر جانِ جانان ډير لوي بزرګ ؤ ، د تفسير مظهري مصنّف " قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ " پير وو ، ده ته چې الله تعالى دا دومره لوي مقام ورکړې ؤ نو ددې بُنيادي وجه دا وه چې دده بي بي د تېزې ژبې واله وه ، په معمولي معمولي خبره به يې ډيرې سختې خبرې کولې ، خو ده به په دې باندې صبر کولو او بي بي به يې معاف کوله ، نو الله تعالى د وِلايت دې غټې مرتبې ته اُورسول. (۲)

## ابوالحسن خرقانيؒ ته لوي مقام د بي بي خبرو برداشت کولو په وجه ملاؤ شو

ابوالحسن خرقاني رَحِمَهُ اللَّهُ هم ډير لوي بزرګ تېر شوى ، دده بي بي سره هم تېزه ژبه وه ،

---

(۱) وَذُكِرَ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه يَشْكُو إِلَيْهِ زَوْجَتَهُ . فَلَمَّا بَلَغَ بَابَهُ سَمِعَ امْرَأَتَهُ أُمَّ كُلْثُومٍ تَطَاوَلَتْ عَلَيْهِ . فَقَالَ الرَّجُلُ : إِنِّي أَرَدْتُ أَنْ أَشْكُوَ إِلَيْهِ زَوْجَتِي، وَبِهِ مِنَ الْبَلْوَى مِثْلُ مَا بِي . فَرَجَعَ فَدَعَاهُ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ. فَسَأَلَهُ فَقَالَ: إِنِّي أَرَدْتُ أَنْ أَشْكُوَ إِلَيْكَ زَوْجَتِي . فَلَمَّا سَمِعْتُ مِنْ زَوْجَتِكَ مَا سَمِعْتُ رَجَعْتُ . فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ: إِنِّي أَتَجَاوَزُ عَنْهَا لِحُقُوقٍ لَهَا عَلَيَّ : أَوَّلُهَا: هِيَ سِتْرٌ بَيْنِي وَبَيْنَ النَّارِ. فَيَسْكُنُ بِهَا قَلْبِي عَلَى الْحَرَامِ . وَالثَّانِي : أَنَّهَا خَازِنَةٌ لِي إِذَا خَرَجْتُ مِنْ مَنْزِلِي وَتَكُونُ حَافِظَةً لِمَالِي . وَالثَّالِثُ: أَنَّهَا قَصَّارَةٌ لِي تَغْسِلُ ثِيَابِي . وَالرَّابِعُ : أَنَّهَا ظِئْرٌ لِوَلَدِي . وَالْخَامِسُ: أَنَّهَا خَبَّازَةٌ وَطَبَّاخَةٌ لِي. فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنَّ لِي مِثْلَ مَا لَكَ فَمَا تَجَاوَزْتَ عَنْهَا فَأَتَجَاوَزُ . تنبيه الغافلين باحاديث سيد الانبياء والمرسلين ص ۵۱۷ بَابُ حَقِّ الْمَرْأَةِ عَلَى الزَّوْجِ

(۲) حقوق النساء ، ارواح ثلاثه ص ۳۵ ، اللہ والوں کے دل کو ہلا دینے والے واقعات ج ۳ ص ۲۳۶ .

خو ده به په دې باندې صبر کولو او معاف کوله به يې ، نو الله تعالى ده ته لوي مقام ورکړو .

يو ځل ده ته يو مُريد دده ملاقات له راغی ، دا په کور کې نه ؤ ، (دروازه يې اُوټکوله) ، دده بي بي نه يې پوښتنه اوکړه : پير صاحب چيرته دی ؟

هغې ورته دومره تېزې خبرې اوکړی چې : د څه شي پير ؟ دا چا پير کړو ؟

ده ورته ووېل : زه د هغه ملاقات له راغلې يم ، هغه چيرته دی ؟

هغې ورته ووېل : څه ، هغه به چيرته په ځنګل کې ناست وي ، ګوره يې .

دا مريد يې پوهه شو چې دا خو ديره ژَبه وَره ښځه ده . نو ځنګل طرف ته روان شو .

په لاره کې يې اُوليد چې ابوالحسن خرقاني رَحِمَهُ اللهُ په زمري باندې سور دی او کور طرف ته راروان دی (دا دده کرامت ؤ) .

دا مريد يې حيرانه شو چې دا خو عجيبه ده ، دلته دا په زمري باندې سور دی او په کور کې ښځه په ده باندې سوَره وي (يعنی هغه وریاندې غالبه ده) .

ابوالحسن خرقاني رَحِمَهُ اللهُ په دې مريد باندې پوهه شو ، ورته وې ويل :

ګوره ، زه په کور کې د ښځې د سختو خبرو بُوج اُوچتوم نو الله تعالى راته د هغې په عِوض کې دا زمري تابع کړې دی دا زما بُوج اُوچتوي .

بهر حال د دوارو ملاقات اوشو ، بيا مريد واپس لاړ .

ابوالحسن خرقاني رَحِمَهُ اللهُ چې کور ته راغی نو دُعا يې اوکړه : اې الله ! زما دا ښځه ديره غصه ناکه او تېزې ژبې واله ده داسې يو کرامت راله راکړه چې د هغې په وجه دا زما عقيدت مَنده شي (او زما بزرګي اُومني) ، ددې د پاره چې دا د دِين په کار کې رُکاوټ نه وي . نو الله تعالى ده ته دا کرامت ورکړو چې دا به په هوا کې اَلوتلو .

يو ځل بهر والوتلو او داسې د خپل کور د پاسه څو پيرې اُوچت تېر شو (مقصد يې دا ؤ چې دا ښځه زما بزرګي اُومني ، خو دې ښځې او نه پيژندلو چې ګني دا زما خاوند دی) .

کله چې راښکته شو او کور ته راغی نو ښځې ورته ووېل : ته هم ځان ته لوي بزرګ وايې لوي بزرګ خو نن ما اُوليد چې پاس په هوا کې الوتلو ، او ما په خپلو سترګو باندې اُوليد .

ابوالحسن خرقاني رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وويل : د الله بندي ! هماغه زه ووم كنه چې الوتلم ، دا ما د الله ﷻ نه دُعا غوښتې وه ، هغه راله دا كرامت راكړو .

بي بي يې چې دا خبره واوريده نو لږ وخت يې سوچ كولو ، بيا يې ده ته وويل : هغه ته وې ؟ ده ورته وويل : آو ، هغه زه ووم . دې ښځې يې وويل : ما د ځان سره سوچ كولو چې دا كوږ كوږ كيږي دا به هم دا ته يې .

نو بيا يې هم دده بزرګي اُو نه منله .(١)

## د بي بي معاف كولو په وجه مغفرت

١ . د يو سړي د ښځې نه څه غلطي اوشوه چې په دې سره ده ته غټ نقصان اُورسيد ، كه ده غوښتل نو دې ښځې ته يې سزا هم وركولې شوه ، طلاق يې هم وركولې شو ، خو ده د ځان سره سوچ اوكړو چې دا هم د الله ﷻ يو بندۍ ده غلطي ورنه اوشوه ، نو معاف يې كړه او هيڅ يې ورته او نه ويل .

يو څو ورځې پس دا سړې وفات شو ، چا په خوب كې اُوليد ، پوښتنه يې ورنه اوكړه : الله تعالى درسره څه معامله اوكړه ؟

ده ورته وويل : الله تعالى رابانديې ډيره مهرباني اوكړه .

دې كس ورته وويل : په څه خبره باندې ؟ هغه ورته وويل : يو ځل زما د ښځې نه څه غلطي اوشوه ما ورته سزا هم وركولې شوه او طلاقولې مې هم شوه خو هغه ما د الله ﷻ بندۍ اُوګڼړله او معاف مې كړه ، نو الله تعالى راته اوفرمايل : تا هغه زما بندۍ اُوګڼړله او معاف دې كړه اوس ته ما خپل بنده اوګڼړلې او معاف مې كړې .(٢)

٢ . همداسې يوه واقعه د مُلا محمود رَحِمَهُ اللَّهُ په باره كې هم نقل ده .

واقعه داسې ده چې د دارالعلوم ديوبند آوّلنې اُستاذ مُلا محمود رَحِمَهُ اللَّهُ وُ ، او آوّلنې

---

(١) اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج٢ ص٢٤٩ .

(٢) افضل الحكايات لمولانا محمد يونس پالنپوري ص ٥٥٨ ، اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج٢ ص٢٥٠ .

شاګرد يې محمود حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ وُ (چې دا روستو په شيخ الهند رَحِمَهُ اللّٰهُ سره مشهور شو).

څه وخت پس مُلا محمود رَحِمَهُ اللّٰهُ وفات شو، چا په خوب کې اُوليد، پوښتنه يې ورنه اوکړه: الله تعالى درسره څه معامله اوکړه؟

هغه ورته ووېل: الله تعالى په داسې يو عمَل اُوبخلم چې ماته ياد هم نه وُ.

خوب ليدونکي ورنه پوښتنه اوکړه: هغه څه عمل وُ؟ هغه ورته ووېل:

يو ځل زما بي بي روټۍ پَخه کړه او مالګه ورنه په کې هېره شوې وه، زه چې روټۍ ته کيناستم نو ما محسوسه کړه چې په دې کې مالګه نشته، نو ما خپلې بي بي ته هيڅ او نه وېل، ما دا سوچ اوکړو چې دا هم انسانه ده، ورنه هېره شوې به وي (نو هيڅ بَدې رَدې مې ورته او نه وېلې، بلکه معاف مې کړه).

نو الله تعالى زه په همدې اُوبخلم. (۱)

همداسې واقعه مولانا اشرف علي تهانوي د يو بل کس په باره کې هم نقل کړې. (۲)

په حديث کې راځي، رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي ... خَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ لِنِسَائِهِمْ. (۳)

په تاسو کې بهترين کس هغه دى چې هغه د خپل کور واله د پاره ښه وي. (يعنى ښه اخلاق ورسره کارَوي).

بهر حال، دا دومره اُوږده خبره مې د همدې د پاره اوکړه چې دا زَنانه شپه او ورځ زمونږ او زمونږ د بچو خدمت کوي، خوراک راله پخوي، کپړې راله وينځي، زمونږ د کور حفاظت کوي، نو که بعضې وخت ورنه څه غلطي اوشي نو معافي ورته په کار ده، او په خوش اخلاقۍ باندې ورسره ژوند تيرول په کار دي.

اوس واپس خپلې موضوع ته راځم:

---

(۱) اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۳ ص ۲۳۷.

(۲) خوږې ملفلوي شلورمه حصه ص ۳۳۸.

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ عَلَى زَوْجِهَا رقم الحديث ۱۱۶۲ وقال الترمذي: هَٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. و رقم الحديث ۲۶۱۲ أَبْوَابُ الإِيمَانِ بَابُ مَا جَاءَ فِي اسْتِكْمَالِ الإِيمَانِ وَزِيَادَتِهِ وَنُقْصَانِهِ. مشكوة المصابيح باب عشرة النساء وما لكل واحدة من الحقوق الفصل الثاني رقم ۳۲۶۴(۲۷)، مسند احمد رقم ۷۴۰۲، و رقم ۱۰۱۰۶، السنن الكبرى للنسائي رقم ۹۱۰۹، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۱۷۴، المعجم الاوسط رقم الحديث ۴۴۲۰.

# د خادمانو (غلامانو او وينځو) سره د نبي عليه السلام خوش اخلاقي

د مسلم شريف حديث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به کله د سهر مونځ اوکړو نو د مدينې منوّرې خادمانو (غلامانو او وينځو) به خپل لوخي راوړل، په هغې کې به اُوبه وی (مطالبه به يې دا کوله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې اُوبو کې د برکت او شِفاء د پاره لاس اُووهي).

نو کوم خادم به چې لوخي راوړو نبي عليه السلام به (د هغوی خوشحالولو او هغوی ته د تبرک رسولو د پاره) په هغه لوخي کې خپل لاس مبارک دَننه کړو.

اکثر به داسې اُوشو چې دې خادِمانو به په سخته يَخنۍ کې سهر وختي لوخي راوړل خو نبي عليه السلام به بيا هم (د هغوی د خوشحالولو د پاره) په هغه لوخو کې خپل لاس مبارک دَننه کول. (۱)

**فائده:** سبحان الله، د نبي عليه السلام دومره ښائسته اخلاق وو چې په سخته يخنۍ کې يې د يَخو اُوبو په لوخو کې خپل لاس مبارک دَننه کول خو غلامان او وينځې يې نه خفه کول، په خپل ځان باندې يې تکليف تيرول خو د کمزورو خلقو زړونه يې خوشحالول. او دا د نبي عليه السلام تواضع هم وه. (۲)

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْغَدَاةَ جَاءَ خَدَمُ الْمَدِيْنَةِ بِآنِيَتِهِمْ فِيْهَا الْمَاءُ. فَمَا يُؤْتَى بِإِنَاءٍ إِلَّا غَمَسَ يَدَهُ فِيْهَا. فَرُبَّمَا جَاءُوْهُ فِي الْغَدَاةِ الْبَارِدَةِ فَيَغْمِسُ يَدَهُ فِيْهَا. صحيح مسلم كتاب الْفَضَائِلِ بَابُ قُرْبِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ مِنَ النَّاسِ وَتَبَرُّكِهِمْ بِهِ رقم الحديث ۷۴(۲۳۲۴)، مسند احمد رقم الحديث ۱۲۴۰۱، مشكوة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ۵۸۰۸ (۸)، شعب الايمان رقم الحديث ۱۳۶۱، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۶۷۷.

(۲) (خَدَمُ الْمَدِيْنَةِ): جَمْعُ خَادِمٍ مِنْ غُلَامٍ أَوْ جَارِيَةٍ (بِآنِيَتِهَا): جَمْعُ إِنَاءٍ (فِيْهَا الْمَاءُ). أَيْ فَيَطْلُبُوْنَ الْبَرَكَةَ وَالنَّمَاءَ وَالْعَافِيَةَ وَالشِّفَاءَ (فَمَا يَأْتُوْنَ): وَفِي الْجَامِعِ فَمَا يُؤْتَى (بِإِنَاءٍ إِلَّا غَمَسَ يَدَهُ فِيْهَا)، أَيْ تَطْيِيْبًا لِخَوَاطِرِهِمْ وَتَحْصِيْلًا لِمَقَاصِدِهِمْ (فَرُبَّمَا جَاءُوْهُ بِالْغَدَاةِ) أَيْ: فِي الْغَدْوَةِ (الْبَارِدَةِ فَيَغْمِسُ يَدَهُ فِيْهَا). قَالَ الطِّيْبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: فِيْهِ تَكَلُّفُ الْمَشَاقِّ لِتَطْيِيْبِ قُلُوْبِ النَّاسِ، لَا سِيَّمَا مَعَ الْخَدَمِ وَالضُّعَفَاءِ، وَلِيَتَبَرَّكُوْا بِإِدْخَالِ يَدِهِ الْكَرِيْمَةِ فِي أَوَانِيْهِمْ. وَبَيَانُ تَوَاضُعِهِ مَعَ الضُّعَفَاءِ. مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۳ في لشريح حديث ۵۸۰۸.

# نبي عليه السلام به د صحابه کرامو سره خوش طبعي او خوش اخلاقي کوله

د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم داسې ښائسته اَخلاق وو چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره به يې خوش طبعي کوله. ددې په باره کې درته درې (۳) واقعات ذکر کوم:

## ۱ . حضرت زاهِر رضي الله عنه سره خوش طبعي او خوش اخلاقي

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې د باندې ( اَطرافو ) يو کس وُ ، نوم يې زَاهِر بن حَرام رضي الله عنه وُ ، ده به نبي عليه السلام ته د باندې نه هديه راوړه ( يعنی د باندې څيزونه به يې ورله راوړل ، لکه: سَاګ ، سبزي ، ميوه او ګلونه وغيره ) .

کله به چې واپس تللو نو رسولُ الله صلی الله عليه وسلم به ورته د ښار څيزونه په هديه کې ورکول، نبي عليه السلام به فرمايل چې دامونږ ته د باندې څيزونه راوړي او مونږ ورته د ښار څيزونه ورکوو . پيغمبر عليه السلام به د هغه سره ډير محبت کولو اګر چې هغه د شکل و صورت په اِعتبار سره بَد رَنګ وُ .

يوه ورځ رسولُ الله صلی الله عليه وسلم بازار ته لاړو ، هلته حضرت زاهر رضي الله عنه څه څيزونه خرڅول، نبي عليه السلام د شا طرف نه پَټ ورغی او د هغه په دواړو سترګو باندې په داسې طريقه لاس کيښود چې هغه دا نه ليدلو ( يعنی نبي عليه السلام د شا طرف نه پَټ ورغی ، خپل لاسونه يې د هغه د تخرګونو لاندې وَرننَويستل او د هغه سترګې يې ورله پَټې کړې).

حضرت زاهِر رضي الله عنه اوفرمايل:

اَرْسِلْنِيْ، مَنْ هٰذَا؟ ما پرېږده ، دا څوک دی؟

بيا حضرت زاهِر رضي الله عنه کوشش اوکړو او د سترګو په ګوټونو کې يې نبي عليه السلام اُوليد . کله چې ورته معلومه شوه چې دا خو نبي عليه السلام دی نو کوشش يې شروع کړو چې خپله شا د نبي عليه السلام سِينې مبارکې سره اُولږوي ( ددې د پاره چې برکت حاصل کړي ) .

ديخوا نبي عليه السلام دا آواز کولو :

مَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ ؟ څوک (دا) غلام اخلي ؟

(دا نبي عليه السلام ورسره خُوش طبعي کوله، حالانکه دا غلام نهٔ و).

حضرت زاهر رضي الله عنه اوفرمايل : يَارَسُوْلَ اللهِ! إِذًا وَاللهِ تَجِدُنِيْ كَاسِدًا.

اې د الله رسوله! تاسو به ما ډير ارزان (او بې کاره مال) اُومومی.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل : لٰكِنْ عِنْدَ اللهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ.

ليکن ته د الله جل جلاله په نزد بې کاره (ارزان) نه يې.

يا يې دا اُو فرمايل : لٰكِنْ عِنْدَ اللهِ أَنْتَ غَالٍ. ليکن ته د الله جل جلاله په نزد قيمتي يې. (۱)

سبحان الله، د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم داسې ښائسته اخلاق وو چې د باندې کس سره يې څومره ښه خوش طبعي کوله.

## ۲. د سوَرلۍ غوښتونکي کس سره خوش طبعي او خوش اخلاقي

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې يو سړی نبي عليه السلام ته راغی، او ورته وې ويل :

يَارَسُوْلَ اللهِ! اِحْمِلْنِيْ. اې د الله رسوله! ماته يوه سوَرلي راکړه.

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ كَانَ اسْمُهُ زَاهِرَ بْنَ حَرَامٍ رضي الله عنه، وَكَانَ يُهْدِيْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْهَدِيَّةَ مِنَ الْبَادِيَةِ، فَيُجَهِّزُهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ زَاهِرًا بَادِيَتُنَا، وَنَحْنُ حَاضِرُوْهُ. قَالَ: وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّهُ، وَكَانَ دَمِيْمًا. فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا، وَهُوَ يَبِيْعُ مَتَاعَهُ. فَاحْتَضَنَهُ مِنْ خَلْفِهِ وَهُوَ لَا يُبْصِرُهُ. فَقَالَ: أَرْسِلْنِيْ. مَنْ هٰذَا؟ فَالْتَفَتَ، فَعَرَفَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ لَا يَأْلُوْ مَا أَلْزَقَ ظَهْرَهُ بِصَدْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ عَرَفَهُ، وَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: مَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ؟ فَقَالَ: يَارَسُوْلَ اللهِ! إِذًا وَاللهِ تَجِدُنِيْ كَاسِدًا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لٰكِنْ عِنْدَ اللهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ. أَوْ قَالَ: لٰكِنْ عِنْدَ اللهِ أَنْتَ غَالٍ. شرح السنة للبغوي كتاب البر والصلة باب المزاح رقم الحديث ۳۶۰۴، مشكاة المصابيح باب المزاح الفصل الثاني رقم الحديث ۴۸۸۹(۶)، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۲۶۴۸، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۱۷۲، مسند البزار رقم الحديث ۶۹۲۲، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۵۹۷۹، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۳۲۹.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

إِنَّا حَامِلُوْكَ عَلَى وَلَدِ نَاقَةٍ . مونږ به تاته د سورلۍ د پاره د اُوښې بچې درکړو .

هغه سړي ( په حيرانتيا سره ) وويل :

وَمَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ ؟

زه د اُوښې په بچي باندې څه کوم ؟ ( په دې خو څوک نشي سوَريدی ) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلَ إِلَّا النُّوْقُ . اُوښ خو هم د اُوښې نه پيدا کيږي . (۱)

د نبي عليه السلام مقصد ددې کس سره خوش طبعي کول وو چې زه کوم اُوښ تاته درکوم هغه هم د اُوښې نه پيدا شوی او د اُوښې بچې دي .

## ۳ . د بوډۍ ښځې سره خوش طبعي او خوش اخلاقي

۱ . د مشکوة شريف حديث دی ، چې نبي عليه السلام يوې بوډۍ ښځې ته وويل :

إِنَّهُ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوزٌ .

جنت ته به بوډۍ ښځه نه داخليږي .

هغې ورته وويل : په څه وجه به نه داخليږي ؟

دې بوډۍ چونکه قرآن کريم لوستلی وُ نو نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

أَمَا تَقْرَئِيْنَ الْقُرْآنَ ؟ ﴿ إِنَّآ أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَآءً . فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴾ .

آيا تا قرآن کريم ندې لوستلی ؟ الله تعالی فرمايي : مونږ ( د هغه ځای ) دا ښځې په

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَقَالَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! احْمِلْنِيْ . قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنَّا حَامِلُوْكَ عَلَى وَلَدِ نَاقَةٍ » قَالَ : وَمَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلَ إِلَّا النُّوْقُ » . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمِزَاحِ رقم الحديث ۴۹۹۸ ، الادب المفرد مخرجا للبخاري باب المزاح رقم الحديث ۲۶۸ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۳۸۱۷ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۱۶۸ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۳۲۷ ، شعب الايمان فصل في المزاح ج۷ ص ۱۹۲ ، مشكاة المصابيح بَابُ المزاح اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۸۸۶(۳) .

خاص انداز سره پیدا کړي ، او همیشه مو پیغلې جوړې کړي . (۱)

۲. په ځنې احادیثو کې د دې سره څه نوره اضافه هم شته چې :

یوه بُوډۍ ښځه نبي علیه السلام ته راغله ، او ورته وې فرمایل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اُدْعُ اللهَ أَنْ يُدْخِلَنِي الْجَنَّةَ .

اې د الله رسوله ! د الله ﷻ نه زما د پاره دُعا اوغواړه چې ما جنت ته داخله کړي .

نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

يَا أُمَّ فُلَانٍ ! إِنَّ الْجَنَّةَ لَا تَدْخُلُهَا عَجُوْزٌ .

اې د فلانکي مورې ! بیشکه جنت ته به بُوډۍ نه داخلیږي .

دا بوډۍ په ژړا شوه او لاړه .

پیغمبر علیه السلام صحابه کرامو ته اوفرمایل :

أَخْبِرُوْهَا أَنَّهَا لَا تَدْخُلُهَا وَهِيَ عَجُوْزٌ . إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُوْلُ : ﴿ إِنَّآ أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَآءً ، فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴾.

تاسو هغې ته خبر ورکړئ چې جنت ته به په دې بُوډۍ توب حالت کې نه داخلیږي ( بلکه پیغله به ورنه جوړه شي او بیا به جنت ته داخله کړې شي ) ، ځکه الله تعالی فرمایي : مونږ ( د هغه ځای ) دا ښځې په خاص انداز سره پیدا کړي ، او همیشه مو پیغلې جوړې کړي .(۲)

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِامْرَأَةٍ عَجُوْزٍ : إِنَّهُ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوْزٌ . فَقَالَتْ : وَمَا لَهُنَّ ؟ وَكَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ . فَقَالَ لَهَا : أَمَا تَقْرَئِيْنَ الْقُرْآنَ ؟ ﴿ إِنَّآ أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَآءً ۝ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا . سورة الواقعة آية ۳۵ ، ۳٦ ﴾ . مشكاة المصابيح باب المزاح الفصل الثاني رقم الحديث ۴۸۸۸(۵) .

(۲) وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ فِي الشَّمَائِلِ عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ رَحِمَهُ اللهُ مُرْسَلًا قَالَ : « أَتَتْ عَجُوْزٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اُدْعُ اللهَ أَنْ يُدْخِلَنِي الْجَنَّةَ . فَقَالَ : يَا أُمَّ فُلَانٍ ! إِنَّ الْجَنَّةَ لَا تَدْخُلُهَا عَجُوْزٌ . قَالَ : فَوَلَّتْ تَبْكِيْ . فَقَالَ : أَخْبِرُوْهَا أَنَّهَا لَا تَدْخُلُهَا وَهِيَ عَجُوْزٌ . إِنَّ اللهَ تَعَالَى يَقُوْلُ : { إِنَّآ أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَآءً ۝ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا } . مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۰٦۳ باب المزاح الفصل الثاني في شرح حديث ۴۸۸۸ . البعث والنشور للبيهقي باب ما جاء في صفة حور العين، والولدان، والغلمان ... رقم الحديث ۳۴٦ .

همداسې مضمون په نورو احاديثو کې هم ذکر شوی. (۱)
بهرحال، پيغمبر عليه الصلاة والسلام به د صحابه کرامو سره خوش طبعي کوله.
حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې صحابه کرامو د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوکړه:
يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا. اې د الله رسوله! تاسو هم د مونږ سره خوش طبعي کوئ؟
نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:
إِنِّي لَا أَقُوْلُ إِلَّا حَقًّا. (آو) زه په خوش طبعۍ کې صرف حق خبره کوم. (۲)
**نوټ**: خوش طبعي جائز ده خو چې په دروغو او ناجائز خبرو باندې مشتمل نه وي، البته هر وخت خندا او مزاق کول يا د دې عادت جوړول ښه ندي، ځکه په دې سره وقار ختميږي.

---

(۱) عَنْ مُجَاهِدٍ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ: دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَعِنْدَهَا عَجُوْزٌ. فَقَالَ: مَنْ هٰذِهِ؟ قَالَتْ: هِيَ عَجُوْزٌ مِنْ أَخْوَالِيْ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْعُجُزَ لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ. فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَى الْمَرْأَةِ. فَلَمَّا دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. فَقَالَ: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يُنْشِئُهُنَّ خَلْقًا غَيْرَ خَلْقِهِنَّ.

عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه: أَنَّ عَجُوْزًا دَخَلَتْ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَتْهُ عَنْ شَيْءٍ. فَقَالَ لَهَا. وَمَازَحَهَا: "إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوْزٌ". فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصَّلَاةِ. فَبَكَتْ بُكَاءً شَدِيْدًا. حَتّٰى رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ هٰذِهِ الْمَرْأَةَ تَبْكِيْ لِمَا قُلْتَ لَهَا أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوْزٌ. فَضَحِكَ وَقَالَ: "أَجَلْ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوْزٌ. وَلٰكِنْ قَالَ اللهُ تَعَالَى: {إِنَّا أَنْشَأْنٰهُنَّ إِنْشَاءً ۝ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ۝ عُرُبًا أَتْرَابًا}. وَهُنَّ الْعَجَائِزُ الرُّمْصُ". مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۰۶۲ بَابُ الْمزاح اَلْفَصْلُ الثَّانِي في تشريح حديث ۴۸۸۸.

(۲) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا. قَالَ: إِنِّيْ لَا أَقُوْلُ إِلَّا حَقًّا. سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمِزَاحِ رقم الحديث ۱۹۹۰ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ. الادب المفرد مخرجا باب المزاح رقم الحديث ۲۶۵، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۷۲۳، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۷۰۶، الأدب للبيهقي رقم الحديث ۳۲۵، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۱۷۳، شعب الايمان فصل في المزاح رقم الحديث ۴۸۸۵(۲)، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۳۷۸، مشكاة المصابيح بَابُ الْمزاح اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۸۸۵(۲)، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۴۲۰۱.

# نبي ﷺ به په ښائسته صورت او ښائسته اخلاقو باندې د الله ﷻ شکريه اداء کوله

نبي عليه السلام به په ښائسته صورت او ښائسته اخلاقو باندې شکريه اداء کوله.

په شعب الايمان او مشکوة شريف کې دا حديث ذکر دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به کله په آئينه (شيشه) کې (خپل مخ مبارک) اوکتل نو دا دُعا به يې ويله:

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ حَسَّنَ خَلْقِيْ وَخُلُقِيْ . وَزَانَ مِنِّيْ مَا شَانَ مِنْ غَيْرِيْ .

ټول تعريفونه هغه الله ﷻ لره دي چې زما صورت او اخلاق يې ښائسته کړي دي، او په نورو خلقو کې چې کوم عيبونه وي د هغې نه يې زه محفوظ کړي يم، (بلکه زما خِلقت او اخلاق دواړه يې ښائسته پيدا کړي). (١)

## نبي عليه السلام به د ښائسته اَخلاقو دُعا کوله

١ . حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبي عليه السلام به دا دُعا کوله:

اَللّٰهُمَّ أَحْسَنْتَ خَلْقِيْ فَأَحْسِنْ خُلُقِيْ .

يا الله! تا زما جِسماني صورت ښائسته پيدا کړې دی پس ته زما اخلاق نور هم ښائسته کړه. (٢)

**فائده**: نبي ﷺ به دا دُعا په عامو حالاتو کې يا په آئينه کې د مخ کتلو په وخت کې کوله.

(١) كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَظَرَ فِي الْمِرْآةِ قَالَ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ ..... شعب الايمان رقم الحديث ٤١٢٥ ، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثالث رقم الحديث ٥٠٩٨(٣١) ، الدعاء للطبراني رقم الحديث ٤٠٢ بَابُ الْقَوْلِ عِنْدَ النَّظَرِ فِي الْمَرْآةِ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ١٢٠٣ ، كنز العمال رقم الحديث ١٨٣٠١ .

(٢) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . أَنَّهُ قَالَ: اَللّٰهُمَّ أَحْسَنْتَ خَلْقِيْ فَأَحْسِنْ خُلُقِيْ . وفي رواية: قَالَ: كَانَ مِنْ دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ كَمَا حَسَّنْتَ خَلْقِيْ فَأَحْسِنْ خُلُقِيْ . شعب الايمان رقم الحديث ٨١٨٤ ، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثالث رقم الحديث ٥٠٩٩(٣٢) ، الدعاء للطبراني رقم الحديث ١٤٠٧ بَابُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْ بِهِ فِيْ سَائِرِ نَهَارِهِ .

د دوی اخلاق خو ډیر ښائسته وو خو بیا هم چې دوی دا دُعا غوښتله نو د اُمت د تعلیم د پاره يې غوښته (چې زما اُمت هم د ځان د پاره داسې دُعا اوغواړي).

او یا يې د اخلاقو د تکمیل او نورې اِضافې د پاره غوښته.

۲ . نبي علیه السلام به دا دُعا هم کوله:

اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ . فَإِنَّهُ لَا يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ . وَاصْرِفْ عَنِّيْ سَيِّئَهَا لَايَصْرِفُ عَنِّيْ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ.

یا الله! ښو اخلاقو طرف ته زما راهنمائي اوکړه، بیشکه ښو اخلاقو طرف ته صرف همدا ته راهنمائي کوې، او د بدو اخلاقو نه ما محفوظ اوساته، ځکه د بدو اخلاقو نه صرف ته ما لره بچ کولې شې. (۱)

۳ . په احادیثو کې دا هم ذکر دي چې نبي علیه السلام به د مانځه د تکبیرِ تحریمه نه پس چې کومې دُعاګانې ویلې په هغې کې به د خوش اخلاقۍ دُعا هم وه. (۲)

---

(۱) عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُعَائِهِ: اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ ..... مكارم الاخلاق لابن ابي الدنيا ص ۱۹ رقم الحديث ۹.

(۲) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه. أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ. قَالَ: ﴿ إِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ. لَا شَرِيْكَ لَهُ وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴾. الانعام ۱۶۲،۱۶۳ اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ وَأَحْسَنِ الْأَعْمَالِ لَا يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ . وَقِنِيْ سَيِّئَ الْأَخْلَاقِ وَالْأَعْمَالِ لَا يَقِيْ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ . سنن الدار قطني كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ دُعَاءِ الْاِسْتِفْتَاحِ بَعْدَ التَّكْبِيْرِ رقم الحديث ۱۱۳۹ ، مسند احمد رقم الحديث ۸۰۳ ، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ۳۵ . احياء علوم الدين ج۳ ص ۵۱ ، الزواجر ج۱ ص ۱۳۳ ، سوء الخلق ج۱ ص ۹۲.

# د نورو بزرګانو د خوش اخلاقۍ واقعات

د يو څو بزرګانو د خوش اخلاق واقعات درته د عبرت د پاره ذکر کوم :

## د ابوعثمان حيري رَحِمَهُ اللهُ خوش اخلاقي

۱ . ابوعثمان حيري رَحِمَهُ اللهُ لوي بزرګ تېر شوی ، يو کس ده ته دعوت ورکړو ( چې ما درله روټۍ کړې ده زما کور ته راشه ) ، او دې کس صرف په ده باندې تجرِبه کوله ( چې د ده اخلاق څنګه دي ؟ ) .

کله چې ابوعثمان حيري رَحِمَهُ اللهُ د هغه کور ته ورغی نو هغه کس ورته وويل :

ما خو تاله دعوت ندې کړی ته څه له راغلی ؟ پس دا راواپس شو .

کله چې لږلرې لاړو نو هغه کس ورپسې ورغی او ورته وې ويل چې راځه ما درله دعوت کړی . نو ابوعثمان ورسره راروان شو ( ځکه دعوت قبلول سُنت دي ) ، کله چې کور ته رااورسيدل هغه کس ورته بيا هماغه شان خبره اوکړه ( چې ما خو تاله دعوت ندې کړی ته څنګه راغلی ؟ ) ، پس دا راواپس شو .

دا کس ورپسې په دريم ځل ورغی او ورته وې ويل : ما تاله دعوت کړی او ته په کې هسې نَخرې جوړوی ، راځه چې ځو . ابوعثمان ورسره بيا راروان شو ، کله چې د کور دروازې ته رااورسيدل نو دې کس ورته بيا هماغه شان خبره اوکړه ، پس دا راواپس شو .

دا کس ورپسې په څلورم ځل ورغی رايې وَستو ، چې کله دروازې ته رااورسيد نو بيا يې واپس کړو . همدغه شان کار يې ورسره ډيرې پېرې اوکړو ، خو دابوعثمان رَحِمَهُ اللهُ په مخ کې هيڅ تغير او خفګان نه راتلو .

په آخر کې دې کس ورنه معافي اوغوښته او ورته وې ويل چې ما صرف په تا باندې تجربه کوله ( چې ستا اخلاق څنګه دي ؟ ) پس ماته معلومه شوه چې ستا ډير ښائسته اخلاق دي . ابوعثمان حيري رَحِمَهُ اللهُ ورته ( د تواضع نه ډک جواب ورکړو ، ورته ) وې ويل :

إِنَّ الَّذِيْ رَأَيْتَ مِنِّيْ هُوَ خُلُقُ الْكَلْب ، إِنَّ الْكَلْبَ إِذَا دُعِيَ أَجَابَ ، وَإِذَا زُجِرَ اِنْزَجَرَ .

دا تا چې د ما نه کوم اخلاق اُوليدل دا خو په سپي کې هم شته ، ځکه سپی چې هم رااوبللې

شي نو راځي او چې کله اُورتلې شي نو واپس ځي. (۱)

۲ . د ابوعثمان حيري رَحِمَهُ اللّٰهُ په باره کې دا هم نقل دي چې دا يو ځل په يوه کوڅه کې (په سوَرلۍ باندې) تيريدو ، د بَره نه چا پرې (په خطائي کې) يو خاټک (لګن) ايرې رااوغورځولې ، پس دا د خپلې سوَرلۍ نه راښکته شو ، سجده د شکر يې اوکړه ، بيا يې د خپلو کپړو نه ايرې اُوڅنډلې خو په خُله باندې يې هيڅ او نه ويل .

چا ورته وويل : تا ولې دا خلق او نه رټل ؟ ده ورته وويل :

إِنَّ مَنِ اسْتَحَقَّ النَّارَ فَصُوْلِحَ عَلَى الرَّمَادِ لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَغْضِبَ .

بيشکه څوک چې د جهنم د اُور مستحق وي او هغه سره په ايرو باندې صُلح اوشي نو د ده ته دا جائز ندي چې غصه اوکړي. (۲)

## د اُويس قرني رَحِمَهُ اللّٰهُ خوش اخلاقي

(مشهور تابعي) اُويس قرني رَحِمَهُ اللّٰهُ به چې کله ماشومانو اُوليد نو په کاڼړو به يې ويشتلو ، ده به ماشومانو ته ويل :

---

(۱) دُعي أبو عثمان الحيري رَحِمَهُ اللّٰهُ إلى دعوةٍ وكان الداعي قد أراد تجربته . فلما بلغ منزله قال له : ليس لي وجه . فرجع أبو عثمان . فلما ذهب غير بعيد دعاه ثانيًا فقال له : يا أستاذ ! ارجع . فرجع أبو عثمان . فقال له مثل مقالته الأولى . فرجع . ثم دعاه الثالثة وقال : ارجع على ما يُوجب الوقت . فرجع . فلما بلغ الباب قال له مثل مقالته الأولى . فرجع أبو عثمان . ثم جاءه الرابعة فرده . حتى عامله بذلك مرات وأبو عثمان لايتغير من ذلك . فأكب على رجليه وقال : يا أستاذ إنما أردتُ أنْ أختبرك فما أحسن خلُقك . فقال :
إِنَّ الَّذِيْ رَأَيْتَ مِنِّيْ هُوَ خُلُقُ الْكَلْبِ، إِنَّ الْكَلْبَ إِذَا دُعِيَ أَجَابَ ، وَإِذَا زُجِرَ انْزَجَرَ . احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقلب بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ج ۳ ص ۷۱ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۸۳ .

(۲) و روي عنه أيضًا أنه اجتاز يومًا في سكة ، فطرحت عليه إجانة رماد ، فنزل عن دابته فسجد سجدة الشكر ثم جعل ينفض الرماد عن ثيابه ولم يقل شيئًا ، فقيل : ألا زبرتهم ؟ فقال : إِنَّ مَنِ اسْتَحَقَّ النَّارَ فَصُوْلِحَ عَلَى الرَّمَادِ لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَغْضِبَ . احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقلب بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ج ۳ ص ۷۱ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۸۳ علو الهمة في حسن الخلق .

اې ورونړو ! كه چيرته تاسو ما خامخا په كاڼړو اُولئ. نو بيا مې په ورو كاڼړو اُوولئ ، ددې د پاره چې زما پُنډۍ وِينې نه كړي. ځكه كه دا مو وِينې كړې نو بيا خو تاسو ما د مانځه نه منع كوئ . (۱)

## د مالک بن دِينار رَحِمَهُ اللّٰهُ اخلاق

مالک بن دِينار رَحِمَهُ اللّٰهُ لوي بزرګ ؤ ، يوې ښځې ده ته وويل :

يَا مُرَائِيُّ . اې رِياكاره ! .

ده ورته وويل : اې ښځې ! تا زما هغه نوم اُوموند كوم چې د بصرې واله خلقو ورک كړې ؤ . (سبحان الله ، ښځې ورته غلط نوم واخيست خو ده ورته هيڅ او نه ويل) . (۲)

## د يو غلام اَخلاق : (د ميړي لحاظ ساتل)

څه ځوانان د يو كس ملاقات ته راغلل ، دې كس خپل غلام ته آواز اوكړو :

يَا غُلَامُ ! قَدِّمِ السُّفْرَةَ . اې غلام ! د خوراک دَسترخوان راوړه .

خو هغه را نه وړو ، دې كس ورته درې (۳) پېرې دا آواز اوكړو خو هغه را نه وړو ، دې ځوانانو يو بل ته اوكتل او وې ويل چې دا څنګه خادم دی ؟ لږ وخت پس دې غلام دَسترخوان راوړو ، نو دې كس ورته پوښتنه اوكړه : تا ولې دَسترخوان روستو راوړو ؟

غلام ورته وويل :

په دې دَسترخوان باندې ميږې ؤ ، دا د آدب خلاف وه چې د ميږي سره دَسترخوان د ځوانانو په مخ كې كيږدم ، او دا هم ښه اخلاق ندي چې زه ميږي اُوغورځوم او د خوراک نه

---

(۱) إن أُوَيْسًا القرني رَحِمَهُ اللّٰهُ كان إذا رآه الصبيانُ يرمونه بالحجارة . فكان يقول لهم : يا إخوتاه ! إن كان ولا بد فارمُوْنِيْ بالصغار حتى لا تدموا ساقي فتمنعوني عن الصلاة . احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ القلب بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الخُلُقِ ج ۳ ص ۷۱ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۸۴ علو الهمة في حسن الخلق .

(۲) قَالَتِ امْرَأَةٌ لِمَالِكِ بْنِ دِينَارٍ رَحِمَهُ اللهُ : يَا مُرَائِيُّ . فَقَالَ : يَا هٰذِهِ ! وَجَدْتِ اسْمِي الذي أضله أهل البصرة . احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ القلب بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الخُلُقِ ج ۳ ص ۷۱ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۸۵ علو الهمة في حسن الخلق .

يې اُوشرم ، پس ما اِنتظار اوكړو تر دې چې مېږې په خپله د دَسترخوان نه اُوخوېيدو .

هغه ځوانانو ورته ووېل : يَا غُلَامُ! مِثْلُكَ يَخْدُمُ الْفِتْيَانَ.

اې غلام ! ستا په شان شخصيت د ځوانانو خدمت كولې شي . (۱)

## د اِسلامي اَخلاقو نه كافران هم متأثره كېږي

كله چې صلاح الدين ايوبي رَحِمَهُ اللهُ د عيسايانو خلاف جهاد كولو ، عيسايانو دې جنګونو ته د صليبي جنګونو نوم وركړې وُ ، ( مسلمانانو او عيسايانو د يو بل مخامخ خيمې وهلې وې ) ، يوه شپه يو غل د عيسانانو خيمې ته ورننوت او يِتي ځور ماشوم يې د مور نه اُوتختول او لاړ اُوتختيد .

مور يې په ژړا باندې د عيسايانو بادشاه " رچرډ شيردل " ته ورغله او هغه ته يې شكايت اوكړو ، هغه ورته ووېل :

زه د غل نيولو نه عاجزيم ، ته صلاح الدين ايوبي ته ورشه .

دا ښځه صلاح الدين ايوبي رَحِمَهُ اللهُ ته راغله او شكايت يې ورته اوكړو . صلاح الدين ايوبي رَحِمَهُ اللهُ دا ډېره په عزت باندې كينوله ، په توَجّه سره يې د دې خبره واوريده ، بيا يې يو تېز رَفتاره آس واله ته حُكم اوكړو چې ورشه او غل پيدا كړه .

دا كس د ټولو نه مخكې بازار ته لاړ ، هلته يې يو كس اُوليد چې د بل نامعلوم كس نه يې ماشوم په روپو باندې اخيستى دى او هغه غل په خپله تختيدلى وُ ، ده دا ماشوم او دا كس دواړه صلاح الدين ايوبي رَحِمَهُ اللهُ ته راوستل ، څنګه چې مور دا ماشوم اُوليد نو وَرټوپ يې

---

(۱) قَدِمَ جَمَاعَةُ فِتْيَانٍ لِزِيَارَةِ فَتًى. فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا غُلَامُ! قَدِّمِ السُّفْرَةَ. فَلَمْ يُقَدِّمْ. فَقَالَهَا ثَانِيًا وَثَالِثًا فَلَمْ يُقَدِّمْ. فَنَظَرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ، وَقَالُوا: لَيْسَ مِنَ الْفُتُوَّةِ أَنْ يَسْتَخْدِمَ الرَّجُلُ مَنْ يَتَعَاصَى عَلَيْهِ فِي تَقْدِيمِ السُّفْرَةِ كُلَّ هٰذَا. فَقَالَ الرَّجُلُ: لِمَ أَبْطَأْتَ بِالسُّفْرَةِ؟ فَقَالَ الْغُلَامُ: كَانَ عَلَيْهَا نَمْلٌ. فَلَمْ يَكُنْ مِنَ الْأَدَبِ تَقْدِيمُ السُّفْرَةِ إِلَى الْفِتْيَانِ مَعَ النَّمْلِ، وَلَمْ يَكُنْ مِنَ الْفُتُوَّةِ إِلْقَاءُ النَّمْلِ وَطَرْدُهُمْ عَنِ الزَّادِ. فَلَبِثْتُ حَتَّى دَبَّ النَّمْلُ. فَقَالُوا: يَا غُلَامُ! مِثْلُكَ يَخْدُمُ الْفِتْيَانَ. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين لابن القيم الجوزي ج۲ ص ۳۲٦ فَصْلُ مَنْزِلَةُ الْفُتُوَّةِ ، الرسالة القشيرية ج۲ ص ۳۸۴ باب الفتوة ، فصل الخطاب في الزهد والرقائق والآداب ج٦ ص ۳۲۷ فصلٌ في منزلة الفتوة .

کړل او ماشوم يې د خپلې سينې سره اُولږول.

صلاح الدين ايوبي رَحِمَهُ اللّٰهُ دې اخيستونکي ته دَبل قيمت ورکړو او ماشوم يې دې زَنانه ته حواله کړو، بيا يې دا زَنانه په آس باندې سوَره کړه او په حفاظت سره يې د زَنانه خپلې خيمې ته اُورسوله.

کله چې دا واقعه د عيسايانو بادشاه " رچرډ شيردل " ته اُورسيده نو هغه خپلو سردارانو ته وويل: د کومو خلقو سره چې د خوش اخلاقۍ دا قوّت موجود وي د هغوی سره جنګ کول خُود کُشي ده.

## د يو بزرګ د خوش اخلاقۍ په وجه کافر ته اِيمان نصيب کيدل

تاتاريان چې کله د بغداد په حکومت باندې غالِب شو نو ډير تکبّر په کې پيدا شو، خپل ځان به يې د مسلمانانو نه ډير اُوچت ګنړل، يوه ورځ يو تاتاري شهزاده په آس باندې سورۇ، ښکار ته تللو، خپل سپې هم ورسره ؤ، په لاره کې د مسلمانانو يو بزرګ په مخه ورغی، دې تاتاري د دې بزرګ نه پوښتنه اوکړه: ته ښه يې او که زما دا سپې ښه دی؟

دې مسلمان بزرګ ورته په ډير اِطمينان سره جواب ورکړو:

که زما آخِره خاتِمه په اِيمان باندې شوه نو زه ښه يم، او که په اِيمان نه شوه نو ستا دا سپې ښه دی.

دې جُملې په دې تاتاري باندې دومره آثر اوکړو چې ده د اِيمان په باره کې معلومات حاصلول شروع کړل: چې دا اِيمان څه شی دی چې کله د انسان آخري خاتمه په اِيمان نه وي نو بيا د سپي نه هم بَدتر کيږي؟

ده د اِيمان متعلق معلومات حاصلول، آخر دا چې خبره ورته واضحه شوه او مسلمان شو.(۱)

## د خواجه نِظام الدين اَولياء رَحِمَهُ اللّٰهُ د خوش اخلاقۍ په وجه کافر غل اِيمان راوړو

خواجه نِظام الدين اولياء رَحِمَهُ اللّٰهُ ته يو ميلمه د شپې د پاره راغی ( دا يو کافر غل ؤ )، د

---

(۱) خزينه از مولانا اسلم شيخوپوري رحمه الله ص ۱۲۷.

شپې يې څه څيزونه پَټ کړل ، سهر يې د دِهلي په بازار کې خرڅول ، د پوليس أفسر وريانديې شَک پيدا شو چې دده سره دا شيان د غَلا دي ، نو وې نيولو ، چې تحقيق يې ورنه اوکړو نو ورته معلومه شوه چې شپه يې د خواجه نِظام الدين اولياء سره تېره کړې ده ، نو هغه پسې يې جواب ورأوليږلو .

چې کله هغه راغی نو دې پوليس ورته ووېل :

ته دا څيزونه اوګوره چې دا ستا دي او که نه ؟

خواجه صاحب غل طرف ته اُوکتل او ورته وې ويل :

وروره ! ته په خپله اُووايه چې دا څيزونه د غَلا دي يا ستا دي ؟

غَل چُپ شو او هيڅ جواب يې ورنکړو . خواجه صاحب ( د خپل ځان په باره کې ) ووېل :

" نِظام الدين خالي لاس راغلې دی او خالي لاس به ځي ، د ماسره دومره موقع نشته چې زه خپل ځان اُوپيژنم نو دا څيزونه به څنګه اُوپيژنم ؟ که دده غلا کړي وي نو الله ﷻ دې ورته بَخشش اوکړي ، او که نه يې وي کړي نو دا پريږدئ " .

پوليس أفسر دا ګمان اوکړو چې ګني دا کس بې ګناه دی نو پرې يې خود .

خواجه نظام الدين صاحب غل ته ووېل :

وروره ! ته د مانه د غَلا په تور کې نيول شوې يې تاته به ډير تکليف دَر رسيدلې وي لهذا ته ما معاف کړه ، ته زما ميلمه يې ، پته نه لږي چې تا به روټۍ خوَړلې وي يا نه ؟

بيا خواجه صاحب دې غل له روټۍ راأوغوښته ، او ورياندې وې خوړه .

غَل چې د خواجه صاحب دا نرمي او خوش اخلاقي اُوليده نو معافي يې اوغوښته ، او وې ويل :

تاسو ته ښه معلومه ده چې زه غل يم ، او دا شيان ما د تاسو نه راپټ کړي دي خو تاسو بغير زما د دَرخواست نه په ماباندې پَرده واچوله او زه مو معاف کړم ، زه د تاسو نه ډير متأثر شوم ، او تاسو چونکه د مسلمانانو رُوحاني پيشوا يَی ، نو چې کله د يو مذهب پيشوا دومره ښه وي نو هغه مذهب به په خپله څومره ښه وي ؟ لهذا زه د زړه په صداقت سره اسلام قبلوم . نو مسلمان شو .

# د خوښ اخلاقۍ اجمالي فوائد

په خوش اخلاقۍ سره د انسان ګناهونه معاف کېږي. (١)

کورونه ورباندئ آباديږي، او د انسان په عُمر کښ برکت پيدا کېږي. (٢)

په خوش اَخلاقۍ سره انسان د الله ﷻ مُقرّب ګرځي، د الله ﷻ او مخلوقاتو په نزد محبوب ګرځي.

په خوش اخلاقۍ کښ د انسان عزت دی، او بَد اخلاقۍ کښ سپکاوی دی.

په خوش اخلاقۍ سره د انسان درجې اُوچتيږي.

په خوش اخلاقۍ سره انسان د رسولُ الله ﷺ محبوب او مُقرّب جوړيږي.

خوش اخلاقي د انسان په ښه والي او شرافت باندئ دلالت کوي.

په دې سره د انسان دشمن په دوست بدليږي.

په خوش اخلاقۍ سره د انسان مغفرت نصيبه کېږي، ګناهونه يې ختميږي، او ددې په وجه انسان د نفلي روژو او نفلي تهجد و ثواب مومي.

دير خلق جنت ته د خوش اخلاقۍ په وجه داخليږي، ددې په وجه د قيامت په ورځ د انسان د نېکو اعمالو تله درنيږي.

د خوش اخلاقۍ په وجه د انسان په بدن باندئ د جهنم اُور حراميږي، د مسلمانانو په

---

(١) په يو ضعيف حديث کښ ذکر دي، نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي: حُسْنُ الْخُلُقِ يُذِيبُ الْخَطَايَا كَمَا تُذِيبُ الشَّمْسُ الْجَلِيدَ. وَإِنَّ الْخُلُقَ السَّيِّءَ يُفْسِدُ الْعَمَلَ كَمَا يُفْسِدُ الْخَلُّ الْعَسَلَ.
خوش اخلاقي ګناهونه داسې ويلې کوي لکه نمر چې واوره (يَخ) ويلې کوي، او بَد اخلاقي نېک اعمال داسې فاسدوي لکه سَرکه چې شهد فاسدوي.
شعب الايمان رقم الحديث ٧٦٧٣، و رقم الحديث ٧٦٧٤، تنبيه الغافلين ص ٣٦٣ باب فضل الطعام وحسن الخلق، كنز العمال رقم الحديث ٥١٣٣، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ٣١، احياء علوم الدين ج ٣ ص ٥١، الدر المنثور في التفسير بالماثور ج٢ ص ٣١٨، الزواجر عن اقتراف الكبائر ص ١٣٣.

(٢) حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: إِنَّ حُسْنَ الْخُلُقِ، وَحُسْنَ الْجِوَارِ، وَصِلَةَ الرَّحِمِ يُعَمِّرْنَ الدِّيَارَ، وَيَزِدْنَ فِي الْأَعْمَارِ، وَإِنْ كَانَ الْقَوْمُ فُجَّارًا. تنبيه الغافلين ص ٢٦١ بَابُ فَضْلِ إِطْعَامِ الطَّعَامِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ
يقيناً خوش اخلاقي، ښه ګاونديتوب، او صِله رَحمي کورونه آبادوي او عُمرونه زياتوي اګر که دا خلق فاجران وي.

مينځ کې اتفاق او محبت پيدا کيږي.

د خوش اخلاقۍ په وجه د انسان مُخلِصه دوستان زياتيږي او د شمنان يې کميږي. (١)

په خوش اخلاقۍ سره د انسان مرتبه په دُنيا او آخرت دواړو کې اُوچتيږي.

خوش اخلاقه انسان په خپله هم د ضَرَر نه محفوظ وي او نور خلق هم دده د ضَرَر نه محفوظ وي.

د خوش اخلاقۍ په وجه انسان په دُنيا کې نېک بَخته وي، خلق ورسره محبت کوي، او بندې دَروازې ورته کلاويږي.

خوش اخلاقه انسان په دُنيا کې مطمئِن وي. (٢)

---

(١) مِنْ فَوَائِدِ حُسْنِ الْخُلُقِ : ١. حُسْنُ الْخُلُقِ مِنْ أَفْضَلِ مَا يُقَرِّبُ الْعَبْدَ إِلَى اللهِ تَعَالَى. ٢. إِذَا أَحْسَنَ الْعَبْدُ خُلُقَهُ مَعَ النَّاسِ أَحَبَّهُ اللهُ وَالنَّاسُ. ٣. حُسْنُ الْخُلُقِ يَأْلَفُ النَّاسَ وَيَأْلَفُهُ النَّاسُ. ٤. لَا يُكَرِّمُ الْعَبْدُ نَفْسَهُ بِمِثْلِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَلَا يُهِينُهَا بِمِثْلِ سُوئِهِ. ٥. حُسْنُ الْخُلُقِ سَبَبٌ فِي رَفْعِ الدَّرَجَاتِ وَعُلُوِّ الْهِمَمِ. ٦. حُسْنُ الْخُلُقِ سَبَبٌ فِي حُبِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْبِ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ٧. حُسْنُ الْخُلُقِ يَدُلُّ عَلَى سَمَاحَةِ النَّفْسِ وَكَرَمِ الطَّبْعِ. ٨. حُسْنُ الْخُلُقِ يُحَوِّلُ الْعَدُوَّ إِلَى الصَّدِيْقِ. ٩. حُسْنُ الْخُلُقِ سَبَبٌ لِعَفْوِ اللهِ وَجَالِبٌ لِغُفْرَانِهِ. ١٠. يَمْحُو اللهُ بِحُسْنِ الْخُلُقِ السَّيِّئَاتِ. ١١. يُدْرِكُ الْمَرْءُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ الصَّائِمِ الْقَائِمِ. ١٢. حُسْنُ الْخُلُقِ مِنْ أَكْثَرِ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ الْجَنَّةَ. ١٣. حُسْنُ الْخُلُقِ يَجْعَلُ صَاحِبَهُ مِمَّنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ١٤. حُسْنُ الْخُلُقِ يُحَرِّمُ جَسَدَ صَاحِبِهِ عَلَى النَّارِ. ١٥. حُسْنُ الْخُلُقِ يُصْلِحُ مَا بَيْنَ الْإِنْسَانِ وَبَيْنَ النَّاسِ. ١٦. وَبِالْخُلُقِ الْحَسَنِ يَكْثُرُ الْمُصَافُوْنَ وَيَقِلُّ الْمُعَادُوْنَ. نضرة النعيم ج٥ ص ١٥٨٦.

(٢) منافع الخلق الحسن ومضار الخلق السيئ: لاريب أنّ الأخلاق الحميدة هي القيم الإنسانية التي بها يرتقي المسلم وبها يعتلي شأنه ويرتفع مقامه في هذه الدنيا وفي الآخرة وهنا ذكر لهذه المنافع والثمار: ١. ينضبط بها سلوك الفرد من الداخل. فالخلق الكريم يمنع صاحبه من الإضرار بنفسه وبمجتمعه. فلايؤذي نفسه ولايؤذي الآخرين. ٢. الأخلاق الحسنة سبب لسعادة العبد في الدنيا فصاحب الخلق الحسن يحب الناس ويحبونه فتلين له المصاعب. وتنفتح له الأبواب المغلقة فينجح في أعماله ووظائفه ويترقي بسببها إلي أعلي الدرجات. ٣. صاحب الخلق الحسن أقرب الناس مجلسا ←←←←←

خوش اخلاقه انسان ته سخت کارونه آسانيږي، نور خلق دده صفت کوي، او دا د خلقو د شَرنه محفوظ وي.

خوش اخلاقه انسان د خوشحالۍ ژوند تيروي، ددې په وجه خپل مينځې محبت پيدا کيږي.

د خوش اخلاقۍ په وجه په عيبونو پَرده راځي. (١)

---

←←← إلى النبي صلى الله عليه وسلم وأحبهم إليه. ٤. الخلق الحسن يوصل بصاحبه إلى أعلى الدرجات في الآخرة فهو أثقل شيئ في ميزان المؤمن يوم القيامة. ٥. حسن الخلق سبب لصلاح المجتمع وسعادته بل هو من أهم عوامل قوة الأمة ورفعها. ٦. راحة النفس واطمئنان القلب حيث يعلم أنه لم يؤذ أحدا ولم يكدر صفو أحد. مكارم الأخلاق لمن اراد الخلاق ج١ ص١٤.

(١) ١. تيسير الأمور: فحسن الخلق سبب لذلك؛ لأنه من تقوى الله، والله عز وجل يقول: {وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا} [ الطلاق آية ٤ ]. ٢. حسن الخلق مدعاة للذكر الحسن: فالناس تلهج ألسنتها بذكر أهل الخلق الحسن، والتاريخ يسطر مآثرهم، والركبان تسري بحديثهم. ٣. السلامة من شر الخلق: لأن صاحب الخلق الحسن لا يقابل الإساءة بالإساءة، وإنما يقابلها بالصفح، والعفو، والإعراض، وربما قابلها بالإحسان، ولو جارى الناس في سفههم لما كان له فضل عليهم، ولما سلم من أذاهم. فلو لم تأت من حسن الخلق إلا هذه الفائدة لكان حريا بالعاقل أن يتحلى به......

راحة البال وطيب العيش: فصاحب الخلق الحسن في راحة حاضرة، ونعيم عاجل؛ فإن قلبه مطمئن، ونفسه ساكنة، وذلك مادة الراحة العاجلة، وطيب العيش. كما أن صاحب الخلق السيئ في شقاء حاضر، وعذاب مستمر، ونزاع ظاهري وباطني مع نفسه، وأولاده، ومخالطيه، مما يشوش عليه حياته، ويكدر عليه أوقاته، مع ما يترتب على ذلك فوات الآثار الطيبة، والتعرض لضدها. "فمن حسن خلقه طابت معيشته، ودامت سلامته، وتأكدت في الناس محبته ومن ساء خلقه تكدرت معيشته، ودامت بغضته، ونفر الناس منه.

٢. حصول الوئام والاتفاق التام في المجتمع: فإذا حسنت الأخلاق في مجتمع ما شاع الوئام والتراحم، وسادت الألفة والمودة في ذلك المجتمع. ذلك أن الامتزاج بمكارم الأخلاق يجبي إلى صاحبه عرفان ما له من الحقوق، وما عليه من الواجبات؛ فلا يخل حينئذ بواجب، ولا يدعي إلا بحق. ←←←←←←←

# د کامیاب اِجتماعي ژوند دپاره ښه اَخلاق ضروري دي

کله چې انسان په معاشره کې کامیاب اِجتماعي ژوند تیرول غواړي نو ددې د پاره ښائسته اخلاق ډیر ضروري دي ، ځکه بغیر د ښائسته اخلاقو نه انسان کامیاب ژوند نشي تیرولی .

بیا خاصکر اسلام خو په خوش اخلاقۍ باندې ډیر زُور ورکړی :

په خوش اخلاقۍ باندې یې په دُنیا او آخرت کې د ثوابونو وعده کړې ، او بَداخلاقۍ باندې یې د سزا او هلاکت وعده کړې .(۱)

---

←←← وذلك يدعو بالضرورة إلى شدة الإرتباط، وكمال الالتئام الذي يجعل أفراد الأمة عضوا واحدا للتعاون على البر والتقوى، والتعاضد على الأعمال التي تنتج لهم التقلب في عيشه راضية، وتحفظ لأعقابهم مستقبلا حسنا.

٥ . حسن الخلق يستر العيوب: فقد يبتلى المرء بكثير من الآفات والعيوب الخلقية من دمامة ونحوها، مما يجعله عرضة للذم، وغرضاً للسخرية من بعض الناس. ولكن ذلك لا يقصره عن مجد، ولا يقعد به عن سؤدد، وذلك إذا رزق بخلق حسن، وعقل راجح. فحسن الخلق يغطي غيره من القبائح،كما أن سوء الخلق يقبح غيره من المحاسن سوء الخلق ص ٨٤ . وص ٨٧ ، وص ٨٩ .

(١) أهمية الأخلاق في حياة البشر: إن أي مجتمع من المجتمعات الإنسانية لا يستطيع أفراده أن يعيشوا متفاهمين سعداء ما لم تربط بينهم روابط متينة من الأخلاق الكريمة. ولو فرضنا وجود مجتمع من المجتمعات على أساس تبادل المنافع المادية فقط، من غير أن يكون وراء ذلك غرض أسمى، فإنه لا بد لسلامة هذا المجتمع من خلقي الثقة والأمانة على أقل التقدير. فمكارم الأخلاق ضرورة اجتماعية لا يستغني عنها مجتمع من المجتمعات، ومتى فقدت الأخلاق التي هي الوسيط الذي لا بد منه لانسجام الإنسان مع أخيه الإنسان، تفكك أفراد المجتمع، وتصارعوا، وتناهبوا مصالحهم، ثم أدى بهم ذلك إلى الانهيار ثم الدمار. فإذا كانت الأخلاق ضرورة في نظر المذاهب والفلسفات الأخرى فهي في نظر الإسلام أكثر ضرورة وأهمية. ولهذا فقد جعلها مناط الثواب والعقاب في الدنيا والآخرة، فهو يعاقب الناس بالهلاك في الدنيا لفساد أخلاقهم. الأخلاق في الإسلام ج١ ص١٢ .

# په ځان کې شرعي اخلاق پيدا کول په کار دي

خو په دې خبره ځان پوهه کړئ چې اسلام د مسلمان نه د شرعي اَخلاقو مطالبه کوي ، چې د هر چا سره به د شريعت مطابق ښه اخلاق کاروي .

بعضې خلق صرف د خپلو دُوستانو سره ښه اخلاق کاروي خو بيا د نورو خلقو سره بَداخلاقي کوي .

بعضې خلق د خپلې بي بي سره خوش اخلاقي کوي خو د مور او پلار وغيره سره بداخلاقي کوي .

بعضې خلق د خپلو رِشته دارو او مالدارو سره خوش اخلاقي کوي خو بيا د عامو مسلمانانو او بانانو سره بَداخلاقي کوي .

بعضې دُکانداران او سَوداګر صرف د سَوداء اخيستونکو سره ښه اخلاق کاروي خو بيا د نورو خلقو سره بداخلاقي کوي .

حالانکه اسلام د مسلمان نه د شرعي او نبوي اخلاقو مطالبه کوي چې د هر چا سره به خوش اخلاقي کوي ، صرف سوداګري اخلاق د ګهاک جوړولو د پاره خو په انګريزانو کې هم وي .

# د خوش اخلاقئ په باره کې نور اَقوال

د تقرير په شروع کې ما د خوش اخلاقئ تعريف کړې وُ ، اوس دا چې خوش اخلاقي په کومو کومو صفتونو سره راځي ؟ نو ددې په باره کې د علماؤ مختلف اقوال دي :

۱ . حضرت علي رضي الله عنه فرمايي :

حُسْنُ الْخُلُقِ فِيْ ثَلَاثِ خِصَالٍ: اِجْتِنَابُ الْمَحَارِمِ ، وَطَلَبُ الْحَلَالِ ، وَالتَّوْسِعَةُ عَلَى الْعِيَالِ .

خوش اخلاقي په درې (۳) صفتونو کې ده : ۱ . ځان د حرامو نه ساتل ۲. د حلالو طلب کول ۳ . په خپل اهل و عيال باندې فراخي کول .(۱)

۲ . حضرت حسن ﷺ فرمايي : حُسْنُ الْخُلُقِ : اَلْكَرَمُ وَالْبَذْلَةُ وَالْاِحْتِمَالُ .(۲)

خوش اخلاقي داده : شرافت (دَرگُزر کول) ، په اخلاص سره ورکړه (سخاوت) کول، او د خلقو په تکليفونو باندې صبر کول.

۳ . د حضرت حسن ﷺ نه دا هم نقل دي :

حُسْنُ الْخُلُقِ : بَسْطُ الْوَجْهِ ، وَبَذْلُ النَّدٰى ، وَكَفُّ الْأَذٰى . (۳)

خوش اخلاقي داده : د خلقو سره په روڼ تَندي ملاويدل ، سخاوت کول ، او خلقو ته تکليف نه رسول .

همداسې قول حضرت عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ نه هم نقل دی . (۴)

---

(۱) احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلْبِ بيان حقيقة حسن الخلق وسوء الخلق ج ۳ ص ۵۳ .

(۲) جامع العلوم الحكم ص ۱۶۰ ، نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۴ حُسن الخلق .

(۳) احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلْبِ بيان حقيقة حسن الخلق وسوء الخلق ج ۳ ص ۵۲ .

(۴) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ تَفْسِيْرِ حُسْنِ الْخُلُقِ ، قَالَ : هُوَ طَلَاقَةُ الْوَجْهِ ، وَبَذْلُ الْمَعْرُوْفِ ، وَكَفُّ الْأَذٰى . وعنه أنه قال: حُسْنُ الْخُلُقِ أَنْ تَحْتَمِلَ مَا يَكُوْنُ مِنَ النَّاسِ . جامع العلوم الحكم ص ۱۶۰ ، نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۴ حُسن الخلق.

٤ . امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : حُسْنُ الخُلُقِ أَنْ لَا تَغْضِبَ وَلَا تَحْقِدَ .
خوش اخلاقي داده چې ته په چا باندې (بې ځايه) غصه اونکړې ، او د هغه سره حسد اونکړې . (١)

٥ . محمد بن نصر رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : بعضې اهلِ عِلمو ويلي دي چې خوش اخلاقي داه:
د الله ﷻ د رَضا د پاره غصه برداشت كول ، د بِدعتي او فاجِر نه علاوه د نورو خلقو سره په رُوڼ تَندي او خوشحالۍ ملاويدل ، خطاء كوونكي ته معافي كول البته تأديب او حُدود قائمول ددينه مُستثنٰی دي ، مسلمان او د چا سره چې معاهده شوي وي دوی ته ضرر نه رسول مگر د ناجائز كارونو نه كس منع كول يا د مظلوم د پاره د ظالِم نه بدل اخيستل جائز دي . (٢)
علماؤ د خوش اخلاقۍ نور صفتونه هم ذكر كړي . (٣)

---

(١) جامع العلوم الحكم ص ١٦٠ ، نضرة النعيم ج ٥ ص ١٥٨٢ حُسن الخلق .

(٢) قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ نَصْرٍ رَحِمَهُ اللَّهُ : وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: حُسْنُ الخُلُقِ كَظْمُ الغَيْظِ لِلّٰهِ، وَ إِظْهَارُ الطَّلَاقَةِ وَالبِشْرُ إِلَّا لِلْمُبْتَدِعِ وَالفَاجِرِ، وَالعَفْوُ عَنِ الزَّالِّيْنَ إِلَّا تَأْدِيْبًا وَإِقَامَةُ الحَدِّ ، وَكَفُّ الأَذٰى عَنْ كُلِّ مُسْلِمٍ أَوْ مُعَاهَدٍ إِلَّا تَغْيِيْرَ مُنْكَرٍ وَأَخْذًا بِمَظْلَمَةٍ لِمَظْلُوْمٍ مِنْ غَيْرِ تَعَدٍّ . جامع العلوم والحكم في شرح خمسين حديثا من جوامع الكلم ج١ ص ٢٥٨ الحَدِيثُ الثَّامِنَ عَشَرَ اتَّقِ اللهَ حَيْثُمَا كُنْتَ وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الحَسَنَةَ تَمْحُهَا .

(٣) وَقِيْلَ: إِنَّ حُسْنَ الخُلُقِ بَذْلُ النَّدَى، وَكَفُّ الأَذَى، وَاحْتِمَالُ الأَذَى .
وَقِيْلَ: حُسْنُ الخُلُقِ : بَذْلُ الجَمِيْلِ، وَكَفُّ القَبِيْحِ . مدارج السالكين ج٢ ص ٢٩٢ فَصْلُ الدِّيْنُ كُلُّهُ خُلُقٌ .
قال الماوردي رَحِمَهُ اللَّهُ : وَحُسْنُ الخُلُقِ أَنْ يَكُوْنَ سَهْلَ العَرِيْكَةِ ، لَيِّنَ الجَانِبِ، طَلِيْقَ الوَجْهِ، قَلِيْلَ النُّفُوْرِ، طَيِّبَ الكَلِمَةِ . ادب الدنيا والدين ص ٢٤٣ الفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الخُلُقِ
وقال الشيخ ابن سعدي رحمه الله في حسن الخلق: هو خلق فاضل عظيم، أساسه الصبر والحلم والرغبة في مكارم الأخلاق ، وآثاره العفو والصفح عن المسيئين وإيصال المنافع إلى الخلق أجمعين، فهو احتمال الجنايات، والعفو عن الزلات، ومقابلة السيئات بالحسنات، وقد جمع الله ذلك في آية واحدة وهي قوله: { خُذِ العَفْوَ وَأْمُرْ بِالعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الجَاهِلِيْنَ } . الرياض الناضرة لابن سعدي ص ٦٨ . سوء الخلق ج١ ص ٨٠ .

# د خوش اخلاقی ارکان

**١** . علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ په تفصيل سره ذكر كړي چې د خوش اخلاقی څلور (۴) اَركان دي : صبر ، پاكدامني ، شجاعت ، عدل .
ځكه ددې هر سبب په وجه نور ښه اخلاق پيدا كيږي ، او د ټولو ښو اخلاقو د پاره بنياد همدا څلور اخلاق دي . (١)

**٢** . امام هروي رَحِمَهُ اللهُ ذكر كړي چې د خوش اخلاقی اَركان درې (٣) دي :
عِلم ، سخاوت ، صبر . (٢)

---

(١) وَحُسْنُ الخُلُقِ يَقُوْمُ عَلَى أَرْبَعَةِ أَرْكَانٍ لَا يُتَصَوَّرُ قِيَامُ سَاقِهِ إِلَّا عَلَيْهَا : اَلصَّبْرُ، وَالعِفَّةُ، وَالشَّجَاعَةُ، وَالعَدْلُ
فَالصَّبْرُ: يَحْمِلُهُ عَلَى الإِحْتِمَالِ وَكَظْمِ الغَيْظِ، وَكَفِّ الأَذَى، وَالحِلْمِ وَالأَنَاةِ وَالرِّفْقِ، وَعَدَمِ الطَّيْشِ وَالعَجَلَةِ.
وَالعِفَّةُ : تَحْمِلُهُ عَلَى اجْتِنَابِ الرَّذَائِلِ وَالقَبَائِحِ مِنَ القَوْلِ وَالفِعْلِ، وَتَحْمِلُهُ عَلَى الحَيَاءِ ، وَهُوَ رَأْسُ كُلِّ خَيْرٍ.
وَتَمْنَعُهُ مِنَ الفَحْشَاءِ، وَالبُخْلِ وَالكَذِبِ، وَالغِيْبَةِ وَالنَّمِيْمَةِ.
وَالشَّجَاعَةُ: تَحْمِلُهُ عَلَى عِزَّةِ النَّفْسِ، وَ إِيْثَارِ مَعَالِي الأَخْلَاقِ وَالشِّيَمِ، وَعَلَى البَذْلِ وَالنَّدَى، الَّذِيْ هُوَ شَجَاعَةُ النَّفْسِ وَقُوَّتُهَا عَلَى إِخْرَاجِ المَحْبُوْبِ وَمُفَارَقَتِهِ ،وَتَحْمِلُهُ عَلَى كَظْمِ الغَيْظِ وَالحِلْمِ، فَإِنَّهُ بِقُوَّةِ نَفْسِهِ وَشَجَاعَتِهَا يُمْسِكُ عِنَانَهَا، وَيَكْبَحُهَا بِلِجَامِهَا عَنِ النَّزْغِ وَالبَطْشِ، كَمَا قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: « لَيْسَ الشَّدِيْدُ بِالصُّرَعَةِ. إِنَّمَا الشَّدِيْدُ الَّذِيْ يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الغَضَبِ »، وَهُوَ حَقِيْقَةُ الشَّجَاعَةِ. وَهِيَ مَلَكَةٌ يَقْتَدِرُ بِهَا العَبْدُ عَلَى قَهْرِ خَصْمِهِ.
وَالعَدْلُ: يَحْمِلُهُ عَلَى اعْتِدَالِ أَخْلَاقِهِ. وَتَوَسُّطِهِ فِيْهَا بَيْنَ طَرَفَيِ الإِفْرَاطِ وَالتَّفْرِيْطِ . فَيَحْمِلُهُ عَلَى خُلُقِ الجُوْدِ وَالسَّخَاءِ الَّذِيْ هُوَ تَوَسُّطٌ بَيْنَ الذُّلِّ وَالقِحَةِ . وَعَلَى خُلُقِ الشَّجَاعَةِ الَّذِيْ هُوَ تَوَسُّطٌ بَيْنَ الجُبْنِ وَالتَّهَوُّرِ . وَعَلَى خُلُقِ الحِلْمِ الَّذِيْ هُوَ تَوَسُّطٌ بَيْنَ الغَضَبِ وَالمَهَانَةِ وَسُقُوْطِ النَّفْسِ . وَمَنْشَأُ جَمِيْعِ الأَخْلَاقِ الفَاضِلَةِ مِنْ هٰذِهِ الأَرْبَعَةِ. مدارج السالكين بين منازل اياك نعبد واياك نستعين ج٢ ص ٢٩٣ فصل الدين كله خلق

(٢) .... وَإِنَّمَا يُدْرِكُ إِمْكَانُ ذٰلِكَ فِيْ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ : فِي الحِلْمِ، وَالجُوْدِ، وَالصَّبْرِ. مدارج السالكين لابن القيم ج٢ ص ٣٠١ فصل منزل الخلق

# د خوش اخلاقۍ علامات

بعضو علماؤ د خوش اخلاقۍ علامات دا ذکر کړي چې په دې کس کې به حَياء ډيره وي، خلقو ته به تکليف نه رسوي، بلکه ډيره فائده به وَر رسوي، رېښتيا ويونکی به وي، خبرې به لږې کوي، عمل به ډير کوي، خطاء به ورنه کمه کيږي، فضول خبرې به نه کوي، د نيکۍ کارونه به کوي، شريف به وي، صبر کوونکی او شکر گزار به وي، د الله ﷻ په فيصله به راضي وي، پاک دامَن او مهربانه به وي.

نه به په چا باندې لعنت وايي، نه به کنځل کوي، نه به چُغل خوري کوي، نه به د چا غِيبت کوي، نه به جَلدباز وي، نه به د چا سره کِينه ساتي، نه به بخيل وي، او نه به د چا سره حسَد کوي. هر وخت به يې رُوڼ تَندې وي.

محبت، بُغض، خوشحالي او غصه به د الله ﷻ د رَضا د پاره کوي.

دا مذکوره صفتونه په ځان کې پيدا کول خوش اخلاقي ده، (او دا د خوش اخلاقۍ علامات دي). (۱)

ځنې علماؤ نور علامات هم ذکر کړي. (۲)

---

(۱) جَمَعَ بَعْضُهُمْ عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ. فَقَالَ: هُوَ أَنْ يَكُوْنَ كَثِيْرَ الْحَيَاءِ، قَلِيْلَ الْأَذٰى، كَثِيْرَ الصَّلَاحِ، صَدُوْقَ اللِّسَانِ، قَلِيْلَ الْكَلَامِ، كَثِيْرَ الْعَمَلِ، قَلِيْلَ الزَّلَلِ، قَلِيْلَ الْفُضُوْلِ، بَرًّا، وَصُوْلًا، وَقُوْرًا، صَبُوْرًا، شَكُوْرًا، رَضِيًّا، حَلِيْمًا، رَفِيْقًا، عَفِيْفًا، شَفِيْقًا، لَا لَعَّانًا، وَلَا سَبَّابًا، وَلَا نَمَّامًا، وَلَا مُغْتَابًا، وَلَا عَجُوْلًا، وَلَا حَقُوْدًا، وَلَا بَخِيْلًا، وَلَا حَسُوْدًا، بَشَّاشًا، هَشَّاشًا، يُحِبُّ فِي اللّٰهِ، وَيُبْغِضُ فِي اللّٰهِ، وَيَرْضٰى فِي اللّٰهِ، وَيَغْضَبُ فِي اللّٰهِ. فَهٰذَا هُوَ حُسْنُ الْخُلُقِ. احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلْبِ بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ج ۳ ص ۷۰.

(۲) قال يوسف بن أسباط رَحِمَهُ اللهُ: علامة حسن الخلق عشر خصال: قلة الخلاف، وحسن الإنصاف، وترك طلب العثرات، وتحسين ما يبدو من السيئات، والتماس المعذرة، واحتمال الأذى، والرجوع بالملامة على النفس، والتفرد بمعرفة عيوب نفسه دون عيوب غيره، وطلاقة الوجه للصغير والكبير، ولطف الكلام لمن دونه ولمن فوقه. وسئل سهل رَحِمَهُ اللهُ عن حسن الخلق، فقال: أدناه احتمال الأذى، وترك المكافأة، والرحمة للظالم والاستغفار له والشفقة عليه. احياء علوم الدين بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ج ۳ ص ۷۱.

## د خُوش اخلاقي پيدا کولو طريقې :

د خوش اخلاقي پيدا کولو د پاره يو څو کارونه ضروري دي :

۱ . مضبوط اِيمان لرل او د الله ﷻ مُقرّب جوړيدل . ځکه چې کله د انسان اِيمان مضبوط وي او ځان په اسلامي احکاماتو باندې عمل کولو سره د الله ﷻ مُقرّب جوړ کړي نو په دې سره پخپله دده اخلاق ښه کيږي .

۲ . د نيکانو او خوش اخلاقه خلقو سره ملګرتيا کول . ځکه د انسان د اخلاقو او معاملاتو د تبديلۍ د پاره د مجلس غټ تأثير وي ، مشهوره خبره ده :

اَلصَّاحِبُ سَاحِبٌ . ملګرى راښکونکې دى .

يعنى که هغه ښه وي نو تا به خير طرف ته راکاږي ، او که هغه خراب وي نو تا به شَر طرف ته راکاږي .

۳ . د خپل نفس سره مُحاسبه کول . ځکه د نفس مثال د ماشوم په شان دى ، که هم داسې يې پريږدى نو انسان خرابۍ طرف ته بوځي .

٤ . د ښه اخلاقو پيدا کولو کوشش کول ، او د خرابو اخلاقو نه ځان ساتل .

۵ . د سلفو صالحينو د اخلاقو پيروي کول .

٦ . د الله ﷻ نه د ځان د پاره د ښه اخلاقو پيدا کولو دُعا غوښتل . ځکه نبي عليه السلام به هم ( د اُمت د تعليم د پاره ) د ښه اخلاقو دُعا غوښتله .

۷ . د ښه اخلاقو فوائد ځان ته رامخې ته کول . ځکه که يو کار هر څومره مشکل وي خو چې انسان د هغې فوائد ځان ته رامخې ته کړي نو بيا ورته آسانيږي .

۸ . د بَداخلاقۍ په خرابو نتائجو باندې نظر اچول . ځکه چې کله انسان د بَداخلاقۍ په نقصاناتو باندې سوچ اوکړي نو په خپله به د دينه د بچ کيدو کوشش کوي ، او ښه اخلاق

به په ځان کې پيدا کوي .

٩ . هميشه د خپل نفس د اصلاح کوشش کول . (١)

(١) **كيف تكتسب الأخلاق الحسنة ؟** : كثيرون أولئك الذين يعانون من أخلاق سيئة. ويسئلون كيف نكتسب الأخلاق الحسنة وكيف نضبطها وماهو السبيل للتخلي عن الأخلاق الرذيلة. نقول هنا ذكر للأسباب المعينة للتخلق بالأخلاق الحسنة : ١. الإيمان الحق والقرب من الله تعالي: فهذا منبع الأخلاق الحميدة . فبه تزكو النفوس ،ويهذب السلوك . ٢ . مجالسة ومصاحبة أصحاب الخلق الحسن : فإن للأصحاب أثرا كبيرا في سلوك الإنسان ومعاملاته ومعاشرته . وقد قيل : اَلصَّاحِبُ سَاحِبٌ . أي إن كان صاحب خير يسحبه إلي الخير ، وإن كان صاحب شر يسحبه إلي شر ولقد صدق الشاعر لما قال: عن المرء لا تسئل وسل عن قرينه . فكل قرين بالمقارن يقتدي . ٣ . محاسبة النفس: فقد خلقت أمارة بالسوء نزاعة إلي الشر فعاتب نفسك وحاسبها وقُدْها نحو الخير. ولاتكن ذيلا لها تتبعها في هواها . وقد قيل : والنفسُ كالطفلِ إن ترضعهُ شبَّ على حُبِّ الرضاعِ وإن تفطمْهُ ينفطمِ . ٤ . التّمرن والتّدرب علي التخلق بالأخلاق الفاضلة . والتخلي عن الرذائل من الأخلاق. وقد قال صلي الله عليه وسلم: إنّما العلم بالتّعلم ، والحلم بالتحلم . ٥ . قرائة سير السلف الصالح ؛ فإنّها من الأسباب العظيمة والمعينة علي التخلق بالأخلاق الحسنة. فالحديث عن العلماء فيه محاسنهم وآدابهم وأخلاقهم. ٦ . الدعاء والطلب من الله تعالي ؛ فإنه من أعظم الأسباب الموصلة إلي محاسن الأخلاق . وكان من دعاء النبي صلي الله عليه وسلم: اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ . فَإِنَّهُ لَا يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ . وَاصْرِفْ عَنِّيْ سَيِّئَهَا لَايَصْرِفُ عَنِّيْ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ . مكارم الأخلاق لمن أراد الخلاق ج١ ص١٦

**أسباب اكتساب حسن الخلق** : لا ريب أن أثقل ما على الطبيعة البشرية تغير الأخلاق التي طبعت عليها النفس، إلا أن ذلك ليس متعذرا ولا مستحيلا ، بل إن هناك أسبابا عديدة، ووسائل متنوعة يستطيع الإنسان من خلالها أن يكتسب حسن الخلق : ١. سلامة العقيدة ٢. الدعاء ٣. المجاهدة ٤. المحاسبة ٥. التفكير في الآثار المترتبة على حسن الخلق ٦. النظر في عواقب سوء الخلق ٧. الحذر من اليأس من إصلاح النفس. سوء الخلق ج ١ ص ٩١ .

## خلاصه :

د غونډ تقرير خلاصه او نچوړ دا راأووت چې خوش اخلاقي بهترين صفت دی ، په قرآن کريم او احاديثو مبارکهؤ کې ددې ډير أهميت ، فضائل او فوائد بيان شوي ، او نبي عليه السلام د خپل أمت د پاره د خوش اخلاقۍ بهترينه نمونه پيش کړی .

که مسلمانان د ژوند په هره مرحله کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم اِقتداء اوکړي نو په دُنيا او آخرت دواړو کې به کامياب شي .

## دُعا

الله تعالی دې په مونږ کې هم خوش اخلاقي او نور ښائسته صفتونه پيدا کړي ، د بداخلاقۍ او نورو بدو صفتونو نه دې مونږ ټول أوساتي .

ربِّ کائنات دې مونږ ته په صحيح طريقې سره د خپل محبوب " محمّدُ رّسولُ الله صلی الله عليه وسلم " اِتباع نصيبه کړي .

آمِين يَارَبَّ العَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ العَالَمِيْنَ



بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿ وَقُوۡلُوۡا لِلنَّاسِ حُسۡنًا ﴾ البقرة آية ٨٣.

# د بد اخلاقۍ سزاګانې او نقصانات

تاليف


آبُو الشَّمۡس مولانا نُوۡرُ الۡهُدٰی عُفِيَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اکاخيل کالونی مردان

# نوټ :

که دا تقریر د مخکیني تقریر سره یو ځای بیانوی نو هم صحیح ده ، او که ځانله په مستقله موضوع کې یې بیانوی نو هم صحیح ده ، خو دا چونکه مختصر دی ، واقعات په کې نشته نو واقعات ورسره د مخکینی تقریر نه بیان کړئ .

ابوالشمس عفي عنه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د بَد اخلاقۍ سزاګاني او نقصانات

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَاتَمِ الْأَنْبِيَاءِ وَأَشْرَفِ الْمُرْسَلِيْنَ ، وَعَلٰى اٰلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ .

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ : ﴿ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا ﴾ . (۱)

وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ وَلَا الْجَعْظَرِيُّ . (۲)

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ : خَصْلَتَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ : اَلْبُخْلُ وَسُوْءُ الْخُلُقِ . (۳)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ .

## د بَد اخلاقۍ مذمّت

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! په اسلام کې د بَداخلاقۍ سخت مذمت بیان شوی ، او ددې ډیرې سزاګاني او نقصانات ذکر شوي .

بَد اخلاقه انسان د الله ﷻ او رسول ﷺ بَدي شي .

---

(۱) البقرة آية ۸۳ .

(۲) سنن ابي داؤد كِتَاب الْأَدَبِ بَابٌ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۸۰۱ قال الالباني: صحيح ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۸۲۳ ، مشكاة المصابيح باب الرّفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸۰(۱۳) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۷۹۹۳ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۲۲ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۸۶۱۸ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ۳۵۹۳ .

(۳) الادب المفرد للبخاري بَابُ الشُّحِّ رقم الحديث ۲۸۲ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۰۸(۸) كتاب البر والصلة وغيرهما الترهيب من البخل والشح والترغيب في الجود والسخاء ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبُخْلِ رقم الحديث ۱۹۶۲ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۲۳۲۲ ، مشكوة المصابيح باب الإنفاق وكراهية الامساك الفصل الثاني رقم الحديث ۱۸۷۲(۱۳) ، شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۳۳۶ ، كنز العمال رقم الحديث ۷۳۷۹ ، حلية الاولياء ج۲ ص۲۵۸ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۵۳۸ ، ورقم الحديث ۱۲۳۳ .

اګر چې د خلقو طبعيتونه مختلف وي خو بيا هم هر کس د بَداخلاقه سړي نه نفرت کوي، دده ژوند ډير تَنګ وي، هر وخت په غمونو او مشکلاتو کې مبتلاء وي. (۱)

نن به إِنْ شَاءَ الله تاسو ته د بداخلاقۍ سزاګانې، نقصانات، أسباب، علامات او نور ضروري بحثونه ذکر کوم، خو د ټولو نه اول درته د بَداخلاقۍ تعريف کوم:

## د بَداَخلاقۍ تعريف

**اول تعريف**: إِنَّ سُوْءَ الْخُلُقِ عِبَارَةٌ عَنْ هَيْئَةٍ رَاسِخَةٍ فِي النَّفْسِ تَصْدُرُ عَنْهَا الْأَفْعَالُ الْقَبِيْحَةُ بِسُهُوْلَةٍ وَيُسْرٍ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ إِلَى فِكْرٍ وَرَوِيَّةٍ. (۲)

بَد اَخلاقي عبارت دی د نفس د هغه هيئتِ راسِخه نه چې ددې په وجه د نفس نه قبيح افعال په آسانۍ سره بغير د فِکر او سوچ نه صادريږي.

**دويم تعريف**: اَلتَّحَلِّيْ بِالرَّذَائِلِ، وَالتَّخَلِّيْ مِنَ الْفَضَائِلِ. (۳)

خراب صفتونه په ځان کې راوستل، او ښه صفتونو د ځان نه لرې کول.

---

(۱) سوء الخلق عمل مرذول، ومسلك دنيء، يمقته الله عز وجل ويبغضه الرسول صلى الله عليه وسلم، بل إن الناس على اختلاف مشاربهم يبغضون سوء الخلق، وينفرون من أهله؛ فهو مما ينفر الناس، ويفرق الجماعات، ويصد عن الخير، ويصدف عن الهدى. ثم إنه مجلبة للهم والغم، ومدعاة للكدر وضيق الصدر، سواء لأهله أو لمن يتعامل معهم. فما أضيق عيش من ساء خلقه، ما أشد بلاء من ابتلي بسيئ الخلق. سوء الخلق ج۱ ص۱۲ ذم سوء الخلق.

(۲) د بداخلاقۍ دا مذکوره تعريف د علامه جرجاني رحمه الله ددې لاندې تعريف نه راويستل شوی:
قال الجرجاني: اَلْخُلُقُ: عِبَارَةٌ عَنْ هَيْئَةٍ لِلنَّفْسِ رَاسِخَةٍ تَصْدُرُ عَنْهَا الأَفْعَالُ بِسُهُوْلَةٍ وَيُسْرٍ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ إِلَى فِكْرٍ وَرَوِيَّةٍ، فَإِنْ كَانَتِ الْهَيْئَةُ بِحَيْثُ تَصْدُرُ عَنْهَا الأَفْعَالُ الْجَمِيْلَةُ عَقْلاً وَشَرْعًا بِسُهُوْلَةٍ سُمِّيَتِ الْهَيْئَةُ "خُلُقًا حَسَنًا"، وَإِنْ كَانَ الصَّادِرُ مِنْهَا الأَفْعَالُ الْقَبِيْحَةُ سُمِّيَتِ الْهَيْئَةُ "خُلُقًا سَيِّئًا". التعريفات للجرجاني ص۱۰۱ باب الخاء. نضرة النعيم ج۵ ص۴۶۲۲ سوء الخلق.

(۳) سوء الخلق ج۱ ص۱۱ تعريف سوء الخلق.

# انسان د بَداخلاقۍ نه منع شوی

په قرآن کريم کې الله تعالی مسلمانانو ته حکم کړی چې په خوش اخلاقۍ به د يو بل سره خبرې کوي، او د هغه صفتونو نه به ځان ساتي چې په هغې کې د بَداخلاقۍ مظاهره کيږي، لکه د يو بل پورې به توقې نه کوي، د يو بل عيبونه به نه بيانوي، او يو بل ته به غلط نومونه نه اَخلي. الله ربّ العزت فرمايي: ﴿ وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا ﴾.(۱)

ترجمه: او خلقو ته ښه خبره کوئ.

(يعنی د خلقو سره په نرمۍ، رُوڼ تندي، او خوش اخلاقۍ باندې خبرې کوئ).

بل ځای فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّن قَوْمٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُونُوا۟ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّن نِّسَآءٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا۟ بِٱلْأَلْقَٰبِ بِئْسَ ٱلِٱسْمُ ٱلْفُسُوقُ بَعْدَ ٱلْإِيمَٰنِ وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾.(۲)

ترجمه: اې ايمان والو! يو قوم دې د بل قوم پورې توقې نه کوي، ممکنه ده چې هغوی د دوی نه بهتر وي، او نه ښځې دې د (نورو) ښځو پورې توقې کوي، ممکنه ده چې هغوی د دوی نه بهترې وي، او په يو بل باندې عيب مه لږوئ، او مه يو بل په بدو لقبونو رابلئ (يعنی يو بل ته خراب نومونه مه اخلئ)، د ايمان راوړو نه روستو (چا پورې) د فاسقۍ (او ګناه) نوم لږول بَد دي، او څوک چې توبه او نه باسي نو همدا خلق ظالمان دي.

همدارنګې مسلمانان يې د بدګمانۍ او جاسوسۍ نه هم منع کړي، الله تعالی فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱجْتَنِبُوا۟ كَثِيرًا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ ٱلظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا۟ ﴾.(۳)

ترجمه: اې مومنانو! تاسو ځانونه اوساتئ د ډيرو بدو ګمانونو نه، بيشکه بعضې ګمان ګناه وي، او جاسوسي مه کوئ (يعنی د چا پټ راز مه معلوموئ).

---

(۱) البقرة آية ۸۳.

(۲) الحجرات آية ۱۱.

(۳) الحجرات آية ۱۲.

اوس درته د بَداخلاقۍ سزاګانې او نقصانات ذکر کوم:

## بَداخلاقه انسان به جنت ته نه داخليږي

د ابوداؤد شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ وَلَا الْجَعْظَرِيُّ. (۱)

جنت ته به بَداخلاقه (سخت خُويه)، او مُتکبّر کس نه داخليږي.

راوي د حديث د "جَوَّاظ" معنی په بداخلاقۍ او سخت خُويۍ سره کړی. (۲)

## د ژبې د ضرر او بَداخلاقۍ په وجه د جهنم مستحق کيدل

امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په اَلْأَدَبُ الْمُفْرَد کې او نورو ډيرو مُحدِّثينو دا حديث رانقل کړی، حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې نبي عليه السلام ته وويلې شو:

اې د الله رسوله! بيشکه فلانۍ ښځه تول شپه نوافل کوي، (هميشه) د ورځې نفلي روژه نيسي، صدقې کوي، او نور ډير (د خير) کارونه کوي، خو ورسره ګاونډيانو ته په ژبه باندې ضرر هم رَسوي (بَداخلاقه ده، نو د دې څه حُکم دی؟)

رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته اوفرمايل:

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۸۰۱ قال الالباني: صحيح، شعب الايمان رقم الحديث ۷۸۲۳، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸۰(۱۳)، مسند احمد رقم الحديث ۱۷۹۹۳، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۲۲، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۸۶۱۸، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۵۹۳.

(۲) قَالَ: وَالْجَوَّاظُ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ. سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي حُسْنِ الْخُلُقِ رقم الحديث ۴۸۰۱.

ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په "مرقاة" کې د جَوَّاظ او جَعْظَرِي بهترينه تشريح کړې، (قَالَ) أَيِ: الرَّاوِي (الْجَوَّاظُ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ): بِكَسْرِ الْفَاءِ أَيْ: سَيِّئُ الْخُلُقِ. قَالَ تَعَالَى: {وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ} [آل عمران آية ۱۵۹] فَالْأَوْلَى أَنْ يُفَسَّرَ الْجَعْظَرِيُّ بِغَلِيظِ الْقَلْبِ، وَكَانَ غِلَظُ الْقَلْبِ إِيمَاءً إِلَى سُوءِ بَاطِنِهِ مِنَ الْأَحْوَالِ، وَالْفَظَاظَةُ إِلَى قُبْحِ ظَاهِرِهِ مِنَ الْأَفْعَالِ، وَقُدِّمَ الْجَوَّاظُ إِمَّا لِظُهُورِهِ، وَإِمَّا لِأَنَّ مَدَارَ الْحُكْمِ عَلَيْهِ. مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۱۷۶ في تشريح حديث ۵۰۷۹.

لَا خَيْرَ فِيهَا، هِيَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ.

په دې کې هيڅ خير نشته، دا جهنّمي ده.

صحابه کرامو رضي الله عنهم بيا عرض اوکړو: (يو بله) فلانۍ ښځه صرف فرضي مونځ کوي، او يو څو ټوټې د پَنير صدقه کوي، خو هيچا ته ضَرَر نه رسوي (نو ددې څه حُکم دی؟).

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل:

هِيَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. دا جنّتي ده. (۱)

# د بَد اخلاقۍ په وجه د جهنم ښکته کندې ته رسيدل

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي .... وَإِنَّهُ لَيَبْلُغُ بِسُوْءِ خُلُقِهِ أَسْفَلَ دَرَجَةٍ فِي جَهَنَّمَ. (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ فُلَانَةَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ، وَتَصُوْمُ النَّهَارَ، وتفعل، وتصدق، وَتُؤْذِيْ جِيْرَانَهَا بِلِسَانِهَا؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا خَيْرَ فِيهَا، هِيَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ. قَالُوْا: وَفُلَانَةُ تُصَلِّي الْمَكْتُوْبَةَ، وَتَصَدَّقُ بِأَثْوَارٍ، وَلَا تُؤْذِيْ أَحَدًا؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هِيَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. صحيح الأدب المفرد للإمام البخاري ص ۷۰ رقم الحديث ۱۱۹/۸۸ بَابُ لا يؤذي جاره

وفي رواية: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنَّ فُلَانَةَ يُذْكَرُ مِنْ كَثْرَةِ صَلَاتِهَا، وَصِيَامِهَا، وَصَدَقَتِهَا، غَيْرَ أَنَّهَا تُؤْذِيْ جِيْرَانَهَا بِلِسَانِهَا، قَالَ: «هِيَ فِي النَّارِ». قَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! فَإِنَّ فُلَانَةَ يُذْكَرُ مِنْ قِلَّةِ صِيَامِهَا، وَصَدَقَتِهَا، وَصَلَاتِهَا، وَإِنَّهَا تَصَدَّقُ بِالْأَثْوَارِ مِنَ الْأَقِطِ، وَلَا تُؤْذِيْ جِيْرَانَهَا بِلِسَانِهَا، قَالَ: «هِيَ فِي الْجَنَّةِ». مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۶۷۵، مشكوة المصابيح باب الشفقة والرحمة على الخلق الفصل الثالث رقم الحديث ۴۹۹۲(۳۶)، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۳۵۶۲ باب ماجاء في اذى الجار، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۸۶۹ الترهيب من اذى الجار وماجاء في تاكيد حقه.

(۲) عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ الْعَبْدَ لَيَبْلُغُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ عَظِيْمَ دَرَجَاتِ الْآخِرَةِ، وَشَرَفَ الْمَنَازِلِ وَإِنَّهُ لَضَعِيْفُ الْعِبَادَةِ، وَإِنَّهُ لَيَبْلُغُ بِسُوْءِ خُلُقِهِ أَسْفَلَ دَرَجَةٍ فِي جَهَنَّمَ. المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۵۲، مجمع الزوائد باب ماجاء في حسن الخلق رقم الحديث ۱۲۶۹۲، كنز العمال رقم الحديث ۵۱۲۹، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ۶۱، احياء علوم الدين ج۳ ص ۵۲، الترغيب والترهيب للمنذري رقم ۴۰۰۸ الترغيب في الخلق الحسن وفضله، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۴۷ سوء الخلق.

.... او بیشکه دا بنده د بَداخلاقۍ په وجه د جهنم ښکته مرتبې (کندې) ته رسي.

په نورو احاديثو کې هم دا مضمون ذکر شوی چې د بداخلاقۍ په وجه اکثره خلق جهنم ته داخليږي.(۱)

## بَداخلاقه انسان به د قيامت په ورځ نبي ﷺ ته ډير مبغوض او د دوی د مجلس نه ډير لرې وي

خوش اخلاقه انسان به د قيامت په ورځ نبي عليه السلام ته محبوب او مُقرّب وي. او بَداخلاقه کس به نبي عليه السلام ته ډير مَبغوض او د دوی د مجلس نه ډير لرې وي.

رسولُ الله ﷺ فرمايي:

.... وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ إِلَيَّ وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّيْ فِي الْآخِرَةِ أَسْوَؤُكُمْ أَخْلَاقًا. اَلْمُتَشَدِّقُوْنَ الْمُتَفَيْهِقُوْنَ الثَّرْثَارُوْنَ.(۲)

... بيشکه په آخرت کې به په تاسو کې ماته ډير مَبغوض او زما د مجلس نه ډير لرې خلق هغه وي چې د هغوی اخلاق خراب وي، بې احتياطه په تکلف سره اُوږدې خبرې کوي، تکبّر کوي، او په ناحقه ډيرې خبرې کوي.

(۱) وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ مَا أَكْثَرُ مَا يَلِجُ بِهِ النَّاسُ فِي الْجَنَّةِ؟ قَالَ: «تَقْوَى الله وَحُسْنُ الْخُلُقِ». فَقُلْتُ: مَا أَكْثَرُ مَا يَلِجُ بِهِ النَّاسُ فِي النَّارِ؟ قَالَ: «اَلْأَجْوَفَانِ: اَلْفَمُ وَالْفَرْجُ، وَسُوْءُ الْخُلُقِ» تنبيه الغافلين باحاديث سيد الانبياء والمرسلين ص ۲۶۱ بَابُ فَضْلِ إِطْعَامِ الطَّعَامِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ.

(۲) پوره حديث داسې دی، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ أَحَبَّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبَكُمْ مِنِّي فِي الْآخِرَةِ أَحَاسِنُكُمْ أَخْلَاقًا، وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ إِلَيَّ وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّي فِي الْآخِرَةِ أَسْوَؤُكُمْ أَخْلَاقًا الْمُتَشَدِّقُونَ الْمُتَفَيْهِقُونَ الثَّرْثَارُونَ». صحيح ابن حبان محققا ـ رقم الحديث رقم الحديث ۵۵۵۷ ذِكْرُ بِعَادِ مَنْ لَمْ يَسْتَعْمِلْ بِخُلُقِ الْمُصْطَفَى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهُ، صحيح الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۲۶۶۲(۲۲) الترغيب في الخلق الحسن وفضله والترهيب من الخلق السيء وذمه، وقال المنذري: رواه احمد و رواته رواة الصحيح. والطبراني. تنبيه الغافلين ج۱ ص ۴۶۲ باب فضل الطعام وحسن الخلق، سوء الخلق ج۱ ص ۱۲، مكارم الاخلاق لمن اراد الخلاق ج۱ ص ۱۵.

# په کامل مؤمن کې بُخل او بداخلاقي نه جمع کيږي

په کامِل مؤمن کې بُخل او بداَخلاقي نه جمع کيږي ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

خَصْلَتَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ : اَلْبُخْلُ ، وَسُوْءُ الْخُلُقِ . (۱)

دوه صفتونه په ( کامِل ) مُؤمن کې نه جمع کيږي : (يو) بُخل ، او (دويم) بَد اخلاقي .

( يعنى د کامِل مؤمن سره دا مناسب ندي چې دا دوه صفتونه په کې جمع شي ) . (۲)

په چا کې چې خوش اخلاق پيدا شي نو پوهه شه چې دا سړي کامِل مؤمن دی ، مُنافق ندی ، ځکه په منافق کې د خوش اخلاقي صفت نه پيدا کيږي . (۳)

بلکه امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ خو په احياء العلوم کې ترديږ پورې ليکلي چې : خوش اخلاقي اِيمان دی ، او بَداخلاقي مُنافقت دی . (۴)

---

(۱) الادب المفرد للبخاري بَابُ الشُّحِّ رقم الحديث ۲۸۲ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۶۰۸(۸) كتاب البر والصلة وغيرهما الترهيب من البخل والشح والترغيب في الجود والسخاء ، سنن الترمذي أَبْوَابُ البِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي البَخِيلِ رقم الحديث ۱۹۶۲ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۲۳۲۲ ، مشكوة المصابيح باب الإنفاق وكراهية الامساک الفصل الثاني رقم الحديث ۱۸۷۲(۱۴) ، شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۳۳۶ ، كنزالعمال رقم الحديث ۷۳۷۹ ، حلية الاولياء ج۲ ص ۲۵۸ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۵۳۸ ، ورقم الحديث ۱۲۳۳ .

(۲) (خَصْلَتَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ) أَيْ: كَامِلٍ (اَلْبُخْلُ وَسُوْءُ الْخُلُقِ) أَيْ: لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَجْتَمِعَا فِيْهِ ، أَوِ الْمُرَادُ بُلُوْغُ النِّهَايَةِ فِيْهِمَا بِحَيْثُ لَا يَنْفَكُّ عَنْهُمَا وَلَا يَنْفَكَّانِ عَنْهُ ، فَأَمَّا مَنْ فِيْهِ بَعْضُ هٰذَا أَوْ بَعْضُ ذٰلِكَ أَوْ يَنْفَكُّ عَنْهُ فِيْ بَعْضٍ فَإِنَّهُ بِمَعْزِلٍ عَنْ ذٰلِكَ . مرقاة المفاتيح ج۴ ص ۱۳۲۴ في تشريح حديث ۱۸۷۲ .

(۳) رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِيْ مُنَافِقٍ : حُسْنُ سَمْتٍ ، وَلَا فِقْهٌ فِي الدِّيْنِ .

دوه صفتونه په منافِق کې نه جمع کيږي : (يو) خوش اَخلاقي ، او (دويم) په دِين کې پوهه .

سنن الترمذي أَبْوَابُ العِلْمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الفِقْهِ عَلَى العِبَادَةِ رقم الحديث ۲۶۸۴ قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح كتاب العلم الفصل الثاني رقم الحديث ۲۱۹(۲۲) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۰۱۰ ، كنزالعمال رقم الحديث ۲۸۷۷۷ ، حسن السمت في الصمت ج۱ ص ۲۱ .

(۴) امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : إِنَّ حُسْنَ الْخُلُقِ هُوَ الإِيْمَانُ ، وَسُوْءَ الْخُلُقِ هُوَ النِّفَاقُ . بيشکه خوش اخلاقي اِيمان دی ، او بَداخلاقي منافقت دی . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۶۹ كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ القَلْبِ بيان عَلَامَاتِ حُسْنِ الْخُلُقِ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۰ سوء الخلق .

# بَد اخلاقي سپيره والې دی

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : حُسْنُ الْخُلُقِ نَمَاءٌ، وَسُوْءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ . (١)

خوش اخلاق د خېر زياتيدو ذريعه ده، او بداخلاقي سپيره والې دی.

## نبي عليه السلام د بَد اخلاقۍ نه د بچ كيدو دُعا غوښته

١ . نبي عليه السلام چې به په دُعا کې د کومو شيانو نه پناه غوښته په هغې کې بَداخلاقي هم وه. يوه دُعا دا هم ورنه نقل ده.

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الشِّقَاقِ، وَالنِّفَاقِ، وَسُوْءِ الْأَخْلَاقِ . (٢)

اې الله ! زه پناه غواړم په تا سره د حق د مخالفت نه ، منافقت، او بداخلاقۍ نه.

٢ . په احاديثو کې دا هم ذکر دي چې نبي عليه السلام به د مانځه د تکبيرِ تحريمه نه پس چې کومې دُعاګانې غوښتې په هغې کې به د خوش اخلاقۍ دُعا او بداخلاقۍ نه د بچ کيدو دُعا هم وه. (٣)

---

(١) پوره حديث داسې دی : عَنْ رَافِعِ بْنِ مَكِيْثٍ ـ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ ـ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: حُسْنُ الْخُلُقِ نَمَاءٌ، وَسُوْءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ، وَالْبِرُّ زِيَادَةٌ فِي الْعُمُرِ، وَالصَّدَقَةُ تَمْنَعُ مِيْتَةَ السُّوْءِ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ١٦٠٧٩ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ٤٠٤١ الترغيب في الخلق الحسن وفضله والترهيب من الخلق السيء وذمه ، مجمع الزوائد رقم الحديث ١٢٦٧١ .

(٢) سنن ابي داؤد بَابُ تَفْرِيعِ أَبْوَابِ الْوِتْرِ بَابٌ فِي الْإِسْتِعَاذَةِ رقم الحديث ١٥٤٦ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ٧٨٥٣ الاستعاذة من الشقاق والنفاق وسوء الاخلاق ، شرح السنة للبغوي ج٥ ص ١٦٩ ، مشكاة المصابيح باب الاستعاذة الفصل الثاني رقم الحديث ٢٤٦٨(١٢) ، كنزالعمال رقم الحديث ٣٦٩٠ .

(٣) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ . قَالَ: ﴿ إِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ . لَا شَرِيْكَ لَهُ وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴾ . الانعام آية ١٦٣ اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ وَأَحْسَنِ الْأَعْمَالِ لَا يَهْدِيْ لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ . وَقِنِيْ سَيِّئَ الْأَخْلَاقِ وَالْأَعْمَالِ لَا يَقِيْ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ . سنن الدار قطني كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ دُعَاءِ الْإِسْتِفْتَاحِ بَعْدَ التَّكْبِيْرِ رقم الحديث ١١٣٩ ، مسند احمد رقم الحديث ٨٠٣ ، مكارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ٣٥ . احياء علوم الدين ج٣ ص ٥١ ، الزواجر ج١ ص ١٣٣ ، سوء الخلق ج١ ص ٩٢ .

## بَد اخلاقي بدترينه بيماري ده

احنف بن قيس رَحِمَهُ اللَّهُ (خپلو ملګروته) وويل: آيا زه تاسو ته بَدترينه بيماري اُونښايم؟

هغوی ورته وويل: آو، نو ده ورته وويل: اَلْخُلُقُ الدَّنِيُّ وَاللِّسَانُ الْبَذِيُّ.

بې کاره اخلاق، او فحش ويونکې ژبه. (۱)

## بد اخلاقۍ سره نېک اعمال پوره فائده نه کوي

يحيٰی بن معاذ رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي:

سُوْءُ الْخُلُقِ سَيِّئَةٌ لَا تَنْفَعُ مَعَهَا كَثْرَةُ الْحَسَنَاتِ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ حَسَنَةٌ لَا تَضُرُّ مَعَهَا كَثْرَةُ السَّيِّئَاتِ. (۲)

بَد اخلاقي داسې ګناه ده چې ددې سره ډېر نېک اعمال فائده نه ورکوي، او خوش اخلاقي داسې نيکي ده چې ددې سره ډېر ګناهونه نقصان نه ورکوي.

## د بداخلاقه عابِد نه خوش اخلاقه فاجِر سره ملګرتيا ښه ده

۱. فُضَيل بن عِياض رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي:

لَأَنْ يَصْحَبَنِيْ فَاجِرٌ حَسَنُ الْخُلُقِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَصْحَبَنِيْ عَابِدٌ سَيِّئُ الْخُلُقِ. (۳)

که ما سره خوش اخلاقه فاجِر ملګرې شي دا ماته ډېر خوښ دی ددينه چې ما سره بَداخلاقه عابِد ملګرې شي.

---

(۱) وَقَالَ الْأَحْنَفُ بْنُ قَيْسٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَدْوَإِ الدَّاءِ؟ قَالُوْا بَلٰى. قَالَ: اَلْخُلُقُ الدَّنِيُّ وَاللِّسَانُ الْبَذِيُّ.
ادب الدنيا والدين للماوردي ص ۲۴۲ اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ فِيْ حُسْنِ الْخُلُقِ، نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۴ حسن الخلق.

(۲) احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلْبِ بَيَانُ فَضِيْلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَمَذَمَّةِ سُوْءِ الخلق ج ۳ ص ۵۲، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۰ سوء الخلق، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۴۷ علو الهمة في حسن الخلق.

(۳) احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ الْقَلْبِ بَيَانُ فَضِيْلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَمَذَمَّةِ سُوْءِ الخلق ج ۳ ص ۵۲، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۱۴۷ علو الهمة في حسن الخلق، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۰ سوء الخلق.

(يعنى د بَداخلاقه عابِد په نسبت د خوش اخلاقه فاجِر ملګرتيا مې ډيره خوښه ده).

۲ . د فُضَيل بن عِياض رَحِمَهُ اللّٰهُ نه دا هم نقل دي :

إِذَا خَالَطْتَ فَخَالِطْ حَسَنَ الْخُلُقِ ، فَإِنَّهُ لَا يَدْعُوْ إِلَّا إِلىٰ خَيْرٍ وَصَاحِبُهُ مِنْهُ فِيْ رَاحَةٍ . وَلَا تُخَالِطْ سَيِّءَ الْخُلُقِ ، فَإِنَّهُ لَا يَدْعُوْ إِلَّا إِلىٰ شَرٍّ ، وَصَاحِبُهُ مِنْهُ فِيْ عَنَاءٍ .(۱)

چې کله ته ملګرتيا کوې نو د خوش اخلاقه کس سره يې کوه ځکه دا صرف خير طرف ته رابلل کوي ، او دده ملګرى دده نه په آرام وي ، او د بداخلاقه سړي سره ملګرتيا مه کوه ځکه دا صرف شَر طرف ته رابلل کوي ، او دده ملګرى دده نه په مشقت (تکليف) کې وي.

## بد اخلاقه کس په خپله هم په عذاب کې وي ، او نور خلق هم ورنه په تکليف کې وي

۱. حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي : مَنْ سَاءَ خُلُقُهُ عَذَّبَ نَفْسَهُ .(۲)

د چا اخلاق چې خراب وي نو ده خپل ځان په خپله په عذاب کې اچولې وي.

۲ . د بعضې بُلغاؤ قول دى :

اَلْحَسَنُ الْخُلُقِ مَنْ نَفْسُهُ فِيْ رَاحَةٍ ، وَالنَّاسُ مِنْهُ فِيْ سَلَامَةٍ ، وَالسَّيِّئُ الْخُلُقِ النَّاسُ مِنْهُ فِيْ بَلَاءٍ ، وَهُوَ مِنْ نَفْسِهٖ فِيْ عَنَاءٍ .(۳)

خوش اخلاقه انسان په خپله په راحت (آرام) کې وي او خلق هم دده نه په سلامتيا کې وي ، او د بداخلاقه انسان نه نور خلق هم په تکليف کې وي ، او دا په خپله هم په مشقت کې وي.

---

(۱) حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۸ ص ۹٦ اَلْفُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ... ، مساويء الاخلاق للخرائطي ج۱ ص ۲۰ رقم ۳ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴٦۵۰ سوء الخلق .

(۲) احياء علوم الدين كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ القلب بَيَانُ فَضِيلَةِ حُسْنِ الْخُلُقِ وَمَذَمَّةِ سُوءِ الخلق ج ۳ ص ۵۲ .

(۳) ادب الدنيا والدين للماوردي ص ۲۴۲ اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ فِيْ حُسْنِ الْخُلُقِ ، الشوقيات ج۱ ص ۱۸۳ ، نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۵ حسن الخلق ، سوء الخلق ج۱ ص ۱۳ .

٣ . ابو حاتم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

اَلسَّيِّئُ الْخُلُقِ أَشْقَى النَّاسِ بِهِ نَفْسُهُ الَّتِيْ بَيْنَ جَنْبَيْهِ ، هِيَ مِنْهُ فِيْ بَلَاءٍ ، ثُمَّ زَوْجَتُهُ ، ثُمَّ وَلَدُهُ ، حَتَّى إِنَّهُ لَيَدْخُلُ بَيْتَهُ وَ إِنَّهُمْ لَفِيْ سُرُوْرٍ فَيَسْمَعُوْنَ صَوْتَهُ فَيَنْفِرُوْنَ عَنْهُ فَرَقًا مِنْهُ، وَحَتَّى إِنَّ دَابَّتَهُ لَتَحِيْدُ مِمَّا يَرْمِيْهَا بِالْحِجَارَةِ ، وَإِنَّ كَلْبَهُ لَيَرَاهُ فَيَنْزُوْ عَلَى الْجِدَارِ . وَحَتَّى إِنَّ قِطَّهُ لَيَفِرُّ مِنْهُ . (١)

بداخلاقه انسان ته د بداخلاقۍ په وجه ډير تکليف په خپله وي ، بيا دده ښځې ته ، بيا دده بچو ته ، تر دې چې دا کله کورته داخل شي او دده ښځې او بچي په خوشحالۍ کې وي خو چې دده آواز واوري نو د يَرې په وجه ټول اَخوا ديخوا اُوتختي ، او تر دې چې دده څاروي هم دده نه ځغلي ته شي چې هسې نه په کاڼي مې اُوولي ، او تر دې چې کله دده سپي دا اُوګوري نو هغه هم د يَرې نه په ديوال باندې اُوخيجي ، او تر دې چې دده پيشو هم دده نه تَختي .

٤ . حالانکه په احاديثو کې بهترين کس هغه چاته ويل شوی چې دده د شَر نه ټول خلق محفوظ وي ، د ترمذي شريف حديث دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

خَيْرُكُمْ مَنْ يُرْجٰى خَيْرُهُ وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ ، وَشَرُّكُمْ مَنْ لَا يُرْجٰى خَيْرُهُ وَلَا يُؤْمَنُ شَرُّهُ. (٢)

په تاسو کې بهترين کس هغه دی چې د هغه د خير اُميد کولی شي او د هغه د شر نه خلق په اَمن وي ، او په تاسو کې بَدتري کس هغه دی چې د هغه د خير اُميد نشي کولی او د هغه د شَر نه خلق محفوظ نه وي .

---

(١) مساوئ الأخلاق ومذمومها للخرائطي ج ١ ص ٢٢ رقم ٩ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ سُوْءِ الْخُلُقِ مِنَ الْكَرَاهَةِ . و اورده الذهبي في سير اعلام النبلاء ٩٩/٦ . لنضرة النعيم ج ١٠ ص ٣٦٤٩ ، مكارم الاخلاق لمن اراد الخلاق ج١ ص ١٦ .

(٢) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ عَلَى نَاسٍ جُلُوْسٍ فَقَالَ : أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِكُمْ مِنْ شَرِّكُمْ؟ قَالَ: فَسَكَتُوْا. فَقَالَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. فَقَالَ رَجُلٌ : بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللهِ أَخْبِرْنَا بِخَيْرِنَا مِنْ شَرِّنَا، قَالَ: خَيْرُكُمْ مَنْ يُرْجٰى خَيْرُهُ وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ ، وَشَرُّكُمْ مَنْ لَا يُرْجٰى خَيْرُهُ وَلَا يُؤْمَنُ شَرُّهُ. سنن الترمذي أَبْوَابُ الْفِتَنِ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ٢٢٦٣ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

# د بَد اخلاقۍ په وجه رزق تنګ وي

بعضې حُکماؤ ويلي چې د چا اخلاق خراب وي نو د هغه رِزق تنګ وي ، او چې د چا اخلاق ښه وي نو رِزق يې فراخه وي ، ځکه دده ملګري زيات وي او دُشمنان يې کم وي .(۱)

## د بداخلاقه سړي وعظ و نصيحت ته خلق غوږ نه نيسي اګر چې دا حق وايي

د چا اخلاق چې خراب وي نو خلق دده نه تختي ، دا اګر چې خلقو ته حَق بيانوي خو بيا هم څوک دده د عِلم نه اِستفاده نشي کولی ، ځکه د خلقو طبعيت داسې جوړ شوی چې د چا اخلاق خراب وي يا څوک دوی ته سپَک ګوري نو د هغه خبرې ته غوَږ نه نيسي .(۲)

---

(۱) قَالَ بَعْضُ الْحُكَمَاءِ : مَنْ سَاءَ خُلُقُهُ ضَاقَ رِزْقُهُ . وَعِلَّةُ هٰذَا الْقَوْلِ ظَاهِرَةٌ . ادب الدنيا والدين للماوردي ص ۲۴۲ اَلْفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الْخُلُقِ .

وَقَالَ بَعْضُ الْحُكَمَاءِ : مِنْ سَعَةِ الْأَخْلَاقِ كُنُوزُ الْأَرْزَاقِ . وَسَبَبُ ذٰلِكَ مَا ذَكَرْنَا مِنْ كَثْرَةِ الْأَصْفِيَاءِ الْمُسْعِدِيْنَ وَقِلَّةِ الْأَعْدَاءِ الْمُجْحِفِيْنَ . ادب الدنيا والدين للماوردي ص ۲۴۳ اَلْفَصْلُ الثَّانِي فِي حُسْنِ الْخُلُقِ .

(۲) من لم يتخلق بالخلق الحسن من المسلمين ينفر الناس من دعوته ، ولايستفيدونه من علمه وخبرته لأن من طبائع الناس أنهم لايقبلون ممن يستطيل عليهم أو يبدو منه احتقارهم ، واستصغارهم ، ولوكان ما يقوله حقا . قال الله عز وجل للنبي الكريم صلى الله عليه وسلم : ﴿ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ﴾ آل عمران آية ۱۵۹ .

وقال عز وجل : ﴿ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ . الشعراء آية ۲۱۵ .

وقال عزوجل ممتنا على عباده : ﴿ لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴾ . التوبة آية ۱۲۸ . وقال الله تعالى : ﴿ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ آل عمران آية ۱۶۴ .

وقال تعالى : ﴿ وَمَا أَرْسَلْنٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴾ الانبياء آية ۱۰۷ . وقال عز وجل : ﴿ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ ﴾ الفتح آية ۲۹ .

ولاشک انه يتعين على كل داعية أن يتخذه صلى الله عليه وسلم قدوة و اماما . لقوله تعالى : ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا ﴾ الاحزاب آية ۲۱ . الخلق الحسن في ضوء الكتاب والسنة ج۱ ص ۱۱ .

# د بَداخلاقۍ اَرکان

علامه ابن قیم رَحِمَهُ اللّٰهُ په تفصیل سره دا خبره ذکر کړې چې د ټولو بدو اخلاقو بُنیاد څلور اَرکان دي: ۱. جهل ۲. ظلم ۳. شهوت ۴. غضب

یا ددې هر بَد صفت په وجه نور ډېر بَدصفتونه پیدا کیږي. (۱)

## بعضې وخت د څنې اَسبابو په وجه خوش اخلاقي په بداخلاقۍ بدلیږي

بعضې وخت د څنې عارِضي اَسبابو په وجه د انسان ښه اخلاق په بداخلاقۍ باندې بدل شي، یعنې نرمي یې په سختۍ بدله شي، او رُوڼتَندي یې په تَرُوش تَندي بدل شي.

امام ماوردي رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې اته (۸) اَسباب په تفصیل سره ذکر کړي، خو زه به یې درته په خپلو الفاظو کې خلاصه رانقل کړم:

۱. **اقتدار (اختیارات)**: بعضې کس ته اِختیار او قدرت په لاس ورشي نو دده اخلاق خراب شي؛ دا ځکه چې دا سړی طبعًا رذیل وي، یا یې سِینه تَنګه وي، یعنې تَنګ نظرې وي.

---

(۱) وَمَنْشَأُ جَمِيعِ الْأَخْلَاقِ السَّافِلَةِ وَبِنَاؤُهَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَرْكَانٍ: اَلْجَهْلُ. وَالظُّلْمُ. وَالشَّهْوَةُ. وَالْغَضَبُ.
فَالْجَهْلُ: يُرِيهِ الْحَسَنَ فِي صُورَةِ الْقَبِيحِ. وَالْقَبِيحَ فِي صُورَةِ الْحَسَنِ. وَالْكَمَالَ نَقْصًا وَالنَّقْصَ كَمَالًا.
وَالظُّلْمُ: يَحْمِلُهُ عَلَى وَضْعِ الشَّيْءِ فِي غَيْرِ مَوْضِعِهِ. فَيَغْضَبُ فِي مَوْضِعِ الرِّضَا. وَيَرْضَى فِي مَوْضِعِ الْغَضَبِ. وَيَجْهَلُ فِي مَوْضِعِ الْأَنَاةِ. وَيَبْخَلُ فِي مَوْضِعِ الْبَذْلِ. وَيَبْذُلُ فِي مَوْضِعِ الْبُخْلِ. وَيُحْجِمُ فِي مَوْضِعِ الْإِقْدَامِ. وَيُقْدِمُ فِي مَوْضِعِ الْإِحْجَامِ. وَيَلِينُ فِي مَوْضِعِ الشِّدَّةِ. وَيَشْتَدُّ فِي مَوْضِعِ اللِّينِ. وَيَتَوَاضَعُ فِي مَوْضِعِ الْعِزَّةِ. وَيَتَكَبَّرُ فِي مَوْضِعِ التَّوَاضُعِ.
وَالشَّهْوَةُ: تَحْمِلُهُ عَلَى الْحِرْصِ وَالشُّحِّ وَالْبُخْلِ، وَعَدَمِ الْعِفَّةِ وَالنَّهْمَةِ وَالْجَشَعِ. وَالذُّلِّ وَالدَّنَاءَاتِ كُلِّهَا.
وَالْغَضَبُ: يَحْمِلُهُ عَلَى الْكِبْرِ وَالْحِقْدِ وَالْحَسَدِ. وَالْعُدْوَانِ وَالسَّفَهِ. وَيَتَرَكَّبُ مِنْ بَيْنِ كُلِّ خُلُقَيْنِ مِنْ هٰذِهِ الْأَخْلَاقِ أَخْلَاقٌ مَذْمُومَةٌ ...... فَالْأَخْلَاقُ الذَّمِيمَةُ يُوَلِّدُ بَعْضُهَا بَعْضًا. كَمَا أَنَّ الْأَخْلَاقَ الْحَمِيدَةَ يُوَلِّدُ بَعْضُهَا بَعْضًا.
مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين ج ۲ ص ۲۹۵ فصل الدين كله خلق

۲ . **د مرتبې نه مَعزول کيدل** : کله چې څوک د يوې عُهدې نه مَعزوله کړې شي نو کله د ډير خفګان او بې صَبرۍ په وجه بداخلاقي شروع کړي .

۳ . **مالداري** : د رزيل سړي د مالدارۍ په وجه هم اخلاق خرابيږي ؛ ځکه دا د مالدارۍ په وجه تکبّر کوي او نورو ته سپک ګوري .

٤ . **غريبي** : کوم کس چې يو دَم غريب شي نو بعضې وخت د خفګان يا طبعي رذالت په وجه هم د دهٔ اخلاق خرابيږي .

۵ . **سخت غمونه** : بعضې وخت د سخت غمونو په وجه هم د انسان اخلاق خرابيږي ؛ ځکه د سختو غمونو په وجه د انسان عقل ضائع کيږي ، زړه يې مشغوله کيږي ، او صبر نشي کولی نو بداخلاقي شروع کړي .

٦ . **سخت مرضونه** : بعضې وخت په انسان باندې سخت مرضونه راشي چې ددې په وجه دده په جِسم کې تغير راشي او په اخلاقو کې اِعتدال پاتې نشي نو بداخلاقي په کې پيدا شي .

۷ . **ډير بُوډا کيدل** : کله د ډير بُوډاوالي په وجه هم اخلاق خرابيږي ؛ ځکه لکه څرنګې چې په بُوډا والي سره د وجود په نورو اَندامونو کې کمزوري راځي نو همدغه شان يې په اخلاقو کې هم کمزوري راځي ، بيا صبر او تحمّل نشي کولی ، نو اخلاق يې خراب شي

۸ . **د مَخصوص کس سره بُغض کول** : د بَداخلاقۍ د پاره يو خاص سبب بُغض هم دی ؛ ځکه کله چې يو کس د بل چا سره بُغض وي نو د هغه سره بداخلاقي کوي . (۱)

---

(۱) امام ماوردي رحمه الله دا اَسباب داسې ذکر کړي : وَرُبَّمَا تَغَيَّرَ حُسْنُ الْخُلُقِ وَالْوِطَاءُ إِلَى الشَّرَاسَةِ وَالْبَذَاءِ لِأَسْبَابٍ عَارِضَةٍ، وَأُمُورٍ طَارِئَةٍ ، تَجْعَلُ اللِّينَ خُشُونَةً وَالْوِطَاءَ غِلْظَةً وَالطَّلَاقَةَ عُبُوسًا. فَمِنْ أَسْبَابِ ذٰلِكَ الْوِلَايَةُ الَّتِي تُحْدِثُ فِي الْأَخْلَاقِ تَغَيُّرًا، وَعَلَى الْخُلَطَاءِ تَنَكُّرًا، إِمَّا مِنْ لُؤْمِ طَبْعٍ، وَإِمَّا مِنْ ضِيقِ صَدْرٍ . وَمِنْهَا : الْعَزْلُ فَقَدْ يَسُوءُ بِهِ الْخُلُقُ وَيَضِيقُ بِهِ الصَّدْرُ إِمَّا لِشِدَّةِ أَسَفٍ أَوْ لِقِلَّةِ صَبْرٍ.... وَمِنْهَا : الْغِنَى فَقَدْ ←←←←←←←←

## نور اسباب :

علماؤ نور آسباب هم ذکر کړي :

۹ . طَبعي خباثت : د طبعي خباثت په وجه هم بداخلاقي پيدا کيږي ؛ ځکه چې کله تُخم خراب وي نو ضرور به ميوه هم خرابه وي .

۱۰ . په کور يا دِيني درسګاه کې صحيح تربيت نه کيدل .

۱۱ . د خرابو خلقو سره مجلس کول ۱۲ . ظلم

۱۳ . د شهوَت او نفسي خواهشاتو تابعداري کول .

۱۴ . بې ځايه غصه کول ۱۵ . جهالت

۱۶ . د ډير شُهرت په وجه هم په بعضې کس کې بداخلاقي پيدا کيږي .

۱۷ . د خپل نفس د عيبونو نه بې پرواه کيدل .

۱۸ . د آخرت نه غافل کيدل ۱۹ . د نورو نه طمع ساتل

۲۰ . د اِيمان کمزوري . چې دا د مذکوره ټولو آسبابو جَرړه ده ، ځکه چې د چا اِيمان

---

←←←← تَتَغَيَّرُ بِهِ أَخْلَاقُ اللَّئِيمِ بَطَرًا، وَتَسُوْءُ طَرَائِقُهُ أَشَرًا..... وَمِنْهَا: الْفَقْرُ فَقَدْ يَتَغَيَّرُ بِهِ الْخُلُقُ إِمَّا أَنَفَةً مِنْ ذُلِّ الْإِسْتِكَانَةِ أَوْ أَسَفًا عَلَى فَائِتِ الْغِنٰى . وَلِذٰلِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « كَادَ الْفَقْرُ أَنْ يَكُوْنَ كُفْرًا، وَكَادَ الْحَسَدُ أَنْ يَغْلِبَ الْقَدَرَ » ..... وَمِنْهَا الْهُمُوْمُ الَّتِيْ تُذْهِلُ اللُّبَّ، وَتَشْغَلُ الْقَلْبَ، فَلَا تَتَّسِعُ الْإِحْتِمَالَ وَلَا تَقْوٰى عَلٰى صَبْرٍ. وَقَدْ قِيْلَ: اَلْهَمُّ كَالسُّمِّ. وَقَالَ بَعْضُ الْأُدَبَاءِ: اَلْحُزْنُ كَالدَّاءِ الْمَخْزُوْنِ فِيْ فُؤَادِ الْمَحْزُوْنِ..... وَمِنْهَا الْأَمْرَاضُ الَّتِيْ يَتَغَيَّرُ بِهَا الطَّبْعُ مَا يَتَغَيَّرُ بِهَا الْجِسْمُ، فَلَا تَبْقَى الْأَخْلَاقُ عَلَى اعْتِدَالٍ وَلَا يَقْدِرُ مَعَهَا عَلَى احْتِمَالٍ..... وَمِنْهَا عُلُوُّ السِّنِّ وَحُدُوْثُ الْهَرَمِ لِتَأْثِيْرِهِ فِيْ آلَةِ الْجَسَدِ كَذٰلِكَ يَكُوْنُ تَأْثِيْرُهُ فِيْ أَخْلَاقِ النَّفْسِ، فَكَمَا يَضْعُفُ الْجَسَدُ عَنْ إِحْتِمَالِ مَا كَانَ يُطِيْقُهُ مِنْ أَثْقَالٍ فَكَذٰلِكَ تَعْجِزُ النَّفْسُ عَنْ أَثْقَالِ مَا كَانَتْ تَصْبِرُ عَلَيْهِ مِنْ مُخَالَفَةِ الْوِفَاقِ، وَمَضِيْقِ الشِّقَاقِ. وَكَذٰلِكَ مَا ضَاهَاهُ...... فَهٰذِهِ سَبْعَةُ أَسْبَابٍ أَحْدَثَتْ سُوْءَ خُلُقٍ كَانَ عَامًّا . وَهَا هُنَا سَبَبٌ خَاصٌّ يُحْدِثُ سُوْءَ خُلُقٍ خَاصٍّ وَهُوَ الْبُغْضُ الَّذِيْ تَنْفِرُ مِنْهُ النَّفْسُ فَتُحْدِثُ نُفُوْرًا عَلَى الْمُبْغَضِ، فَيَؤُوْلُ إِلٰى سُوْءِ خُلُقٍ يَخُصُّهُ دُوْنَ غَيْرِهِ . فَإِذَا كَانَ سُوْءُ الْخُلُقِ حَادِثًا بِسَبَبٍ كَانَ زَوَالُهُ مَقْرُوْنًا بِزَوَالِ ذٰلِكَ السَّبَبِ، ثُمَّ بِالضِّدِّ . ادب الدنيا والدين ص ۲۴۳ تا ص ۲۴٦ مع الاختصار .

کمزورې وي نو هغه هيڅ کله د ښه او خرابو په مينځ کې تميز نشي کولی. (۱)

## د بداخلاقۍ علامات

بعضې علماؤ د بَداخلاقه سړي ډير علامات ذکر کړي، يو څو په کې دادي :

۱ . بد اخلاقه انسان هميشه سختي کوي، هيڅا سره په نرمۍ باندې خبرې نه کوي. حالانکه په دې سره بې اِتفاقي پيدا کيږي، د شيطان اِتباع راځي، او داسې کس حق نه قبلوي.

۲ . بداخلاقه انسان هميشه تُرش تَندې نيولې وي، هيڅا سره په خوشحالۍ نه ملاويږي، بلکه نورو ته د غصې په حالت کې ګوري، او دا صفت په انسان کې د تکبّر او طَبعي رذالت په وجه پيدا کيږي.

۳ . بَداخلاقه انسان ډير زر غصه کيږي.

۴ . بداخلاقه انسان په رَټنه او توبيخ کې ډيره مبالغه کوي، او دا صفت اکثره په هغه چا کې راځي چې هغه سره څه نا څه اختيارات وي.

۵ . بَداخلاقه انسان ډير مُتکبِّر وي، د نورو خلقو پورې اِستهزاء کوي، او نورو ته غلط نومونه اخلي.

---

(۱) أسباب سوء الخلق : سوء الخلق كغيره من الأدواء؛ فله أسباب تجلبه، وبواعث تحركه. فمن ذلك ما يلي: . طبيعة الإنسان ... ۲ . سوء التربية المنزلية ... ۳. البيئة والمجتمع... ۴. الظلم ... ۵. الشهوة... ۶. الغضب ... ۷. الجهل ... ۸. الولاية... ۹. العزل ... ۱۰. الغنى ... ۱۱. الشهرة وبعد الصيت... ۱۲. كثرة الهموم ... ۱۳. الأمراض ... ۱۴. كبر السن ... ۱۵. ضيق العطن ... ۱۶. الغفلة عن عيوب النفس ... ۱۷. اليأس من إصلاح النفس ... ۱۸. دنو الهمة ... ۱۹. التقصير في أداء الحقوق ... ۲۰. قلة التناصح والتواصي بحسن الخلق ... ۲۱. التكبر عن قبول النصيحة الهادفة والنقد البناء ... ۲۲. قلة التفكر في أمر الآخرة ... ۲۳. مصاحبة الأشراء ... ۲۴. قلة الحياء ... ۲۵. الطمع والجشع ... ۲۶. وجماع ذلك كله ضعف الإيمان وذلك أن الإيمان جماع كل خير، فإذا ما ضعف أو فقد، فإن صاحبه لن يبالي بالمكرمات، ولن يأنف من النزول في حضيض الدركات. فهذه بعض الأسباب الحاملة على سوء الخلق. سوء الخلق لمحمد بن إبراهيم ج۱ ص ۶۲ مع الاختصار .

٦. په بداخلاقه انسان کې غِيبت، چُغل خوري، جاسوسي، چاپلوسي، بدګماني، د رازونو ښکاره کول، صِله رَحمي کټ کول، او نور ډير بد صفتونه وي.

٧. بداخلاقه انسان د چا غلطي هيڅ کله نه معاف کوي، او نه د چا عذر قبلوي، بلکه د بدل اخيستلو کوشش کوي.

٨. په بد اخلاقه انسان کې حسد، کِينه، او بې حيائي وي، د بې وقوفو خلقو سره ډير کيني، او په ښکاره باندې ګناهونه کوي.

٩. بد اخلاقه انسان بخيل وي، هيچا ته څه نه ورکوي، او که چاته څه ورکړي نو بيا ورباندې احسان زباتي.

١٠. بد اخلاقه انسان وعده خلافي کوي، دروغ وايي، بې ځايه سپَکې ټوقې کوي، د تکبّر په وجه په خپل نسب فخر کوي، بې اَدبي کوي او د مجلس د آدابو لحاظ نه ساتي.

١١. بداخلاقه انسان د والدينو سره بداخلاقي او بده معامله کوي، د بي بي سره بَد ژوند تيروي، د خپلو خادِمينو نوکرانو او ګاونډيانو سره بَداخلاقي کوي.(١)

١٢. بداخلاقه انسان نورو ته ډير تکليف رسوي، د خير کارونه کم کوي، دروغ وايي، فضول خبرې ډيرې کوي، عمَلي کار کم کوي، هيچا سره نيکي نه کوي، ډير بې صبره وي،

---

(١) محمد بن ابراهيم په خپل کتاب " سوء الخلق " کې د بداخلاقۍ شپږديرش (٣٦) علامات په پوره تفصيل سره ذکر کړي، زه ورنه صرف غټ عنوانات رانقل کوم:

مظاهر سوء الخلق : سوء الخلق يأخذ مظاهر عديدة، وصورًا شتى، فمن ذلك ما يلي: الغلظة والفظاظة. عبوس الوجه وتقطيب الجبين، سرعة الغضب، المبالغة في اللوم والتوبيخ، الكبر، السخرية بالآخرين، التنابز بالألقاب، الغيبة، النميمة، التجسس والتحسس، مقابلة الناس بوجهين، إساءة الظن، إفشاء الأسرار، المؤاخذة بالزلة، عدم قبول الأعذار، التهاجر والتدابر، الحسد، الحقد، مجاراة السفهاء، قلة الحياء، المجاهرة بالمعاصي عموما، البخل، المنة في العطية ونحوها، إخلاف الوعد، الكذب، كثرة المزاح والإسفاف فيه، الفخر بالنسب، قلة المراعاة لأدب المحادثة، قلة المراعاة لأدب المجالس، سوء التعامل مع الوالدين، سوء العشرة مع الزوجة، سوء الخلق من بعض الزوجات، سوء معاملة الخدم والعمال، سوء الأدب من بعض الخدم والعمال، التقصير في حقوق الإخوان، سوء الأدب مع الجيران. سوء الخلق لمحمد بن إبراهيم بن أحمد الحمد ج١ ص١٣ تا ص٦٢ مع الاختصار

شکريه نه اداء کوي ، په خپل تقسيم باندې راضي نه وي .

پاک دامني او مهرباني په کې کمه کوي ، په خلقو لعنت وايي ، او کنځل کوي ...(۱)

## د بد اخلاقۍ نقصانات

بداخلاقي د انسان د پاره زهرِ قاتل دی ، ددې په وجه انسان د هلاکت او رسوايۍ سره مخامخ کيږي ، د الله ﷻ د رحمت نه لرې کيږي ، شيطان ته نزدې کيږي ، د جهنم مستحق ګرځي . او د آخرت دائمي ژوند يې تباه کيږي .(۲)

د بداخلاقۍ په وجه انسان د الله ﷻ د غضب مستحق ګرځي .

هر کس د بداخلاقه سړي نه نفرت کوي ، دده هيڅوک مُخلِص دوست نه وي ، تر دې چې دده بي بي او دده بچي هم دده سره کيناستل نه خوښوي .

---

(۱) جَمَعَ بَعْضُهُمْ عَلَامَاتِ سُوْءِ الْخُلُقِ ، فَقَالَ : أَنْ يَكُوْنَ قَلِيْلَ الْحَيَاءِ كَثِيْرَ الْأَذٰى ، قَلِيْلَ الصَّلَاحِ ، كَذُوْبَ اللِّسَانِ ، كَثِيْرَ الْكَلَامِ ، قَلِيْلَ الْعَمَلِ ، كَثِيْرَ الزَّلَلِ ، كَثِيْرَ الْفُضُوْلِ ، لَا بَرًّا وَلَا وَصُوْلًا ، وَلَا وَقُوْرًا ، وَلَا صَبُوْرًا ، وَلَا شَكُوْرًا ، غَيْرَ رَاضٍ ، وَلَا حَلِيْمًا ، وَلَا رَفِيْقًا ، وَلَا عَفِيْفًا ، وَلَا شَفِيْقًا ، لَعَّانًا ، سَبَّابًا ، نَمَّامًا ، مُغْتَابًا ، عَجُوْلًا ، حَقُوْدًا بَخِيْلًا ، حَسُوْدًا ، غَضُوْبًا ، نَكِدًا ، يُحِبُّ فِيْ شَهَوَاتِهٖ وَيَبْغَضُ فِيْهَا ، فَهٰذَا هُوَ سُوْءُ الْخُلُقِ . نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۱ سوء الخلق .

(۲) وَالْأَخْلَاقُ السَّيِّئَةُ هِيَ السُّمُوْمُ الْقَاتِلَةُ وَالْمُهْلِكَاتُ الدَّامِغَةُ وَالْمَخَازِي الْفَاضِحَةُ وَالرَّذَائِلُ الْوَاضِحَةُ وَالْخَبَائِثُ الْمُبْعِدَةُ عَنْ جِوَارِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ الْمُنْخَرِطَةُ بِصَاحِبِهَا فِيْ سِلْكِ الشَّيَاطِيْنِ وَهِيَ الْأَبْوَابُ الْمَفْتُوْحَةُ إِلٰى نَارِ اللّٰهِ تَعَالٰى الْمُوْقَدَةِ الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ كَمَا أَنَّ الْأَخْلَاقَ الْجَمِيْلَةَ هِيَ الْأَبْوَابُ الْمَفْتُوْحَةُ مِنَ الْقَلْبِ إِلٰى نَعِيْمِ الْجِنَانِ وَجِوَارِ الرَّحْمٰنِ وَالْأَخْلَاقُ الْخَبِيْثَةُ أَمْرَاضُ الْقُلُوْبِ وَأَسْقَامُ النُّفُوْسِ إِلَّا أَنَّهٗ مَرَضٌ يُفَوِّتُ حَيَاةَ الْأَبَدِ ، وَأَيْنَ مِنْهُ الْمَرَضُ الَّذِيْ لَا يُفَوِّتُ إِلَّا حَيَاةَ الْجَسَدِ ، وَمَهْمَا اشْتَدَّتْ عِنَايَةُ الْأَطِبَّاءِ بِضَبْطِ قَوَانِيْنِ الْعِلَاجِ لِلْأَبْدَانِ وَلَيْسَ فِيْ مَرَضِهَا إِلَّا فَوْتُ الْحَيَاةِ الْفَانِيَةِ ،

فَالْعِنَايَةُ بضبط قوانين العلاج لأمراض القلوب وفي مرضها فوت حَيَاةٍ بَاقِيَةٍ أَوْلٰى ، وَهٰذَا النَّوْعُ مِنَ الطِّبِّ وَاجِبٌ تَعَلُّمُهٗ عَلٰى كُلِّ ذِيْ لُبٍّ إِذْ لَا يَخْلُوْ قَلْبٌ مِنَ الْقُلُوْبِ عَنْ أَسْقَامٍ لَوْ أُهْمِلَتْ تَرَاكَمَتْ وَتَرَادَفَتِ الْعِلَلُ وَتَظَاهَرَتْ فَيَحْتَاجُ الْعَبْدُ إِلٰى تَأَنُّقٍ فِيْ معرفة علمها وَأَسْبَابِهَا ثُمَّ إِلٰى تَشْمِيْرٍ فِيْ عِلَاجِهَا وَإِصْلَاحِهَا . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۹ كِتَابُ رِيَاضَةِ النَّفْسِ وَتَهْذِيْبِ الْأَخْلَاقِ وَمُعَالَجَةِ أَمْرَاضِ القلب .

د بداخلاقه سړي ژوند ډېر تنګ وي او مطمئن نه وي. (۱)

بد اخلاقه انسان د ټولو مخلوقاتو په نزد مَبغوض وي، هر کس دده بدي بیانوي.

د بداخلاقۍ په وجه په معاشره کې فساد پیدا کیږي؛ ځکه د کومو خرابو صفتونو په وجه چې په معاشره کې فساد پیدا کیږي هغه ټول بداخلاقۍ ته راجع دي.

بد اخلاقه انسان ته په خپله هم ضرر رسي او نورو خلقو ته هم دده نه ضرر رسي، د غه وجه ده چې ټول مخلوقات د بداخلاقه انسان نه نفرت کوي. (۲)

## د خپلو عېبونو پېژندلو طریقې

د خپلو عېبونو پېژندلو څلور طریقې دي:

**اول**: د داسې مُتّبِع شریعت کامِل پیر په مجلس کې کیناستل چې هغه عیبونه پېژني او علاج یې ورته معلوم وي.

**دويم**: دداسې دِیندار کس سره ملګرتیا کول چې هغه انسان ته د عېبونو خبرداري ورکوي.

**دريم**: د انسان دُشمنان چې دده په باره کې کوم عېبونه ذکر کوي د هغې نه ځان ساتل،

(۱) من مضار سوء الخلق: ۱. يبعد العبد عن الله عزّ وجلّ ولا ينال من الله إلّا السّخط والغضب ۲. سيّء الأخلاق يكرهه النّاس فلا يجد صديقاً يخلو إليه بوحشته ولا عزيزا يقدّره ويحترمه حتّى زوجته وأولاده لا يحبّون مجالسته. ۳. إنّه بالتّالي يلتقم من نفسه فيعيش نكدا مضطربا مذعورا. ۴. إذا فشا سوء الخلق في مجتمع أوبقه ومزّقه. نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۴۶۵۱ سوء الخلق.

(۲) مضار الأخلاق السيئة وعواقبها: صاحب الخلق السيئ مذكور بالذكر القبيح يمقته الله عزوجل ويبغضه الرسول صلي الله عليه وسلم ويبغضه الناس علي اختلاف مشاربهم..... صاحب الخلق السيئ هو من ملأ الله أذنيه من ذم الناس له شرا..... سوء الخلق سبب لفساد المجتمع وشقائه وتعاسته، وأعظم برهان علي هذا تلكم المشاكل والقلاقل من ظلم وعدوان وأكل حقوق عباد الله، كلها راجع إلي الأخلاق السيئة..... صاحب الخلق السيئ فوضوي في كل جانب حياته فهو يؤذي نفسه ويؤذي الآخرين فيجلب التعاسة لنفسه وللآخرين..... سوء الخلق يجلب لصاحبه الهم والغم والكد وضيق العيش. مكارم الأخلاق لمن أراد الخلاق ج۱ ص ۱۵. سوء الخلق ج۱ ص ۱۲.

نه خوښوم .

پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل : وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِعَمَّاتِهِمْ .

نور خلق هم دا د خپلو ترورانو ( د پلار خورانو ) د پاره نه خوښوي .

نبي علیه السلام ( په پنځم ځل ) ورته پوښتنه اوکړه :

أَفَتُحِبُّهُ لِخَالَتِكَ ؟ آیا ته دا زِنا د خپلې ترور ( د مور خور ) د پاره خوښوى ؟

هغه وویل : الله تعالی دې ما په تاسو باندې قربان کړي قسَم په الله چې زه دا د هغې د پاره نه خوښوم .

پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل : وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِخَالَاتِهِمْ .

نور خلق هم دا د خپلو ترورپانو ( د مور خورانو ) د پاره نه خوښوي .

بیا رسولُ الله صلی الله علیه وسلم دده په سِینه باندې خپل لاس مُبارک کیښود او دا دُعا یې اوکړه : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ ذَنْبَهُ وَطَهِّرْ قَلْبَهُ، وَحَصِّنْ فَرْجَهُ .

اې الله ! دده گناه معاف کړه ، دده زړه صفا کړه ، او دده شرمگاه ( د زِنا نه ) محفوظ کړه .

( راوي د حدیث وايي چې ) ددينه پس دې کس زِنا طرف ته هیڅ توجّه نه کوله ( یعنی د زِنا او نورو ناجائزو کارونو نه مکمل منع شو ) . (۱)

---

(۱) عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رضي الله عنه قَالَ: إِنَّ فَتًى شَابًّا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ائْذَنْ لِي بِالزِّنَا. فَأَقْبَلَ الْقَوْمُ عَلَيْهِ فَزَجَرُوْهُ وَقَالُوْا: مَهْ مَهْ. فَقَالَ: أُدْنُهْ. فَدَنَا مِنْهُ قَرِيْبًا . قَالَ: فَجَلَسَ قَالَ: أَتُحِبُّهُ لِأُمِّكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأُمَّهَاتِهِمْ . قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِابْنَتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِبَنَاتِهِمْ . قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِأُخْتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأَخَوَاتِهِمْ . قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِعَمَّتِكَ؟ . قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِعَمَّاتِهِمْ . قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِخَالَتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِخَالَاتِهِمْ . قَالَ: فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَيْهِ وَقَالَ: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ ذَنْبَهُ وَطَهِّرْ قَلْبَهُ، وَحَصِّنْ فَرْجَهُ. فَلَمْ يَكُنْ بَعْدُ ذٰلِكَ الْفَتَى يَلْتَفِتُ إِلَى شَيْءٍ. مسند احمد رقم الحديث ۲۲۲۱۱ حديث أبي أمامة الباهلي ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۶۷۹ ، و رقم الحديث ۷۷۵۹ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۳۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۱۴۸۵ ، مجمع الزوائد باب في ادب العالم رقم الحديث ۵۴۳ ، تفسير ابن كثير ج۵ ص ۷۲ ، ←←←

## ۳. نبي ﷺ هغه هلک په نرمۍ طريقې سره پوهه کړو چې پردی قجورې يې راشوکولې

حضرت رافع بن عَمرو غفّاري رضي الله عنه فرمايي چې کله زه هلک ووم نو ما به د انصارو تجورې راشوکولې ، نبي عليه السلام ته وويلې شو چې دلته يو هلک دی او زمونږ تجورې راشوکوي . (دوی او فرمايل چې وې نيسئ ، او ما له يې راولئ) .

پس زه نبي عليه السلام ته راوستې شوم ، دوی رانه پوښتنه اوکړه :

يَا غُلَامُ ! لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ ؟

اې هلکه ! ته (پردی) قجورې ولې راشوکوې ؟

ما ورته ووېل : ( زه اُوږې کيږم او ) خُورَم يې . نبي عليه السلام اوفرمايل :

فَلَا تَرْمِ النَّخْلَ ، وَكُلْ مِمَّا سَقَطَ فِيْ أَسْفَلِهَا .

د قجورو نه يې مه راشوکوه ( مُحکه دا پردی دي ) ، او کومې چې په خپله لاندې په زمکه رااُوغورځيږي نو هغه خوره .

بيا دوی زما په سَر باندې لاس رابښکل او دا دُعا يې راته اوکړه :

اَللّٰهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ . اې الله ! دده خېټه (ګېډه) مَړه کړې .(١)

سبحان الله ، که مونږ دا سې کس نيولې وی نو سخته سزا به مو ورکړې وی خو نبي عليه

←←←← احياء علوم الدين ج٢ ص٣٣۴ ، بحرالدموع ص١١٨ ، الخلق الحسن في ضوء الكتاب والسنة ص١٣٥ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ص٢٦٠ ، صلاح الامة في علو الهمة ج١٠ ص٢٠٩ ، سلم اخلاق النبوة ص۴٣ ، قال الالباني في " السلسلة الصحيحة ص ٣٧٠ " : سنده صحيح ، رجاله كلهم ثقات رجال الصحيح.

(١) عَنْ أَبِي رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ رضي الله عنه قَالَ : كُنْتُ وَأَنَا غُلَامٌ أَرْمِيْ نَخْلَ الْأَنْصَارِ . فَقِيْلَ لِلنَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ : إِنَّ هٰهُنَا غُلَامًا يَرْمِيْ نَخْلَنَا . فَأُتِيَ بِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : « يَا غُلَامُ ! لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ ؟ » : قُلْتُ : آكُلُ قَالَ : « فَلَا تَرْمِ النَّخْلَ ، وَكُلْ مِمَّا سَقَطَ فِيْ أَسْفَلِهَا » ثُمَّ مَسَحَ رَأْسِي وَقَالَ : « اَللّٰهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ » . مصنف ابن ابي شيبة كِتَابُ الْبُيُوعِ وَالْأَقْضِيَةِ مَنْ رَخَّصَ فِيْ أَكْلِ الثَّمَرَةِ إِذَا مَرَّ بِهَا رقم الحديث ٢٠٣٠٥ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٢٠٣۴٣ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۴٦٠ ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ٥٨٧٥ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٩٦٦٢ ، و رقم الحديث ١٩٦٦۴ .

السلام هغه په نرمۍ باندې پوهه کړو ، ددې ښه اَثر دا رااووت چې دا کس بیا آئنده د ټول عُمر د پاره د پرَدي څیز نه منع شو .

## ۴ . نبي ﷺ هغه کس په نرمۍ باندې پوهه کړو چې په مانځه کې يې د پرَنجي جواب ورکړو

په مسلم شريف او مشکوة شريف کې دا واقعه ذکر ده ، حضرت معاويه بن حَکم سُلمي رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل ما د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ کولو ، ناڅاپه په دې خلقو کې يو کس پرَنجې ( اَنکريشې ) اوکړو ، ما ورته ( په جواب کې د مانځه په مينځ کې ) '' يَرْحَمُكَ اللهُ '' ووېل ، خلقو ماته په تېزۍ سره نيغ نيغ رااوکتل .

ما ( د تعجّب په طور ) ووېل : په ما باندې دې زما مور اُوژاړي تاسو ولې ماته نيغ نيغ ګورئ ؟ خلقو ( زما د چُپ کولو د پاره ) په خپلو لاسونو باندې خپل وَرَنونه اُووهل .

کله چې ما دوی اُوليدل چې زه يې چُپ کولم نو زه چُپ ( خاموش ) شوم .

کله چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ( د جَمعې ) مونځ اوکړو زما مور او پلار دې په دوی باندې قربان شي نه يې اُووهلم ، او نه يې راته کنځل اوکړل ، بلکه صرف دومره يې راته ووېل :

إِنَّ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ ، إِنَّمَا هُوَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ .

بشکه په مانځه کې دُنياوي خبرې کول صحيح ندي ، مونځ خو د تسبيح ، تکبير او قرآن کريم لوستلو نوم دی . (۱)

---

(۱) عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ رضي الله عنه ، قَالَ : بَيْنَا أَنَا أُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ ، فَقُلْتُ : يَرْحَمُكَ اللهُ ، فَرَمَانِي الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ ، فَقُلْتُ : وَاثُكْلَ أُمِّيَاهْ ، مَا شَأْنُكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ ؟ فَجَعَلُوا يَضْرِبُونَ بِأَيْدِيهِمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ ، فَلَمَّا رَأَيْتُهُمْ يُصَمِّتُونَنِي لَكِنِّي سَكَتُّ ، فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَبِأَبِي هُوَ وَأُمِّي ، مَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ أَحْسَنَ تَعْلِيمًا مِنْهُ ، فَوَاللهِ مَا كَهَرَنِي وَلَا ضَرَبَنِي وَلَا شَتَمَنِي ، قَالَ : إِنَّ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ ، إِنَّمَا هُوَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ .

صحيح مسلم كِتَابُ الْمَسَاجِدِ وَمَوَاضِعِ الصَّلَاةِ بَابُ تَحْرِيمِ الْكَلَامِ فِي الصَّلَاةِ ، وَنَسْخِ مَا كَانَ مِنْ إِبَاحَتِهِ

حضرت مُعاويه بن حَکم سُلمي ﷺ چونکه نوي مسلمان شوي ؤ دا ورته معلومه نه وه چې کني په مانځه کې خبرې کول منسوخ شوي دي ، او ده خو په اول کې د نبي عليه السلام نه ځه اَحکامات زده کړي وو په هغې کې دا هم وو چې : کله ته پرَنجې (اَنکریشې) اوکړې نو اَلحَمدُلِلّه اُووايه ، او که بل کس پرَنجې اوکړي او هغه اَلحَمدُلِلّه اُووای نو ته يَرحَمُكَ اللهُ اُووايه. نو ځکه ده هم په مانځه کې د پرَنجې جواب ورکړو . (۱)

**فائده** : ددې ځلورو واقعاتو نه معلومه شوه چې کوم خلق به په اسلامي احکاماتو باندې خبر نه وو نو رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به هغوی په نرمۍ او ښې طريقې سره پوهه کول .

## يتيمانو سره د نبي عليه السلام نرمي

نبي عليه السلام به د يتيمانو سره هم ډيره نرمي کوله .

بشير بن عقربة جُهني ﷺ فرمايي چې د غزوه اُحد په ورځ زما ملاقات د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم سره اوشو ، ما ورنه پوښتنه اوکړه :

←←←← رقم الحديث ۳۳(۵۳۷) ، مشكاة المصابيح كتاب الصَّلَاة بَابُ مَا لَا يَجُوزُ مِنَ الْعَمَلِ فِي الصَّلَاةِ وَمَا يُبَاحُ مِنْهُ الْفَصْلُ الأول رقم الحديث ۹۷۸(۱) ، سنن ابي داؤد باب تشميط العاطس في الصلوة رقم الحديث ۹۳۰ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۳۷۶۲ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۷ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۳۵۲ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۷۲۶ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۲۰۱ .

(۱) عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ ﷺ ، قَالَ : لَمَّا قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِمْتُ أُمُورًا مِنْ أُمُورِ الإِسْلَامِ ، فَكَانَ فِيمَا عَلِمْتُ أَنْ قَالَ لِي : " إِذَا عَطَسْتَ فَاحْمَدِ اللهَ ، وَإِذَا عَطَسَ الْعَاطِسُ فَحَمِدَ اللهَ فَقُلْ : يَرْحَمُكَ اللهُ " ، قَالَ : فَبَيْنَمَا أَنَا قَائِمٌ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ ، إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ ، فَحَمِدَ اللهَ ، فَقُلْتُ : يَرْحَمُكَ اللهُ ، رَافِعًا بِهَا صَوْتِي ، فَرَمَانِي النَّاسُ بِأَبْصَارِهِمْ حَتَّى احْتَمَلَنِي ذَلِكَ ، فَقُلْتُ : مَا لَكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ بِأَعْيُنٍ شُزْرٍ ؟ قَالَ : فَسَبَّحُوا ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : « مَنِ الْمُتَكَلِّمُ ؟ » قِيلَ : هَذَا الأَعْرَابِيُّ ، فَدَعَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَقَالَ لِي : « إِنَّمَا الصَّلَاةُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ ، وَذِكْرِ اللهِ جَلَّ وَعَزَّ ، فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا فَلْيَكُنْ ذَلِكَ شَأْنَكَ » ، فَمَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَطُّ أَرْفَقَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . سنن ابي داؤد بَابُ تَشْمِيتِ الْعَاطِسِ فِي الصَّلَاةِ رقم الحديث ۹۳۱ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۳۵۰ باب ما لا يجوز من الكلام في الصلوة .

مَا فَعَلَ أَبِي؟ زما په پلار څه اُوشو ؟ (دده پلار په غزوه اُحد کې شريک وُ ).

نبي عليه السلام ا وفرمايل : اُسْتُشْهِدَ، رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ .

هغه شهيد شو ، په هغه دې د الله تعالى رَحمت وي.

حضرت بشير رضي الله عنه فرمايي چې زه په ژړا شوم ، رسول الله صلى الله عليه وسلم زه را اُونيوم ، په سَر يې راله لاس مبارک راښکود ، خپل ځان سره يې په سوَرلۍ بوتلم ، او راته وې فرمايل:

أَمَا تَرْضَى أَنْ أَكُونَ أَنَا أَبُوكَ وَتَكُونَ عَائِشَةُ أُمَّكَ ؟

آيا ته په دې راضي نه يې چې زه ستا پلار شم او عائشه ستا مور شي ؟ (۱)

همدارنګې نبي عليه السلام به نورو يتيمانو ته هم تسلي ورکوله او د نرمۍ به يې ورسره کوله . (۲)

## ماشومانو سره د نبي عليه السلام نرمي

۱ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دى: حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ( خپل نمَسي ) حسن بن علي رضي الله عنهما ښُکل کړو ( يعنى چَپَی يې ورنه واخيسته ) ، د دوی سره اَقرع بن حابس تميمي هم ناست وُ ، اَقرع (چې نبي عليه السلام د ماشوم په ښُکلولو اُوليد نو هغه) ووېل :

إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ أَحَدًا .

---

(۱) عَنْ بَشِيرِ بْنِ عَقْرَبَةَ الْجُهَنِيِّ رضي الله عنه قَالَ: لَقِيتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ فَقُلْتُ: مَا فَعَلَ أَبِي ؟ قَالَ: اُسْتُشْهِدَ، رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ . فَبَكَيْتُ، فَأَخَذَنِي فَمَسَحَ رَأْسِي، وَحَمَلَنِي مَعَهُ وَقَالَ : أَمَا تَرْضَى أَنْ أَكُونَ أَنَا أَبُوكَ وَتَكُونَ عَائِشَةُ أُمَّكَ ؟ . مجمع الزوائد كِتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْأَيْتَامِ وَالْأَرَامِلِ وَالْمَسَاكِينِ رقم الحديث ۱۳۵۱۷ ، صلاح الامة ج ۱۰ ص ۱۸۸ .

(۲) عَنِ ابْنِ بِشْرِ بْنِ عَقْرَبَةَ رضي الله عنه ، يَقُولُ : اُسْتُشْهِدَ أَبِي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ غَزَوَاتِهِ، فَمَرَّ بِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي، فَقَالَ لِي: اُسْكُتْ أَمَا تَرْضَى أَنْ أَكُونَ أَنَا أَبُوكَ وَعَائِشَةُ أُمَّكَ ؟ قُلْتُ : بَلَى، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللهِ . شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۵۲۳ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۱۰ ص ۱۸۸ علو الهمة في الرحمة .

بیشکه زما لس (۱۰) بچي دي، ما په دوی کې یو هم ندې ښُکل کړی.
رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه طرف ته اُوکتل، بیا یې اوفرمایل:

مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ. څوک چې په بل رَحم نه کوي نو په ده به هم رَحم نشي کولی. (۱)

۲. نبي علیه السلام د ماشومانو سره ډیره مِینه وه، او نرمي به یې ورسره کوله:

په ترمذي شريف او مشکوة شريف کې دا واقعه ذکر ده: حضرت بُرَیده رضي الله عنه فرمایي چې (یوه ورځ) رسولُ الله صلى الله علیه وسلم مونږ ته خطبه ویله، ناڅاپه حضرت حسن او حضرت حُسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا راغلل، دواړو د سُور رَنګ قمیصونه اغوستي وو، دوی دواړه راروان وو خو (د کم عُمرۍ په وجه) په زمکه به راغورځیدل او بیا به پاڅیدل، رسولُ الله صلى الله علیه وسلم (چې دوی اُولیدل نو) د ممبر نه رابښکته شو، دواړه یې راواخیستل، خپلې مخې ته یې (په غېږ کې) کینول، بیا یې اُوفرمایل، الله تعالى رښتیا فرمایلي دي:

﴿ إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ ﴾.

ترجمه: بیشکه ستاسو مالونه او ستاسو اَولاد یو اَزمیښت دی.

ما چې دا دوه ماشومان اوکتل چې دوی راروان دي، غورځیدو او پاڅیدو سره راځي (صحیح نشي راتللی) نو زما صبر او نه شو تردې چې ما خپله (د وَعظ) خبره مُنقطِع کړه، او دوی مې په غېږ کې راواخیستل، (بیا نبي علیه السلام وعظ شروع کړو). (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَبَّلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، وَعِنْدَهُ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ التَّمِيمِيُّ جَالِسًا. فَقَالَ الْأَقْرَعُ: إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ أَحَدًا. فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ: مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ. صحيح البخاري كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ رَحْمَةِ الْوَلَدِ وَتَقْبِيلِهِ وَمُعَانَقَتِهِ رقم الحديث ۵۹۹۷، صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابُ رَحْمَتِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصِّبْيَانَ وَالْعِيَالَ وَتَوَاضُعِهِ وَفَضْلِ ذَلِكَ رقم الحديث ۵۶(۲۳۱۸)، سنن ابي داؤد بابٌ في قُبلة الرجل ولده رقم الحديث ۵۲۱۸، سنن الترمذي باب ماجاء في رحمة الولد رقم الحديث ۱۹۱۱.

(۲) عَنْ أَبِي بُرَيْدَةَ رضي الله عنه، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُنَا إِذْ جَاءَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَلَيْهِمَا قَمِيصَانِ أَحْمَرَانِ يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ، فَنَزَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمِنْبَرِ ←←←←←

٣ . امام بخاري رحمه الله په " الأدب المفرد " کې دا حديث رانقل کړی چې يو کس نبي عليه السلام ته راغی او د هغه سره ماشوم هم وُ ، هغه سړي دا ماشوم خپل ځان ته رانزدې کول ، نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

أَتَرْحَمُهُ؟ آيا ته په ده باندې رَحم (مهرباني) کوې؟

هغه ورته ووېل : آوُ . پېغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل :

فَاللهُ أَرْحَمُ بِكَ مِنْكَ بِهِ، وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ .

ته چې په ده باندې څومره رَحم کوې ددېنه زيات الله تعالی په تا باندې رَحم کوي ، ځکه هغه أرْحَمُ الرّاحمين ذات دی . (١)

## لورانو سره د احسان او نرمۍ کولو په وجه د جنت مستحق کېدل

په دې ځای کې ضِمنًا دا خبره ذکر کوم چې څوک د خپلو لورانو سره اِحسان او نرمي کوي نو ددې په وجه دا کس د جنت مستحق ګرځي :

١ . د مسلم شريف حديث دی ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ماته يوه مِسکينه زَنانه راغله ، دوه لوراني ورسره وی ، ما ورته د خوراک د پاره درې (٣) قجورې

←←← فَحَمَلَهُمَا وَوَضَعَهُمَا بَيْنَ يَدَيْهِ. ثُمَّ قَالَ: صَدَقَ اللهُ { إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ } [التغابن آية ١٥] . نَظَرْتُ إِلَى هٰذَيْنِ الصَّبِيَّيْنِ يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ فَلَمْ أَصْبِرْ حَتَّى قَطَعْتُ حَدِيْثِيْ وَرَفَعْتُهُمَا . سنن الترمذي أَبْوَابُ الْمَنَاقِبِ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ٣٧٧٤ قال الالباني : صحيح . سنن النسائي كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ نُزُولُ الْإِمَامِ عَنِ الْمِنْبَرِ قَبْلَ فَرَاغِهِ مِنَ الْخُطْبَةِ رقم الحديث ١٥٨٥ ، مشكوة المصابيح بَابُ مَنَاقِبِ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ٦١٦٨(٣٤) ، مسند احمد رقم الحديث ٢٢٩٩٥ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ٣٢١٨٩ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٦٠٣٩ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ٥٨١٩ ، شعب الايمان رقم الحديث ١٠٥٠٣ ، كنز العمال رقم الحديث ٣٧٦٨٩ .

(١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ ، وَمَعَهُ صَبِيٌّ، فَجَعَلَ يَضُمُّهُ إِلَيْهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَرْحَمُهُ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَاللهُ أَرْحَمُ بِكَ مِنْكَ بِهِ، وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ . الادب المفرد مخرجا بَابُ رَحْمَةِ الْعِيَالِ رقم الحديث ٣٧٧ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ٧٦٦٤ .

ورکړي، دې هرې يوې لورته يوه يوه قجوره ورکړه، او يوه يې خپلې خُلې ته د خوراک د پاره اوچته کړه، دې لورانو ورنه دا قجوره هم اوغوښته، دې چې د کومې قجورې د خوړلو اراده کړې وه دا يې هم په مينځ دوه ټوټې کړه او دوی ته يې ورکړه.

(حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې) ددې زَنانه دې کار زه په تعجّب کې واچولم، نو ما رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ته ددې تذکره اوکړه، دوی اوفرمايل:

إِنَّ اللهَ قَدْ أَوْجَبَ لَهَا بِهَا الْجَنَّةَ. ـ أَوْ ـ أَعْتَقَهَا بِهَا مِنَ النَّارِ.

بيشکه الله تعالی دې زَنانه ته په دې کار باندې جنت واجب کړو.

يا نبي عليه السلام دا اُوفرمايل چې: الله تعالی دا زَنانه په دې کار سره د جهنم د اُور نه آزاده کړه. (۱)

۲. په ځنې احاديثو کې ذکر دي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هغې فقيرې زَنانه ته يوه قجوره ورکړه، هغې دا قجوره په خپلو لورانو باندې تقسيم کړه، او په خپله يې او نه خوړه.

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې کله ما نبي عليه السلام ته ددې خبره اوکړه نو هغوی اوفرمايل:

مَنِ ابْتُلِيَ مِنَ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ، فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِنَ النَّارِ.

څوک چې په لورانو باندې مُبتلاء شو (يعنې صرف لوراني يې وي) او دا د دوی سره اِحسان اوکړي (يعنې ښه تربيت يې اوکړي اودبُلوغ نه پس يې نيک کس ته په نکاح ورکړي) نو د قيامت په ورځ به دا لوراني دده د پاره د جهنم نه حِجاب (او پَرده) وي. (يعنې ددې په

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: جَاءَتْنِي مِسْكِينَةٌ تَحْمِلُ ابْنَتَيْنِ لَهَا، فَأَطْعَمْتُهَا ثَلَاثَ تَمَرَاتٍ، فَأَعْطَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا تَمْرَةً، وَرَفَعَتْ إِلَى فِيهَا تَمْرَةً لِتَأْكُلَهَا، فَاسْتَطْعَمَتْهَا ابْنَتَاهَا، فَشَقَّتِ التَّمْرَةَ الَّتِي كَانَتْ تُرِيدُ أَنْ تَأْكُلَهَا بَيْنَهُمَا، فَأَعْجَبَنِي شَأْنُهَا، فَذَكَرْتُ الَّذِي صَنَعَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «إِنَّ اللهَ قَدْ أَوْجَبَ لَهَا بِهَا الْجَنَّةَ، أَوْ أَعْتَقَهَا بِهَا مِنَ النَّارِ». صحيح مسلم كتاب البِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ فَضْلِ الْإِحْسَانِ إِلَى الْبَنَاتِ رقم الحديث ۱۴۸(۲۶۳۰)، مسند احمد رقم الحديث ۲۴۶۱۱، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۴۸، شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۵۰۸، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱۶، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۱۹۶۹(۱۹).

وجه به د جهنم نه محفوظ وي). (۱)

**د لورانو د تخصيص وجه** : په مذکوره حديث کې چې د لورانو تذکره شوی نو ددې د تَخصيص وجه داده چې دا د هلکانو په نسبت اِحسان ته ډيرې مُحتاجې وي.

نو څوک چې د لورانو سره نرمي او اِحسان اوکړي " صحيح تربيت يې اوکړي، تر دې چې د بلوغ نه پس يې نېک سړي ته په نکاح ورکړي " نو ددې په وجه دا انسان د جنت مستحق کيږي، او د جهنم نه محفوظ کيږي. (۲)

# غلامانو سره د نرمۍ حُکم

ا. په مسلم شريف او نورو ډيرو د احاديثو په کتابونو کې دا واقعه ذکر ده: حضرت ابومسعود بدري ﷺ فرمايي چې ما خپل غلام په کوړه باندې وهلو، ما د شا طرف نه د يو

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: جَاءَتْنِي امْرَأَةٌ، وَمَعَهَا ابْنَتَانِ لَهَا. فَسَأَلَتْنِي فَلَمْ تَجِدْ عِنْدِي شَيْئًا غَيْرَ تَمْرَةٍ وَاحِدَةٍ، فَأَعْطَيْتُهَا إِيَّاهَا. فَأَخَذَتْهَا فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا. وَلَمْ تَأْكُلْ مِنْهَا شَيْئًا. ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ وَابْنَتَاهَا. فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ حَدِيثَهَا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ ابْتُلِيَ مِنَ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ، فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِّنَ النَّارِ. صحيح مسلم كِتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ فَضْلِ الْإِحْسَانِ إِلَى الْبَنَاتِ رقم الحديث ۱۴۷(۲۶۲۹)، صحيح البخاري كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ رَحْمَةِ الْوَلَدِ وَتَقْبِيلِهِ وَمُعَانَقَتِهِ رقم الحديث ۵۹۹۵، و رقم الحديث ۱۴۱۸ كِتَابُ الزَّكَاةِ بَابُ: اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ وَالْقَلِيلِ مِنَ الصَّدَقَةِ، الادب المفرد رقم الحديث ۱۳۲، سنن الترمذي رقم الحديث ۱۹۱۵، شعب الايمان رقم الحديث ۸۳۰۸، شرح السنة رقم الحديث ۱۶۸۱، مشكاة المصابيح باب الشفقة والرحمة على الخلق الفصل الاول رقم الحديث ۴۹۴۹(۳).

(۲) (فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ) قِيلَ: بِتَزْوِيجِهِنَّ الْأَكْفَاءَ. وَالْأَحْسَنُ أَنْ يَعُمَّ الْإِحْسَانُ (كُنَّ لَهُ) أَيْ: لِلْمُبْتَلَى (سِتْرًا) بِكَسْرِ أَوَّلِهِ أَيْ: حِجَابًا دَافِعًا (مِنَ النَّارِ) أَيْ: دُخُولَهَا. وَلَعَلَّ وَجْهَ تَخْصِيصِهِنَّ أَنَّ احْتِيَاجَهُنَّ إِلَى الْإِحْسَانِ يَكُونُ أَكْثَرَ مِنَ الصِّبْيَانِ. فَمَنْ سَتَرَهُنَّ بِالْإِحْسَانِ عَنْ لُحُوقِ الْعَارِ يُجَازَى بِالسَّتْرِ عَنِ النَّارِ جَزَاءً وِفَاقًا. وَاخْتُلِفَ فِي الْمُرَادِ بِالْابْتِلَاءِ هَلْ هُوَ نَفْسُ وُجُودِهِنَّ، أَوِ الْابْتِلَاءُ بِمَا صَدَرَ مِنْهُنَّ، أَوِ الْإِنْفَاقُ عَلَيْهِنَّ؟ وَكَذَا اخْتُلِفَ فِي الْمُرَادِ بِالْإِحْسَانِ هَلْ يَقْتَصِرُ عَلَى قَدْرِ الْوَاجِبِ، أَوْ مَا زَادَ عَلَيْهِ؟ وَالظَّاهِرُ الثَّانِي. ثُمَّ شَرْطُ الْإِحْسَانِ أَنْ يُوَافِقَ الشَّرْعَ. وَالظَّاهِرُ أَنَّ الثَّوَابَ الْمَذْكُورَ إِنَّمَا يَحْصُلُ لِفَاعِلِهِ إِذَا اسْتَمَرَّ عَلَيْهِ إِلَى أَنْ يَحْصُلَ اسْتِغْنَاؤُهُنَّ عَنْهُ بِزَوْجٍ أَوْ غَيْرِهِ. مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۱۰۰ في تشريح حديث ۴۹۴۹.

کس آواز واوريد چې دا يې فرمايل :

اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ . اې ابو مسعود ! پوهه شه .

ابو مسعود رضي الله عنه فرمايي چې زه د ډيرې غصې نه په دې آواز پوهه نه شوم ، هر کله چې هغه کس ماته رانزدې شو نو هغه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُ چې ماته يې اوفرمايل :

اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ ، اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ .

اې ابومسعود ! پوهه شه ، اې ابومسعود ! پوهه شه .

ما ( د ډير هيبت په وجه ) کوړه د لاس نه اُوغورځوله .

نبي عليه السلام اوفرمايل :

اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ ، أَنَّ اللهَ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلٰى هٰذَا الْغُلَامِ .

اې ابومسعود ! پوهه شه چې ته څومره په دې غلام باندې قادِر يې الله تعالى په تا باندې د دينه زيات قادِر دی .

ما ورته وويل : زه به د دينه پس هيڅ کله غلام اُو نه وَهم . (۱)

۴ . په يو روايت کې ورسره دا هم شته :

... ابو مسعود رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي عليه السلام ته اوفرمايل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللهِ .

اې د الله رسوله ! دا غلام د الله جل جلاله د رَضا د پاره آزاد دی .

---

(۱) قَالَ أَبُوْ مَسْعُوْدٍ الْبَدْرِيُّ رضي الله عنه : كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِيْ بِالسَّوْطِ، فَسَمِعْتُ صَوْتًا مِنْ خَلْفِي، « اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ »، فَلَمْ أَفْهَمِ الصَّوْتَ مِنَ الْغَضَبِ، قَالَ: فَلَمَّا دَنَا مِنِّيْ إِذَا هُوَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا هُوَ يَقُوْلُ: « اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ، اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ » . قَالَ: فَأَلْقَيْتُ السَّوْطَ مِنْ يَدِيْ، فَقَالَ: « اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُوْدٍ . أَنَّ اللهَ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلٰى هٰذَا الْغُلَامِ » . قَالَ: فَقُلْتُ: لَا أَضْرِبُ مَمْلُوْكًا بَعْدَهُ أَبَدًا . صحيح مسلم كِتَابُ الْأَيْمَانِ بَابُ صُحْبَةِ الْمَمَالِيكِ، وَكَفَّارَةِ مَنْ لَطَمَ عَبْدَهُ رقم الحديث ۳۴(۱۶۵۹) ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْخَدَمِ وَشَتْمِهِمْ رقم الحديث ۱۹۴۸ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۰۸۷ ، و رقم الحديث ۲۲۳۵۴ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۶۸۳ ، و رقم الحديث ۶۸۴ ، شعب الايمان رقم الحديث ۸۲۰۷ ، شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۳۴۷ .

نبي علیه السلام او فرمایل:

" أَمَا لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ " . أَوْ " لَمَسَّتْكَ النَّارُ "

که چیرته تا دا غلام نه وې آزاد کړی نو د جهنم اور به سوَزولې وی.

او یا یې داسې او فرمایل: چې د جهنم اور به دَر رسیدلې وُ. (۱)

امام نووي رحمه الله لیکلي دي چې په دې حدیث کې مسلمانانو ته ترغیب دی چې د خپلو غلاماتو (او نوکرانو) سره نرمي اوکړي.

بل په دې حدیث کې مسلمانانو ته نصحیت او تَنبیه ده په عَفوې او غصې برداشت کولو باندې. (۲)

نبي علیه السلام به هم خپل خادِم او خپله بي بي نه وهله. (۳)

## یو اَعرابي سره د شفقت او نرمۍ معامله

حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ډیر مهربانه وُ ، که څوک به ورته راغی نو (که په دې وخت کې به ورسره څه نه وو نو) وعده به یې ورسره کوله، او که

---

(۱) عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه . قَالَ: كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي . فَسَمِعْتُ مِنْ خَلْفِي صَوْتًا: « اِعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ، لَلّٰهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ » . فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللهِ . فَقَالَ: « أَمَا لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ » . أَوْ « لَمَسَّتْكَ النَّارُ » . صحيح مسلم كِتَابُ الْأَيْمَانِ بَابُ صُحْبَةِ الْمَمَالِيكِ، وَكَفَّارَةِ مَنْ لَطَمَ عَبْدَهُ رقم الحديث ۳۵ (۱۶۵۹) ، الادب المفرد مخرجا ۱۷۱ باب ادب الخادم ، سنن ابي داؤد بابٌ في حق المملوک رقم الحديث ۵۱۵۹ ، مشكاة المصابيح باب النفقات وحقّ المملوک رقم الحديث ۲۳۵۳(۱۷) ، شعب الايمان رقم الحديث ۸۲۰۸.

(۲) فِيهِ الْحَثُّ عَلَى الرِّفْقِ بِالْمَمْلُوكِ ، وَالْوَعْظُ وَالتَّنْبِيهُ عَلَى اسْتِعْمَالِ الْعَفْوِ وَكَظْمِ الْغَيْظِ ، وَالْحُكْمُ كَمَا يَحْكُمُ اللهُ عَلَى عِبَادِهِ . شرح النووي على مسلم (المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج) ج ۱۱ ص ۱۳۰ . طبع دار إحياء التراث العربي بيروت

(۳) مَا ضَرَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ بِيَدِهِ، وَلَا امْرَأَةً ، وَلَا خَادِمًا، إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِي سَبِيلِ اللهِ ..... صحيح مسلم كتاب الفضائل بَابُ مُبَاعَدَتِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْآثَامِ وَاخْتِيَارِهِ مِنَ الْمُبَاحِ، أَسْهَلَهُ وَانْتِقَامِهِ لِلّٰهِ عِنْدَ انْتِهَاكِ حُرُمَاتِهِ رقم الحديث ۷۹ (۲۳۲۸) ، المعجم الاوسط رقم ال۵۴۲۸ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الاول رقم الحديث ۵۸۱۸(۱۸) ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۱۷۹۴۲.

ځه به ورسره وو نو فِي الحال به يې هغه ته ورکول.

يو ځل د جَمعې مانځه د پاره اقامت اوشو په دې وخت کې يو اَعرابي راغی، نبي عليه السلام يې د کپړو نه اُونيولو او ورته وې ويل:

زما ځه معمولي حاجت پاتې دی (که روستو يې کړم نو) ويرېږم چې هغه رانه هير شي.

پس نبي عليه السلام د هغه سره پاځيد، تر دې چې هغه د خپل حاجت نه فارغ شو، بيا نبي عليه السلام مانځه طرف ته متوَجّه شو، او مونځ يې اوکړو. (۱)

## ځانته د ضرورت باوجود بل کس ته څادر ورکول

په بخاري شريف کې دا واقعه ذکر ده، حضرت سهل بن سعد ﷺ فرمايي چې يوې زَنانه نبي عليه السلام ته بُرْدَة (څادر) راوړو.

((حضرت سهل ﷺ د موجود خلقو نه پوښتنه اوکړه: آيا تاسو بُرْدَة پيژنئ؟ خلقو ورته وويل: دا پلن څادر ته وايي، ده ورته وويل: بُردة همدې پلن څادر ته وايي خو چې غاړې يې اُودَل شوي وي)).

دې زَنانه وويل: يَارَسُوْلَ اللهِ! أَكْسُوْكَ هٰذِهٖ.

اې د الله رسوله! زه تاسو ته دا څادر د اغوستلو د پاره درکوم.

فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا إِلَيْهَا. فَلَبِسَهَا.

نبي ﷺ د هغې نه دا څادر واخيست؛ ځکه ضرورت يې ورته وُ، او وايې غوست.

په صحابه کرامو کې يو کس د نبي عليه السلام په بدن مبارک باندې دا څادر اُوليد، نو ورته وې ويل:

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِيْمًا، وَكَانَ لَا يَأْتِيْهِ أَحَدٌ إِلَّا وَعَدَهُ، وَأَنْجَزَ لَهُ إِنْ كَانَ عِنْدَهُ، وَأُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ، وَجَاءَهُ أَعْرَابِيٌّ فَأَخَذَ بِثَوْبِهِ فَقَالَ: إِنَّمَا بَقِيَ مِنْ حَاجَتِيْ يَسِيْرَةٌ، وَأَخَافُ أَنْسَاهَا، فَقَامَ مَعَهُ حَتَّى فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهِ، ثُمَّ أَقْبَلَ فَصَلَّى. الادب المفرد مخرجا للبخاري باب سخاوة النفس رقم الحديث ۲۷۸، التاريخ الكبير ۲۱۱/۳، و صححه الالباني في "الصحيحة" ۱۲۹/۵ رقم الحديث ۲۰۹۴، و صحيح الجامع رقم الحديث ۴۸۱۵.

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مَا أَحْسَنَ هٰذِهِ . فَاكْسُنِيْهَا .

اې د الله رسوله ! دا څومره ښکلې څادر دی دا ماته د اغوستلو د پاره راکړه.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : صحيح ده ( دَ روايې خَله ).

کله چې پيغمبر عليه السلام د هغه ځای نه پاڅيد ( او لاړ ) نو دا کس نورو صحابه کرامو ملامَته کړو او ورته وې ويل :

تا چې د نبي عليه السلام نه څادر اُوغوښت دا تا ښه کار اونکړو ؛ ځکه تا په خپله اُوليد چې کله پيغمبر عليه السلام دا څادر د هغې زَنانه نه واخيست نو په خپله يې ورته ضرورت؛ خو تا بيا هم ور نه اُوغوښت ، او تا ته ښه پته ده چې د هغوی نه څه څيز اُوغوښتلې شي هغه يې نه منع کوي. هغه صحابي وويل :

رَجَوْتُ بَرَكَتَهَا حِيْنَ لَبِسَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . لَعَلِّيْ أُكَفَّنُ فِيْهَا .

کله چې دا نبي عليه السلام واغوست نو زه ددې څادر د برکت اُميد لرم ، شايد چې ماته په دې څادر کې کفن راکړې شي .

( يعنی ددې صحابي مقصد دا وُ چې کله دا څادر نبي عليه السلام واغوست نو ما د برکت د پاره ورنه اُوغوښت ؛ ددې د پاره چې ماته په دې څادر کې د مرګ نه پس کفن راکړې شي ) . (۱)

دا د نبي عليه السلام ښائسته اخلاق ، نرمي او سخاوَت وُ چې پخپله يې څادر ته ضرورت وُ خو بيا يې هم بل صحابي ته ورکړو .

---

(۱) عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رضي الله عنه ، قَالَ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبُرْدَةٍ ، فَقَالَ سَهْلٌ لِلْقَوْمِ: أَتَدْرُوْنَ مَا الْبُرْدَةُ ؟ فَقَالَ الْقَوْمُ: هِيَ الشَّمْلَةُ . فَقَالَ سَهْلٌ: هِيَ شَمْلَةٌ مَنْسُوْجَةٌ فِيْهَا حَاشِيَتُهَا. فَقَالَتْ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَكْسُوْكَ هٰذِهِ . فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا إِلَيْهَا فَلَبِسَهَا، فَرَآهَا عَلَيْهِ رَجُلٌ مِنَ الصَّحَابَةِ فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مَا أَحْسَنَ هٰذِهِ، فَاكْسُنِيْهَا . فَقَالَ: « نَعَمْ » فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَامَهُ أَصْحَابُهُ. قَالُوْا: مَا أَحْسَنْتَ حِيْنَ رَأَيْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مُحْتَاجًا إِلَيْهَا، ثُمَّ سَأَلْتَهُ إِيَّاهَا، وَقَدْ عَرَفْتَ أَنَّهُ لَا يُسْأَلُ شَيْئًا فَيَمْنَعَهُ. فَقَالَ : رَجَوْتُ بَرَكَتَهَا حِيْنَ لَبِسَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَعَلِّيْ أُكَفَّنُ فِيْهَا. صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ حُسْنِ الخُلُقِ وَالسَّخَاءِ، وَمَا يُكْرَهُ مِنَ البُخْلِ رقم الحديث ٦٠٣٦ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ٥٧٨٥ ، كنز العمال رقم الحديث ١٨٦٣٨ .

# خلقو سره د نرمۍ کولو په وجه مغفرت

څوک چې تَنګ دَستو او غریبانانو سره په معاملاتو کې نرمي کوي نو الله تعالی په دې سره دده مغفرت کوي:

۱. رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

فرښتو د تاسو نه د مخکې خلقو د یو سړي رُوح واخیست، او وې ورو، دوی دده نه پوښتنه اوکړه:

أَعَمِلْتَ مِنَ الْخَيْرِ شَيْئًا؟ آیا تا چیرته نېک کار کړی؟

ده ورته وویل: نه. فرښتو ورته وویل: ته یې ځان ته رایاد کړه (کیدې شي تا کړې وي)

ده ورته وویل: زه مالدار کس ووم، ما به خلقو ته قرضونه ورکول، بیا به مې خپلو ځوانانو ته حُکم کولو چې تاسو تَنګ دَست (غریب) ته مُهلت ورکوئ (زَریې ورنه مه غواړئ)، او مالدار سره آساني کوئ.

نو الله تعالی فرښتو ته اوفرمایل: تَجَوَّزُوا عَنْهُ.

تاسو هم په ده باندې آساني اوکړئ (دده د ګناهونو نه دَرګُزر اوکړئ). (۱)

۲. د مسلم شریف حدیث دی، حضرت حذیفه ﷺ فرمایي: الله تعالی ته به په خپلو بندګانو کې داسې یو بنده راوستې شو چې هغه ته یې (ډیر) مال ورکړې وُ، الله ﷻ د هغه نه پوښتنه اوکړه: مَاذَا عَمِلْتَ فِي الدُّنْيَا؟ تا په دُنیا کې څه عمل کړې وُ؟

راوي د حدیث وایي چې بندګان خو د الله تعالی نه هیڅ خبره نشي پټولی.

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَلَقَّتِ الْمَلَائِكَةُ رُوحَ رَجُلٍ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ. فَقَالُوا: أَعَمِلْتَ مِنَ الْخَيْرِ شَيْئًا؟ قَالَ: لَا. قَالُوا: تَذَكَّرْ. قَالَ: كُنْتُ أُدَايِنُ النَّاسَ فَآمُرُ فِتْيَانِي أَنْ يُنْظِرُوا الْمُعْسِرَ. وَيَتَجَوَّزُوا عَنِ الْمُوسِرِ. قَالَ: قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: تَجَوَّزُوا عَنْهُ. صحيح مسلم كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ بَابُ فَضْلِ إِنْظَارِ الْمُعْسِرِ رقم الحديث ۲۶(۱۵۶۰)، صحيح البخاري كِتَابُ الْبُيُوعِ بَابُ مَنْ أَنْظَرَ مُوسِرًا رقم الحديث ۲۰۷۷، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۰۷۳۴، صحيح الترغيب والترهيب رقم ۱۹۷۹ باب من أنظر معسرًا او تجاوز عن موسر، شعب الايمان رقم الحديث ۹۰۴ (۲) الترغيب في التيسير على المعسر ...

نو دا بنده به ورته اُووايي: اې ربه ! تا ماله مال راکړې وُ ، ما به د خلقو سره بَيع شِراء کوله ، او زما عادت دَرګُزر (معافي) کول وو ، پس ما به د مالدار سره آساني کوله ، او تَنګ دَست ته به مې مُهلت ورکول.

الله تعالى اوفرمايل: أَنَا أَحَقُّ بِذَا مِنْكَ، تَجَاوَزُوا عَنْ عَبْدِيْ .

زه د تا نه ډير د معاف کولو لائق يم ، ( اې فرښتو ! ) تاسو زما ددې بنده نه دَرګُزر اوکړئ ( دا معاف کړئ ).

حضرت عقبه بن عامر جُهني رضي الله عنه او ابومسعود انصاري رضي الله عنه فرمايي چې مونږ دا واقعه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خُلې مبارکې نه همداسې اَوريدلې ده. (۱)

همداسې واقعه په نورو احاديثو کې هم ذکر شوى. (۲)

---

(۱) عَنْ حُذَيْفَةَ رضي الله عنه ، قَالَ: أُتِيَ اللهُ بِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِهِ آتَاهُ اللهُ مَالًا، فَقَالَ لَهُ: مَاذَا عَمِلْتَ فِي الدُّنْيَا؟ قَالَ: وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللهَ حَدِيْثًا . قَالَ: يَا رَبِّ آتَيْتَنِيْ مَالَكَ، فَكُنْتُ أُبَايِعُ النَّاسَ، وَكَانَ مِنْ خُلُقِي الْجَوَازُ، فَكُنْتُ أَتَيَسَّرُ عَلَى الْمُوْسِرِ، وَأُنْظِرُ الْمُعْسِرَ . فَقَالَ اللهُ : أَنَا أَحَقُّ بِذَا مِنْكَ، تَجَاوَزُوا عَنْ عَبْدِيْ . فَقَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ الْجُهَنِيُّ رضي الله عنه وَأَبُوْ مَسْعُوْدٍ الْأَنْصَارِيُّ رضي الله عنه هٰكَذَا سَمِعْنَاهُ مِنْ فِيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . صحيح مسلم كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ بَابُ فَضْلِ إِنْظَارِ الْمُعْسِرِ رقم الحديث ۲۹(۱۵۶۰) . المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۳۱۹۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۱۷۵۰(۱۰) الترغيب فى السماحة فى البيع والشراء .

(۲) عَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «حُوْسِبَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، فَلَمْ يُوْجَدْ لَهُ مِنَ الْخَيْرِ شَيْءٌ، إِلَّا أَنَّهُ كَانَ يُخَالِطُ النَّاسَ، وَكَانَ مُوْسِرًا، فَكَانَ يَأْمُرُ غِلْمَانَهُ أَنْ يَتَجَاوَزُوا عَنِ الْمُعْسِرِ»، قَالَ: " قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: نَحْنُ أَحَقُّ بِذٰلِكَ مِنْهُ، تَجَاوَزُوا عَنْهُ" . صحيح مسلم كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ بَابُ فَضْلِ إِنْظَارِ الْمُعْسِرِ رقم الحديث ۳۰(۱۵۶۱) ، الادب المفرد باب حُسن الخلق اذا فقهوا رقم الحديث ۲۹۳ ، مسند احمد رقم الحديث ۱۷۰۸۳ ، سنن الترمذي باب ماجاء في انظار المعسر والرفق رقم الحديث ۱۳۰۷ ، شعب الايمان رقم ۱۰۷۳۰ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۵۳۷ .

وفي رواية : عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه ، أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كَانَ رَجُلٌ يُدَايِنُ النَّاسَ، فَكَانَ يَقُوْلُ لِفَتَاهُ : إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ، لَعَلَّ اللهَ يَتَجَاوَزُ عَنَّا، فَلَقِيَ اللهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ . صحيح مسلم كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ بَابُ فَضْلِ إِنْظَارِ الْمُعْسِرِ رقم الحديث ۳۱(۱۵۶۲) ، مسند ابي داود الطيالسي رقم الحديث ۲۶۲۳ ، مسند احمد رقم الحديث ۸۳۸۷ ، سنن النسائي رقم الحديث ۴۶۹۵ ، شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۷۲۳ .

**فائده** : د مذکوره واقعې نه معلومه شوه چې څوک د تَنګدسته او غریبانانو سره نَرمي کوي نو الله تعالی به د ده سره نرمي اوکړي او د ده ګناهونه به معاف کړي .

**۳** . د مسلم شريف حديث دی ، رسولُ الله ﷺ فرمايي :

... مَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ... (۱)

څوک چې په يو تَنګ دَسته (غريب) باندې آساني اوکړي نو الله تعالی به په دُنيا او آخرت دواړو کې په ده باندې آساني اوکړي .

**٤** . بلکه په خلقو باندې رَحم کول او د دوی سره نَرمي کول د پيغمبرانو اخلاق دي :

ابو سليمان الدارني رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

اَلرِّضَا عَنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالرَّحْمَةُ لِلْخَلْقِ دَرَجَةُ الْمُرْسَلِيْنَ . (۲)

د الله جلّ جلالُه نه راضي کيدل او په مخلوقاتو باندې رَحم کول د پيغمبرانو درجه ده .
( يعنی د هغوی اخلاق دي ) .

## چې څوک د خلقو سره نرمي کوي نو الله تعالی به په ده نرمي اوکړي

**۱** . عُمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

.... مَا رَفَقَ عَبْدٌ بِعَبْدٍ فِي الدُّنْيَا إِلَّا رَفَقَ اللهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . (۳)

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ وَالتَّوْبَةِ وَالإِسْتِغْفَارِ بَابُ فَضْلِ الإِجْتِمَاعِ عَلَى تِلَاوَةِ الْقُرْآنِ وَعَلَى الذِّكْرِ رقم الحديث ۳۸ (۲۶۹۹) ، مسند احمد رقم الحديث ۷۴۲۷ ، شعب الايمان رقم الحديث ۱۵۷۲ ، و رقم الحديث ۱۰۷۳۷ ، مشكاة المصابيح كتاب العلم الفصل الاول رقم الحديث ۲۰۴(۷) .

(۲) حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۹ ص ۲۶۲ أَبُو سُلَيْمَانَ الدَّارَانِيُّ ، و ج ۱۰ ص ۵ أَحْمَدُ بْنُ أَبِي الْحَوَارِيِّ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۱۰ ص ۲۳۱ .

(۳) كَانَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَحِمَهُ اللَّهُ يَخْطُبُ يَقُولُ : إِنَّ مِنْ أَحَبِّ الْأُمُورِ إِلَى اللهِ الْقَصْدَ فِي الْجِدَةِ ، وَالْعَفْوَ فِي الْمَقْدِرَةِ ، وَالرِّفْقَ فِي الْوِلَايَةِ ، وَمَا رَفَقَ عَبْدٌ بِعَبْدٍ فِي الدُّنْيَا إِلَّا رَفَقَ اللهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . مصنف ابن ابي شيبة كَلَامُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ رقم ۳۵۰۸۸ ، روضة العقلاء ونزهة الفضلاء لابن حبان البستي ص ۱۶۷ ذكر الحث على العفو عن الجاني ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ص ۴۲۸ اقوال السلف والعلماء في العفو والصفح .

کوم کس چې په بل باندې په دُنیا کې نرمي اوکړي نو الله تعالی به په ده باندې په قیامت کې نرمي اوکړي.

همداسې خبره د علامه ابن قیم رَحِمَهُ اللهُ نه هم نقل ده. (١)

## حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ غَل ته دُعا اوکړه

په احیاء العلوم او نورو کتابونو کې دا واقعه ذکر ده: یو ځل حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په بازار کې ناست ؤ، خوراک یې اخیستلو، ده چونکه دراهم په خپل پټکي کې ایخي وو، کله یې چې خوراک واخیستلو او دراهم یې راخیستل نو هغه نه وو (غَل ورنه پټ کړي وو). ابن مسعود ﷺ اوفرمایل:

زه چې دلته کیناستم دا د ماسره وو (خو اوس رانه غَل ویستي دي. په هغه ځای کې موجود) خلقو د هغه غَل پسې خبرې (بَد دُعا) شروع کړې، او دا یې ویل:

اَللّٰهُمَّ اقْطَعْ یَدَ السَّارِقِ الَّذِيْ أَخَذَهَا، اَللّٰهُمَّ افْعَلْ بِهٖ کَذَا.

اې الله! د هغه غَل لاس پرېکړه چا چې دا دِرهم اخیستي، اې الله! هغه ته دا دا جزا ورکړه.

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمایل:

اَللّٰهُمَّ إِنْ کَانَ حَمَلَهُ عَلٰی أَخْذِهَا حَاجَةٌ فَبَارِكْ لَهُ فِیْهَا، وَإِنْ کَانَ حَمَلَتْهُ جَرَاءَةٌ عَلَی الذَّنْبِ فَاجْعَلْهُ آخِرَ ذُنُوْبِهٖ

اې الله! که دې کس دا دراهم د ضرورت په وجه اخیستي وي نو هغه ته په دې کې برکت واچوه، او که په ګناه باندې یې د زړه وَرتیا په وجه اخیستي وي نو دا د هغه آخري ګناه

---

(١) وقال ابن القيم رَحِمَهُ اللهُ: من رَفَقَ بعبادِ الله رَفَقَ الله به، ومن رحمهم رحمه، ومن أحسن إليهم أحسن إليه، ومن جاد عليهم جاد الله عليه، ومن نفعهم نفعه، ومن سترهم ستره، ومن منعهم خيره منعه خيره، ومن عامل خلقه بصفةٍ عامله الله بتلك الصِّفة بعينها في الدنيا والآخرة، فالله تعالى لعبده حسب ما يكون العبد لخلقه. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج١ ص ٢٥٥ أقوال السلف والعلماء في الرفق. الوابل الصيب ص ٣٥.

اوګرځوه. (يعنى نوريې د دې ګناه نه منع کړه). (۱)

## ربيع بن خُثَيم رَحِمَهُ اللَّهُ غل ته دُعا اوکړه

ربيع بن خُثَيم رَحِمَهُ اللَّهُ يو آس په ديرش زره (۳۰۰۰۰) درهمه واخيست، په هغې باندې يې جهاد اوکړو، بيا يې خپل غلام "يسار" د (آس د پاره) ګياه پسې اوليږل، آس يې يو څنډې ته اوتړل او په خپله په مانځه باندې اودريد.

کله چې غلام واپس راغى (ده مونځ خلاص کړې ؤ) نو غلام دده نه پوښتنه اوکړه:

يَا رَبِيْعُ ! أَيْنَ فَرَسُكَ ؟ اې ربيع! ستا آس څه شو؟

ده ورته ووېل: هغه رانه چا پټ کړو. غلام ورته ووېل: تا هغه ته کتل چې پټولو يې؟

ده ورته ووېل: اې يسار! زه (په مانځه ولاړ ووم) د خپل رَب سره په مناجات کې ووم، پس زه بل څيز د خپل رَب سره د مُناجات نه مشغول نکړم (يعنى بل څيز ته مې توجّه نه وه)، بيا ده درې پېرې دا دُعا اوکړه:

اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ غَنِيًّا فَاهْدِهِ وَإِنْ كَانَ فَقِيْرًا فَاغْنِهِ .

اې الله! که دا غل مالدار وي نو هدايت ورته اوکړه، او که فقير وي نو مالدار يې کړه. (۲)

---

(۱) جلس ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ في السوق يبتاع طعامًا فابتاع ثم طلب الدراهم وكانت في عمامته فوجدتها قد حلت. فقال: لقد جلستُ وإنها لمعي، فجعلوا يدعون على من أخذها ويقولون: اَللّٰهُمَّ اقْطَعْ يَدَ السَّارِقِ الَّذِيْ أَخَذَهَا. اَللّٰهُمَّ افْعَلْ بِهِ كَذَا. فقال عبد الله: اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ حَمَلَهُ عَلٰى أَخْذِهَا حَاجَةٌ فَبَارِكْ لَهُ فِيْهَا، وَإِنْ كَانَ حَمَلَتْهُ جَرَاءَةٌ عَلَى الذَّنْبِ فَاجْعَلْهُ آخِرَ ذُنُوْبِهِ. احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۴ فَضِيلَةُ الْعَفْوِ وَالْإِحْسَانِ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۴۲۸ اقوال السلف والعلماء فى العفو والصفح، نزهة الناظرين ص ۴۸۱ الباب الرابع فى العفو.

(۲) أُعْطِيَ الرَّبِيْعُ فَرَسًا أَوِ اشْتَرٰى فَرَسًا بِثَلَاثِيْنَ أَلْفًا. فَغَزَا عَلَيْهَا. قَالَ: ثُمَّ أَرْسَلَ غُلَامَهُ يَحْتَشُّ وَقَامَ يُصَلِّيْ وَرَبَطَ فَرَسَهُ فَجَاءَ الْغُلَامُ فَقَالَ: يَا رَبِيْعُ ! أَيْنَ فَرَسُكَ ؟ قَالَ: سُرِقَتْ يَا يَسَارُ. قَالَ: وَأَنْتَ تَنْظُرُ إِلَيْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ يَا يَسَارُ. إِنِّيْ كُنْتُ أُنَاجِيْ رَبِّيْ عَزَّ وَجَلَّ فَلَمْ يَشْغَلْنِيْ عَنْ مُنَاجَاةِ رَبِّيْ شَيْءٌ. اَللّٰهُمَّ إِنَّهُ سَرَقَنِيْ وَلَمْ أَكُنْ أَسْرِقُهُ. اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ غَنِيًّا فَاهْدِهِ وَإِنْ كَانَ فَقِيْرًا فَأَغْنِهِ. ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. الزهد لاحمد بن حنبل ص ۲۶۸، مختصر قيام الليل للمقريزي ص ۲۱، صلاح الامة ج ۷ ص ۱۷۳ صفة الصفوة ج ۲ ص ۳۵، حلية الاولياء ۱۱۱/۲.

# د سَر زخمي کيدو باوجود دُعا کول

د ربيع بن خثيم رحمه الله په باره کې دا هم نقل دي چې دا په سَر باندې په کاڼي اُولګېد، سَر يې زخمي شو (او په مخ باندې يې وِينه راروانه شوه)، پس ده د خپل مخ نه وِينه صفا کوله او دا دُعا يې کوله:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهٗ فَإِنَّهٗ لَمْ يَتَعَمَّدْنِيْ.

اې الله! دې کس ته بَخنه اوکړه ځکه ده زه قصدًا نه يم ويشتلی.(۱)

لهذا په عاقل باندې دا لازم دي چې شريعت ده ته په کومو کارونو کې د نرمۍ حُکم کړې وي په هغې کې نرمي اوکړي، او د بې ځايه سختۍ نه ځان اُوساتي.

# مؤمنان به نرم خُويه وي

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

اَلْمُؤْمِنُوْنَ هَيِّنُوْنَ لَيِّنُوْنَ كَالْجَمَلِ الْأَنِفِ إِنْ قِيْدَ انْقَادَ، وَإِنْ أُنِيْخَ عَلٰى صَخْرَةٍ اِسْتَنَاخَ.(۲)

مؤمنان بُردباره (باوَقاره) او نرم خُوئ واله وي، د هغه تابعدار اُوښ په شان وي چې د هغه په پوزه کې پيزوان وي که دا راښکلې شي نو راځي، او که په کاڼي باندې کينولې شي نو (په کاڼي) هم کيني.

**تشريح**: د حديث مطلب دادی چې مؤمنان طبعًا فرمانبردار وي، د شريعت هر حُکم بغير د چون و چرا او خوشحالۍ مني.

دويم مطلب دادی چې په مؤمنانو کې تواضع او نرمي وي، غرور او تکبّر په کې نه وي.(۳)

(۱) أصاب الربيع بن خثيم حجر في رأسه فشجّه، فجعل يمسحُ الدّم عن وجهه ويقول: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهٗ فَإِنَّهٗ لَمْ يَتَعَمَّدْنِيْ. صلة الصلوة ج ۲ ص ۳۵ الربيع بن خثيم الثوري

(۲) شرح السنّة للبغوي ج ۱۳ ص ۸٦ رقم الحديث ۳۵۰۵، شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۷۷، و رقم الحديث ۷۷۷۸، مشكاة المصابيح باب الرفق والحياء وحسن الخلق الفصل الثاني رقم الحديث ۵۰۸٦(۱۹)، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۱٦۰، حلية الاولياء ج۵ ص ۱۸۰، كنز العمال رقم الحديث ٦۹۳، و حسّنه الالباني في صحيح الجامع رقم الحديث ٦۵۲۵.

(۳) مظاهر حق ج ۸ مع الاختصار.

# د بدۍ جواب په نرمۍ سره په کار دی

اګر چې انسان ته دا حق شته چې ده ته څوک بده خبره اوکړي نو دا دې هم ورته هماغه شان خبره اوکړي ، خو ليکن که دا صبر اوکړي او په نرمۍ سره جواب ورکړي نو دا اُوچت اخلاق دي او د انبياء کرامو عليهم السلام طريقه ده.

# انبياء کرامو به د سختۍ جواب په نرمۍ سره ورکولو

انبياء کرامو عليهم السلام ته به چې چا سخته خبره اوکړه نو دوی به ددې جواب په نرمۍ طريقې سره ورکولو :

١ . د حضرت هود عليه السلام د قوم کافرانو سردارانو ده ته وويل :

﴿ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴾.(١)

ترجمه : بيشکه مونږ تا په بې عَقلۍ ( بې وقوفۍ ) کې ګورو ، او بيشکه مونږ په تا باندې دا ګمان کوو چې ته د دروغجنو خلقو د ډلې نه يې.

حضرت هود عليه السلام ورته وويل :

﴿ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴾.(٢)

ترجمه : اې زما قومه ! په ما کې هيڅ بې وقوفتيا نشته ، ليکن زه د ربّ العالمين د طرفه رسول ( راليږلې شوی ) يم.

٢ . همدارنګې د حضرت نوح عليه السلام د قوم سردارانو ده ته وويل :

﴿ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾.(٣)

ترجمه : بيشکه مونږ تا په ښکاره ګمراهۍ کې ګورو.

حضرت نوح عليه السلام ورته جواب ورکړو :

---

(١) الاعراف آية ٦٦.

(٢) الاعراف آية ٦٧.

(٣) الاعراف آية ٦٠.

﴿ يٰقَوۡمِ لَيۡسَ بِيۡ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّيۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴾ .(۱)

ترجمه : اې زما قومه ! په ما کې هيڅ ګمراهي نشته ، ليکن زه د خپل رب د طرفه رسول ( رالیږلی شوی ) یم.

۳ . نبي عليه السلام هم چې په ابتدائي دَور کې کافرانو په کانړو ويشتلو او بَدې خبرې يې ورته کولې نو د دوی په حُله باندې دا الفاظ وو :

اَللّٰهُمَّ اهۡدِ قَوۡمِيۡ فَاِنَّهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ .

اې الله ! زما قوم ته هدايت اوکړه ؛ ځکه دوی نه پوهيږي.

٤ . بيا نبي عليه السلام د فتح مکه په وخت عام د معافۍ اعلان اوکړو ، او ټولو ته يې اوفرمايل :

﴿ لَا تَثۡرِيۡبَ عَلَيۡكُمُ الۡيَوۡمَ ؕ يَغۡفِرُ اللّٰهُ لَكُمۡ وَهُوَ اَرۡحَمُ الرّٰحِمِيۡنَ ﴾.

نن ورځ په تاسو باندې هيڅ اِلزام ( او ملامتيا ) نشته ، الله تعالی دې تاسو معاف کړي ، او هغه د ټولو نه زيات رَحم کوونکی دی .....

اِذۡهَبُوۡا فَاَنۡتُمُ الطُّلَقَاءُ . ځئ تاسو ټول آزاد يئ .(۲)

---

(۱) الاعراف آية ۶۱.

(۲) عَنۡ أَبِيۡ هُرَيۡرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ .... ثُمَّ أَتَى الۡكَعۡبَةَ فَأَخَذَ بِعِضَادَتَيِ الۡبَابِ فَقَالَ: مَا تَقُوۡلُوۡنَ وَمَا تَظُنُّوۡنَ ؟ قَالُوۡا : نَقُوۡلُ : ابۡنُ أَخٍ وَابۡنُ عَمٍّ حَلِيۡمٌ رَحِيۡمٌ. قَالَ : وَقَالُوۡا ذٰلِكَ ثَلَاثًا ، فَقَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ: أَقُوۡلُ كَمَا قَالَ يُوۡسُفُ عليه السلام : { لَا تَثۡرِيۡبَ عَلَيۡكُمُ الۡيَوۡمَ يَغۡفِرُ اللّٰهُ لَكُمۡ وَهُوَ أَرۡحَمُ الرَّاحِمِيۡنَ } [ يوسف آية ۹۲ ]. قَالَ : فَخَرَجُوۡا كَأَنَّمَا نُشِرُوۡا مِنَ الۡقُبُوۡرِ فَدَخَلُوۡا فِي الۡإِسۡلَامِ. السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۸۲۷۵.

وَفِيۡمَا حَكَى الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَنۡ أَبِيۡ يُوۡسُفَ فِيۡ هٰذِهِ الۡقِصَّةِ أَنَّهُ قَالَ لَهُمۡ حِيۡنَ اجۡتَمَعُوۡا فِي الۡمَسۡجِدِ : مَا تَرَوۡنَ أَنِّيۡ صَانِعٌ بِكُمۡ؟ قَالُوۡا : خَيۡرًا ، أَخٌ كَرِيۡمٌ وَابۡنُ أَخٍ كَرِيۡمٍ. قَالَ : اِذۡهَبُوۡا فَأَنۡتُمُ الطُّلَقَاءُ . السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۸۲۷۶ .تفسير البغوي ج۵ ص۳۲۳ ، تفسير القرطبي ج۹ ص۲۵۸ ، تفسير ابي سعود ج۹ ص۲۰۸ ، تفسير المظهري ج۱۰ ص۳۶۳ .تفسير السلمي ج۲ ص۱۳۲ .

# چې د چا سره څه وي هماغه خرچ کوي

۱ . يو ځل حضرت عيسى عليه السلام د يهودو په يو قوم تيريدلو ، هغوى ده ته ډيرې بَدې خبرې اوکړې ، خو ده هغوى ته د خير خبرې اوکړې .

چا د حضرت عيسى عليه السلام نه پوښتنه اوکړه :

هغوى تاته بَدې خبرې اوکړې او ته ورته ښې خبرې کوې (دا ولې ؟ )

ده ورته اوفرمايل :

كُلُّ وَاحِدٍ يُنْفِقُ مِمَّا عِنْدَهُ .

د هر چا سره چې څه وي هماغه خرچ کوي . (۱)

( يعنى د چا طبعيت چې خراب وي نو خرابې خبرې يې د خُلې نه راأوځي ، او د چا طبعيت چې پاکيزه وي نو ښې خبرې ورنه راأوځي ) .

۲ . مشهوره خبره ده : كُلُّ إِنَاءٍ يَتَرَشَّحُ بِمَا فِيْهِ . (۲)

هر لوخې هغه څيز راڅڅوي کوم چې په هغې کې وي .

يعنى که په يو لوخي کې صفا أوبه وي او ته يې أوخوَزوې نو هماغه ورنه راتويږي ، او که په هغې کې گنده أوبه وي او ته يې أوخوَزوې نو گنده أوبه ورنه راتويږي .

داسې خو هيڅ کله نشي کيدی چې په يو لوخي کې گنده أوبه وي او په خوَزولو سره ورنه صفا أوبه راتوَى شي .

(۱) مَرَّ الْمَسِيْحُ عَلَيْهِ وَعَلَى نَبِيِّنَا الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِقَوْمٍ مِنَ الْيَهُوْدِ ، فَقَالُوْا لَهُ شَرًّا ، فَقَالَ لَهُمْ خَيْرًا . فَقِيْلَ لَهُ : إِنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ شَرًّا وَأَنْتَ تَقُوْلُ خَيْرًا ؟ فَقَالَ : كُلُّ وَاحِدٍ يُنْفِقُ مِمَّا عِنْدَهُ . بريقة محمودية في شرح طريقة محمدية وشريعة نبوية في سيرة احمدية ج ۲ ص ۲۷۵ الْخُلُقُ الْخَامِسَ عَشَرَ مِنَ السِّتِّيْنَ مِنْ آفَاتِ الْقَلْبِ الْحَسَدُ ، احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۷۹ كتاب ذم الغضب والحقد والحسد بيان فَضِيلَةُ الْحِلْمِ .

(۲) مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۷ ص ۲۸۸۷ كِتَابُ الطِّبِّ وَالرُّقَى ، و ص ۲۹۱۹ كِتَابُ الرُّؤْيَا ، و ج ۸ ص ۳۲۱۸ بَابُ الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ . فيض الباري على صحيح البخاري ج ۱ ص ۸۵ ، و ج ۳ ص ۱۰۱ .

## په نرمۍ کې برکت دی ، او سختۍ کې سپيره والې دی

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

اَلرِّفْقُ يُمْنٌ ، وَالْخُرْقُ شُؤْمٌ . (۱)

نرمي برکت دی ، او سختي سپيره والې دی .

(يعنی په نرمۍ سره برکت راځي ، او سختۍ سره سپيره والې راځي) .

## په مَعِيشت کې نرمي د انسان د هوښيارتيا علامه ده

۱ . حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه د نبي عليه السلام دا حديث نقل کوي :

مِنْ فِقْهِ الرَّجُلِ رِفْقُهُ فِيْ مَعِيْشَتِهِ . (۲)

د انسان د پوهې نه دا خبره هم ده چې دا به په خپل مَعِيشت کې نرمي کوي .

۲ . نرمي د حِکمت جَرړه ده ، مشهوره خبره ده :

اَلرِّفْقُ رَأْسُ الْحِکْمَةِ . (۳) نرمي د حِکمت جَرړه ده .

## نرمي کوونکي ته د نبي ﷺ دُعا ، او سختي کوونکي ته خېرې

څوک چې د خلقو سره سختي کوي نو هغوی ته نبي عليه السلام خېرې (بَددُعا) کړي ، او څوک چې خلقو سره نرمي کوي نو هغوی ته يې دُعا کړی .

---

(۱) شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۲۶ ، و رقم الحديث ۸۰٦۰ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۴۰۸۷ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۱۱۹۸ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۰۵۴ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲٦۵۳ ، کنزالعمال رقم الحديث ۵۴۴۷ ، و رقم الحديث ۵۴٦۱ ، نضرة النعيم ج ٦ ص ۲۱٦۷ الرفق ، مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ۲۴۱۹ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۲۵۵ ، الزهد لهناد بن السدي ج۲ ص ٦۵۴ .

(۲) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۱٦۹۵ ، مجمع الزوائد باب الرفق فی المعيشة رقم الحديث ٦۳۰۸ ، تفسير ابن کثير ج٦ ص ۱۲۴ ، الدرالمنثور فی التفسير بالمأثور ج٦ ص ۲۷۵ . و هکذا في مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۳۴٦۸۸ ، حلية الاولياء ج۱ ص ۲۱۱ ، صفة الصفوة ج۱ ص ۲۴۱ ، کنزالعمال رقم الحديث ۵۴۳۸ .

(۳) مصنف ابن ابي شيبة رقم ۲۵۳۰۸ ، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج۲ ص ٦۷ ، کنزالعمال رقم الحديث ۵۴۴۴ ، مکارم الاخلاق للخرائطي رقم الحديث ٦۷٦ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۲۵۵ . نضرة النعيم ج٦ ص ۲۱٦۷ الرفق ، و رواه وکيع فی الزهد ص ۷۷٦ ، و احمد فی الزهد ص ۴۴ ، و هناد فی الزهد ج۲ ص ٦۵۳ .

د مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دُعا كړې وه :

.... اَللّٰهُمَّ مَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِيْ شَيْئًا فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ ، وَمَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِيْ شَيْئًا فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ . (١)

يا الله ! څوک چې زما د اُمت د يو كار مُتولِي ( حاكِم ) جوړ شي بيا دا په دوی باندې سختي اوكړي نو ته هم په ده باندې سختي اوكړه ، او څوک چې زما د اُمت د څه كار متولِي (حاكم) جوړ شي بيا دا په دوی باندې نرمي اوكړي نو ته هم په ده باندې نرمي اوكړه .

**فائده** : په دې حديث كې د هغه خلقو د پاره ډير لوي زَجر دی كوم چې په نورو باندې سختي كوي ، او د هغه خلقو د پاره ډيره لويه خوشحالي ده چې په نورو باندې نرمي كوي . (٢)

## په عباداتو كې هم د نرمۍ او تخفيف حكم راغلی

په عباداتو كې هم د نرمۍ او آسانۍ حُكم راغلی . په ټولو عباداتو كې د مونځ اَهميت ډير بيان شوی خو بيا هم شريعت اِمام ته دا حُكم كوي چې د مَسنون قِراءت نه به زيات اُوږد قراءت نه كوي ، همدا رنګې ركوع او سجده به هم دومره نه اُوږدوي چې خلق وریاندې تنګ شي ، ځكه كيدې شي په دې مُقتديانو كې څوک كمزوري يا مريض وي ، يا د چا ضروري كار وي نو هغوی خو بيا دومره اُوږده نشي اُودريدی ، البته د مانځه ټول اَركان به پوره اَداء كوي .

(١) صحيح مسلم كِتَابُ الإِمَارَةِ بَابُ فَضِيلَةِ الإِمَامِ العَادِلِ، وَعُقُوبَةِ الجَائِرِ، وَالحَثِّ عَلَى الرِّفْقِ بِالرَّعِيَّةِ، وَالنَّهْيِ عَنْ إِدْخَالِ المَشَقَّةِ عَلَيْهِمْ رقم الحديث ١٩(١٨٢٨) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٥٥٣ ذكر دعاء المصطفى ﷺ لمن رفق بالمسلمين في امورهم ....، مسند احمد رقم الحديث ٢٤٦٢٢ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٧٩١٣ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث رقم الحديث ٣٦٨٩(٢٩) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ٨٨٢ .

(٢) قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا مِنْ أَبْلَغِ الزَّوَاجِرِ عَنِ المَشَقَّةِ عَلَى النَّاسِ . وَأَعْظَمِ الحَثِّ عَلَى الرِّفْقِ بِهِمْ . وَقَدْ تَظَاهَرَتِ الأَحَادِيثُ فِي هٰذَا المَعْنٰى . قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : وَهُوَ مِنْ أَبْلَغِ مَا أَظْهَرَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الرَّأْفَةِ وَالشَّفَقَةِ وَالمَرْحَمَةِ عَلَى الأُمَّةِ . مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٤٠٢ في تشريح حديث ٣٦٨٩ .

# نبي عليه السلام به مختصر او کامِل مونځ کولو

۱ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دى ، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي :

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوجِزُ الصَّلٰوةَ وَيُكْمِلُهَا . (۱)

نبي عليه السلام به مختصر او کامِل مونځ کولو .

۲ . چونکه د نبي عليه السلام پسې به زَنانه هم شاته په صفونو کې ولاړې وى ، چې کله به پيغمبر عليه السلام د ماشومانو د ژړا آواز واوريد نو مونځ به يې مختصر کړو ، ددې د پاره چې د ماشومانو مورانو ته تکليف نه وي .

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي :

مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ إِمَامٍ قَطُّ أَخَفَّ صَلٰوةً وَلَا أَتَمَّ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ أَنْ تُفْتَنَ أُمُّهُ . (۲)

ما هيڅ کله د نبي عليه السلام نه کامِل او مختصر مونځ د بل اِمام پسې ندي کړى (يعنى پيغمبر عليه السلام به ډير مختصر او کامِل مونځ کولو) ، دوى به چې کله د ماشومانو د ژړا آواز واوريد نو جَمعه به يې مختصر کوله ددې د پاره چې د ماشومانو مور په فِتنه (غم) کې مبتلاء نشي .

په يو بل حديث کې دي ، په خپله رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

إِنِّي لَأَدْخُلُ فِي الصَّلَاةِ وَأَنَا أُرِيدُ إِطَالَتَهَا فَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ فِي صَلَاتِي مِمَّا أَعْلَمُ مِنْ شِدَّةِ وَجْدِ أُمِّهِ مِنْ بُكَائِهِ .

کله چې زه په مانځه کې داخل شم (يعنى نيت اُوتړم) نو زما اِراده دا وي چې دا مونځ

---

(۱) صحيح البخاري بَابُ الإِيجَازِ فِي الصَّلَاةِ وَإِكْمَالِهَا رقم الحديث ۷۰۶ ، صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ باب تخفيف الصلاة في تمام رقم الحديث ۱۸۸(۴۶۹) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۱۹۹۰ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۵۲۶۱ .

(۲) صحيح البخاري بَابُ مَنْ أَخَفَّ الصَّلَاةَ عِنْدَ بُكَاءِ الصَّبِيِّ رقم الحديث ۷۰۸ ، صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ باب تخفيف الصلاة في تمام رقم الحديث ۱۹۰(۴۶۹) ، مشكاة المصابيح باب ما على الامام الفصل الاول رقم الحديث ۱۱۲۹(۱) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۳۵۲۳ .

به اُوږدوم ، بيا زه د ماشومانو ژړا واورم نو زه مونځ مختصر کړم ؛ ځکه ماته هغه تکليف (او غم) معلوم دی کوم چې مور ته د ماشوم د ژړا په وجه پيدا کيږي . (۱)

## ځانله کس اُوږد مونځ کولې شي

البته که يو کس ځانله مونځ کوي ( يعنی نورو ته اِمامت نه کوي ) نو دا بيا اُوږد مونځ کولې شي .

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ مِنْهُمُ الضَّعِيفَ وَالسَّقِيمَ وَالْكَبِيرَ . وَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ . (۲)

کله چې په تاسو کې يو کس نورو خلقو ته مونځ (يعنی اِمامت) کوي نو دا دې تخفيف کوي ( يعنی مختصر مونځ دې کوي ) ؛ ځکه په دې خلقو ( مُقتديانو ) کې به څوک ضعيف ، مريض او بوډا هم وي ، او چې کله په تاسو کې يو کس ځانله مونځ کوي نو چې څومره يې خوښه وي اُوږد مونځ دې کوي .

## اُوږده جمعه کوونکي ته د نبي عليه السلام تنبيه

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، حضرت ابو مسعود رضي الله عنه فرمايي چې يو سړي رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته اوفرمايل :

اې د الله رسوله ! قسَم په الله ، زه د سهَر په مانځه کې ځکه روستو شريکيږم چې فلانکی کس مونږ ته ډير اُوږد مونځ کوي .

( ابو مسعود رضي الله عنه فرمايي : ) ما رسولُ الله صلی الله عليه وسلم هيڅ کله هم وعظ کې دومره غصه نهٔ ليدلی څومره چې په دې ورځ باندې وُ ، نبي عليه السلام اوفرمايل :

(۱) صحيح البخاري بَابُ مَنْ أَخَفَّ الصَّلَاةَ عِنْدَ بُكَاءِ الصَّبِيِّ رقم الحديث ۷۰۹ ، صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ باب تخفيف الصلاة لبكاء الصبي رقم الحديث ۱۹۲ (۴۷۰) .

(۲) صحيح البخاري بَابٌ: إِذَا صَلَّى لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ رقم الحديث ۷۰۳ ، صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ أَمْرِ الْأَئِمَّةِ بِتَخْفِيفِ الصَّلَاةِ فِي تَمَامٍ رقم الحديث ۱۸۵ (۴۶۷) .

إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ، فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ . فَإِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ وَذَا الْحَاجَةِ .

بیشکه په تاسو کې بعضې کسان نور خلق د مانځه نه مُتنفِّره کوي ، پس څوک چې په تاسو کې نورو خلقو ته مونځ ( اِمامت ) کوي نو دا دې مختصر مونځ کوي ؛ ځکه په مُقتدیانو کې کمزوری ، بُوډا ، او ضروري کاروالا هم وي .(۱)

## حضرت معاذ رضي الله عنه ته د اوږد مونځ کولو په وجه د نبي علیه السلام تنبیه

په بخاري شریف او مسلم شریف کې دا واقعه ذکر ده ، حضرت جابر بن عبدالله الانصاري رضي الله عنه فرمایي چې یو کس راغی ، دوه اُوښان ورسره وو ( په کوم باندې چې د فصل د پاره اُوبه راویستلې شي ) ، په دې وخت کې شپه تیاره شوې وه ، ده حضرت معاذ رضي الله عنه اُولید چې د ماسخوتن جَمعه یې کوله ( دا ورسره جَمعه کې شریک شو )، حضرت معاذ رضي الله عنه په مانځه کې سورة البقرة یا سورة النساء اُولوستله ، نو دې سړي نیت مات کړو او لاړ .

بیا ورته دا خبره اُورسیده چې حضرت معاذ رضي الله عنه د مانه خفه شوې دی ، نو دا سړی نبي علیه السلام ته راغی او دوی ته یې د حضرت معاذ رضي الله عنه شکایت اوکړو ( چې مونږ زمیندار خلق یو ، ټوله ورځ په لاس کارونه کوو ، او هغه مونږ ته ډیر اُوږد مونځ کوي ) .

نبي علیه السلام حضرت معاذ رضي الله عنه ته درې پیرې اوفرمایل :

---

(۱) قَالَ أَبُوْمَسْعُوْدٍ رضي الله عنه أَنَّ رَجُلًا قَالَ : وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ لَأَتَأَخَّرُ عَنْ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيْلُ بِنَا . فَمَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَوْعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ يَوْمَئِذٍ، ثُمَّ قَالَ : « إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِيْنَ، فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ . فَإِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ وَذَا الْحَاجَةِ » . صحيح البخاري بَابُ تَخْفِيْفِ الإِمَامِ فِي الْقِيَامِ، وَإِتْمَامِ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ رقم الحديث ۷۰۲ ، و رقم الحديث ۷۰۴ بَابُ مَنْ شَكَا إِمَامَهُ إِذَا طَوَّلَ ، و رقم الحديث ۶۱۱۰ بَابُ مَا يَجُوْزُ مِنَ الْغَضَبِ وَالشِّدَّةِ لِأَمْرِ اللهِ ، و رقم الحديث ۷۱۵۹ بَابٌ: هَلْ يَقْضِي الْقَاضِيْ أَوْ يُفْتِيْ وَهُوَ غَضْبَانُ . صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ أَمْرِ الْأَئِمَّةِ بِتَخْفِيْفِ الصَّلَاةِ فِيْ تَمَامٍ رقم الحديث ۱۸۲(۴۶۶) ، سنن ابن ماجة كِتَابُ إِقَامَةِ الصَّلَاةِ، وَالسُّنَّةُ فِيْهَا بَابُ مَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ رقم الحديث ۹۸۴ ، مشكوة المصابيح باب ما على الامام الفصل الاول رقم الحديث ۱۱۳۲(۴) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۰۶۵ .

يَا مُعَاذُ ! أَفَتَّانٌ أَنْتَ . اې معاذ ! آيا ته خلق په فتنه کې اچوې ؟

تا ولې په سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى . وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا . او وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى سورة باندې مونځ اونکړو ؟

فَإِنَّهُ يُصَلِّي وَرَاءَكَ الْكَبِيرُ وَالضَّعِيفُ وَذُو الْحَاجَةِ .

ځکه ستا شاته بُودا ، کمزوري او د ضروري کار واله خلق هم ولاړ وي . (۱)

**د فقهاء کرامو قول :** فقهاء کرامو هم ذکر کړي چې د امام د پاره د سُنت مقدار نه زيات اُوږد قراءت کول مکروهِ تحريمي دی ( البته که يو کس ځان له مونځ کوي نو بيا که هر څومره اُوږد مونځ کوي دا خپر دی ) . (۲)

---

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه ، قَالَ: أَقْبَلَ رَجُلٌ بِنَاضِحَيْنِ وَقَدْ جَنَحَ اللَّيْلُ ، فَوَافَقَ مُعَاذًا يُصَلِّي ، فَتَرَكَ نَاضِحَهُ وَأَقْبَلَ إِلَى مُعَاذٍ رضي الله عنه ، فَقَرَأَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ _ أَوِ النِّسَاءِ _ فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ ، وَبَلَغَهُ أَنَّ مُعَاذًا رضي الله عنه نَالَ مِنْهُ ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَكَا إِلَيْهِ مُعَاذًا رضي الله عنه ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « يَا مُعَاذُ ! أَفَتَّانٌ أَنْتَ » _ أَوْ « أَفَاتِنٌ » _ ثَلَاثَ مِرَارٍ : « فَلَوْلَا صَلَّيْتَ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ ، وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا ، وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى ، فَإِنَّهُ يُصَلِّي وَرَاءَكَ الْكَبِيرُ وَالضَّعِيفُ وَذُو الْحَاجَةِ . صحيح البخاري بَابُ مَنْ شَكَا إِمَامَهُ إِذَا طَوَّلَ رقم الحديث ۷۰۵ ، و رقم الحديث ۶۱۰۶ كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَنْ لَمْ يَرَ إِكْفَارَ مَنْ قَالَ ذَلِكَ مُتَأَوِّلًا أَوْ جَاهِلًا ، صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي الْعِشَاءِ رقم ۱۷۸ (۴۶۵) ، سنن ابي داؤد باب في تخفيف الصلوة رقم ۷۹۰ ، سنن النسائي رقم ۸۳۵ .

(۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله : (وَ) يُكْرَهُ تَحْرِيمًا (تَطْوِيلُ الصَّلَاةِ) عَلَى الْقَوْمِ زَائِدًا عَلَى قَدْرِ السُّنَّةِ فِي قِرَاءَةٍ وَأَذْكَارٍ رَضِيَ الْقَوْمُ أَوْ لَا ، لِإِطْلَاقِ الْأَمْرِ بِالتَّخْفِيفِ نَهْرٌ . وَفِي الشُّرُنْبُلَالِيَّةِ ظَاهِرُ حَدِيثِ مُعَاذٍ أَنَّهُ لَا يَزِيدُ عَلَى صَلَاةِ أَضْعَفِهِمْ مُطْلَقًا . وَلِذَا قَالَ الْكَمَالُ إِلَّا لِضَرُورَةٍ ، وَصَحَّ « أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَرَأَ بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ فِي الْفَجْرِ حِينَ سَمِعَ بُكَاءَ صَبِيٍّ » . الدر المختار

قال ابن عابدين رحمه الله : (قَوْلُهُ : لِإِطْلَاقِ الْأَمْرِ بِالتَّخْفِيفِ) وَهُوَ مَا فِي الصَّحِيحَيْنِ « إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ ، فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ وَالسَّقِيمَ وَالْكَبِيرَ ، وَإِذَا صَلَّى لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ » .... قَالَ الْكَمَالُ فِي الْفَتْحِ : وَقَدْ بَحَثْنَا أَنَّ التَّطْوِيلَ : هُوَ الزِّيَادَةُ عَلَى الْقِرَاءَةِ الْمَسْنُونَةِ . فَإِنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهُ وَقِرَاءَتُهُ هِيَ الْمَسْنُونَةُ فَلَا بُدَّ مِنْ كَوْنِ مَا نَهَى عَنْهُ غَيْرَ مَا كَانَ دَأْبَهُ إِلَّا لِضَرُورَةٍ . رد المحتار على الدر المختار ۱ / ۵۶۴ باب الامامة ، فتاوی دار العلوم ديوبند ج۳ ص ۹۹ باب الامامة والجماعة

لهذا امام ته په کار دي چې د مقتدياتو رِعايت اوکړي، او د مسنون قرأت نه زيات اوږد قرأت يا زياته اوږده رکوع او سجده اونکړي. (۱)

# انسان به ځان ته په زوره دِين نه ګرانوي

انسان به ځان ته په زوره باندې دِين نه ګرانوي او په ځان باندې به داسې سخت عبادت نه لازموي چې دا يې بيا طاقت نشي لرلی، البته شريعت چې ورته د کوم کار حُکم کړې وي هغه به ضرور کوي.

۱ . الله تعالی فرمايي: ﴿ يُرِيۡدُ اللّٰهُ بِكُمُ الۡيُسۡرَ وَلَا يُرِيۡدُ بِكُمُ الۡعُسۡرَ ﴾. (۲)

ترجمه: الله تعالی په تاسو باندې آساني کول غواړي، او تَنګي کول درباندې نه غواړي.

۲ . بل ځای فرمايي: ﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيۡكُمۡ فِى الدِّيۡنِ مِنۡ حَرَجٍ ﴾. (۳)

ترجمه: او الله تعالی په تاسو باندې په دِين کې څه تَنګي نده ايخې.

۳ . بل ځای فرمايي: ﴿ يُرِيۡدُ اللّٰهُ اَنۡ يُّخَفِّفَ عَنۡكُمۡ‌ۚ وَخُلِقَ الۡاِنۡسَانُ ضَعِيۡفًا ﴾. (۴)

ترجمه: الله تعالی اِراده لري چې د تاسو نه پيټې سپک کړي (يعنی احکام د شريعت درته آسان کړي) او انسان کمزورې پيدا شوی دی. (۵)

٤ . د بخاري شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

إِنَّ الدِّيْنَ يُسْرٌ، وَلَنْ يُشَادَّ الدِّيْنَ أَحَدٌ إِلَّا غَلَبَهُ، فَسَدِّدُوْا وَقَارِبُوْا، وَأَبْشِرُوْا، وَاسْتَعِيْنُوْا بِالْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ. (۶)

---

(۱) فتاوی دارالعلوم ديوبند ج۳ ص ۱۸۱ باب الامامة والجماعة.

(۲) البقرة آية ۱۸۵.

(۳) الحج آية ۷۸.

(۴) النساء آية ۲۸.

(۵) ﴿ يُرِيۡدُ اللّٰهُ اَنۡ يُّخَفِّفَ عَنۡكُمۡ ﴾ يُسَهِّلَ عَلَيْكُمْ أَحْكَامَ الشَّرْعِ . تفسير الجلالين

(۶) صحيح البخاري كِتَابُ الإِيمَانِ بَابٌ: الدِّينُ يُسْرٌ رقم الحديث ۳۹، مشكاة المصابيح باب القصد في العمل الفصل الاول رقم الحديث ۱۲۴۶(۶)، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ۹۳۵.

بیشکه دِین آسان دی ، او څوک چې په دِین کې سختي اِختیار کړي ( یعنی داسې سخت عبادت په ځان لازم کړي چې په ده واجب نه وي ) نو دِین په ده باندې غالب کیږي ( یيا ددې سختو عباداتو قدرت نشي لرلی ) ، پس تاسو د صِراط مُستقیم قصد او کړئ ، میانه رَوي کوئ ، او ( په دې طرز باندې عمل کولو سره د جنت او نورو نِعمتونو ) زیرې قبول کړئ ، او تاسو مدد حاصلوئ د سهَر ، ماښام او د شپې په څه حصه عبادت باندې ( یعنی په دې درې وختونو کې په اِهتمام سره عبادت کوئ ) .

**فائده** : ددې حدیث نه معلومه شوه چې په دِین کې تشدّد ، غُلو ، او په عبادت کې د حَد نه تجاوز کول د اسلام د مزاج خلاف دي ، اسلام د داسې مُعتدِل ژوند مطالبه کوي چې انسان د الله ﷻ د یاد نه هم غافل نشي او دُنیاوي ژوند هم مُعطّل نشي .

بعضې خلق په دِین کې بې ځایه سختي کوي ، آخر په خپله په کې داسې راګیر شي چې بیا په صحیح طریقې سره په دِین عمل هم نشي کولی ، او د دِیني سهولتونو نه فائده نشي اخیستلی . اسلام ریښتینې او مُعتدل مذهب دی ، مشقّتونه او رِیاضتونه خو په عیسایت کې زیات دي خو بیا هم هغه اوس د الله ﷻ په نزد مردُود دی .(۱)

۵ . حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې ( یوه ورځ ) نبي علیه السلام کور ته راننوت ، په دې وخت کې د ما سره یوه ښځه ( حَولاء بنت تُوَیت ) ناسته وه ، نبي ﷺ پوښتنه او کړه :

مَنْ هٰذِهِ ؟ دا څوک ده ؟

ما ورته ووېل : دا فلانکۍ ښځه ده او ددې د مانځه ډیره تذکره کولې شي ( یعنی ډیر نفلي مونځونه کوي ) .

نبي علیه السلام او فرمایل :

مَهْ ، عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيقُوْنَ ، فَوَاللّٰهِ لَا يَمَلُّ اللّٰهُ حَتّٰى تَمَلُّوْا ، وَكَانَ أَحَبَّ الدِّيْنِ إِلَيْهِ مَادَامَ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ .

(۱) تفهيم البخاري ترجمه و شرح صحيح البخاري لمولانا ظهورالباري اعظمي ج۱ ص ٦٣ كتاب الايمان . طبع مكتبة الحرمين .

داسې مه کوئ ، دومره عمَل کوئ چې د څومره طاقت لرئ ( زيات دربانديې واجب نه دی) ، قسَم په الله ، چې الله تعالی (په ثواب ورکولو ) نه ستړې کيږي خو تاسو به (په ډير عمَل کولو ) ستړي شئ ، او الله ﷻ ته محبوب دِين (او محبوب عمَل ) هغه دی چې په هغې باندې دا کس پابندي اوکړي . (١)

**٦** د مسلم شريف په يو حديث کې ورسره دا اضافه هم شته چې حضرت عائشې رضي الله عنها نبي عليه السلام ته اوفرمايل : دا داسې ښځه ده چې ددې په باره کې خلق دا وايي چې دا د شپې نه اُ ده کيږي ( بلکه ټوله شپه د الله ﷻ عبادت کوي ) .

نبي عليه السلام اوفرمايل :

لَا تَنَامُ اللَّيْلَ ؟ خُذُوا مِنَ الْعَمَلِ مَا تُطِيقُوْنَ، فَوَاللهِ لَا يَسْأَمُ اللهُ حَتّٰى تَسْأَمُوْا .

آيا دا د شپې نه اُوده کيږي ؟ ( نبي عليه السلام ددې دا کار بَد اُوګڼل ، او بيا يې اوفرمايل ) تاسو دومره عمَل کوئ د څومره چې طاقت لرئ ، په الله قسَم چې الله تعالی (په ثواب ورکولو ) نه ستړې کيږي خو تاسو به (په ډير عبادت کولو ) ستړي شئ . (٢)

---

(١) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا امْرَأَةٌ ، قَالَ: مَنْ هٰذِهِ؟ قَالَتْ: فُلَانَةُ، تَذْكُرُ مِنْ صَلَاتِهَا. قَالَ: مَهْ، عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيقُوْنَ، فَوَاللهِ لَا يَمَلُّ اللهُ حَتّٰى تَمَلُّوا ، وَكَانَ أَحَبَّ الدِّيْنِ إِلَيْهِ مَادَامَ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ ». صحيح البخاري كِتَابُ الإِيمَانِ بَابٌ: أَحَبُّ الدِّينِ إِلَى اللهِ عَزَّوَجَلَّ أَدْوَمُهُ رقم الحديث ٤٣ ، صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِينَ وَقَصْرِهَا بَابُ أَمْرِ مَنْ نَعَسَ فِي صَلَاتِهِ، أَوِ اسْتَعْجَمَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ، أَوِ الذِّكْرُ بِأَنْ يَرْقُدَ، أَوْ يَقْعُدَ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ ذٰلِكَ رقم الحديث ٢٢١ (٧٨٥) ، سنن ابن ماجة باب المداومة على العمل رقم الحديث ٤٢٣٨ ، مسند احمد رقم الحديث ٢٤٢٤٥ ، سنن النسائي رقم الحديث ١٦٤٢ .

(٢) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَخْبَرَتْهُ أَنَّ الْحَوْلَاءَ بِنْتَ تُوَيْتٍ مَرَّتْ بِهَا وَعِنْدَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَقُلْتُ: هٰذِهِ الْحَوْلَاءُ بِنْتُ تُوَيْتٍ، وَزَعَمُوا أَنَّهَا لَا تَنَامُ اللَّيْلَ ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « لَا تَنَامُ اللَّيْلَ ؟ خُذُوا مِنَ الْعَمَلِ مَا تُطِيقُوْنَ، فَوَاللهِ لَا يَسْأَمُ اللهُ حَتّٰى تَسْأَمُوْا » . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِينَ وَقَصْرِهَا بَابُ أَمْرِ مَنْ نَعَسَ فِي صَلَاتِهِ، أَوِ اسْتَعْجَمَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ، أَوِ الذِّكْرُ بِأَنْ يَرْقُدَ، أَوْ يَقْعُدَ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ ذٰلِكَ رقم الحديث ٢٢٠ (٧٨٥) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٢٦٠٩٥ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٣٥٩، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ٤٧٣٦ .

۷ . علامه ابن قیم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې نبي علیه السلام په دِين کې د هغه سختۍ نه منع کړی چې هغه په جائز مقدار باندې زیاتي وي ، او پیغمبر علیه السلام دا خبر ورکړی چې څوک په ځان باندې سختي کوي نو الله تعالی هم په ده باندې سختي کوي .

مثلاً یو کس په ځان باندې د نذر په ذریعه سخت او ګران عبادت لازم کړي نو اوس په ده باندې د هغې پوره کول لازمي دي ، نو دا سختي ده په ځان باندې په خپله لازم کړه .

یا مثلاً یو کس په وَسوسه باندې عمل کوي نو په دې سره دا وَسوسه دده بیماري اوګرځي ، او ده ته په خپله سخته شي . (۱)

## بنده لره خپل ځان په مشقت کې اچولو نه الله ﷻ بې نیازه دی

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم یو بُوډا اُولید چې د خپلو زامنو په تَکیه باندې پیاده (حج ته) روان وُ (یعنی په خپله نه شو تللی ، بلکه د ځامنو په اُوګو باندې یې لاسونه اَچولي وو ، او پیاده حج ته روان وُ) .

نبي علیه السلام پوښتنه اوکړه :

مَا بَالُ هٰذَا ؟ . دا په ده څه شوي ؟

خلقو ورته وویل : ده دا نذر کړی چې پیاده به (حج ته) ځي .

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم اوفرمايل :

إِنَّ اللهَ عَنْ تَعْذِيبِ هٰذَا نَفْسَهُ لَغَنِيٌّ .

بیشکه الله تعالی د دینه بې نِیازه دی چې دا خپل ځان په مشقّت کې واچوي .

---

(۱) قال ابن القيم رَحِمَهُ اللهُ : نَهَى النبيّ صلى الله عليه وآله وسلم عن التّشديد في الدّين، وذلك بالزيادة على المشروع. وأخبر أنّ تشديدَ العبد على نفسه هو السّبب لتشديد الله عليه. إما بالقدر، وإمّا بالشرع. فالتّشديد بالشرع : كما يشدد على نفسه بالنّذر الثقيل. فيلزمه الوفاء به، وبالقدر كفعل أهل الوسواس. فإنّهم شدّدوا على أنفسهم فشدد عليهم القدر. حتى استحكم ذلك وصار صفة لازمة لهم. إغاثة اللهفان من مصايد الشيطان لابن القيم ج١ ص ٣٢ ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ج١ ص ٢٥٧ .

بيا پيغمبر عليه السلام ده ته (په سوَرلۍ باندې) د سوَرېدو حکم اوکړو. (۱)

## نرمي به د شريعت په حُدودو کې دننه وي

په آخر کې په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې د نرمۍ مطلب دا ندی چې انسان د خلقو ټولې خبرې اومني او هغوی چې څه غواړي هغه پوره کوي، بلکه نرمي ديته وايي چې انسان د الله ﷻ او رسول ﷺ د احکاماتو مطابق د خلقو سره آساني اوکړي، د نرمۍ معامله ورسره اوکړي، او الله و رسول چې د کوم څيز په باره کې حُکم نه وي کړی په هغې کې په خلقو باندې سختي اونکړي. (۲)

مسلمان به د اِعتدال نه کار اخلي، شريعت چې په کوم ځای کې د نرمۍ حکم کړی هلته به نرمي کوي، او کوم ځای يې چې د سختۍ حُکم کړی هلته به سختي کوي. (۳)

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى شَيْخًا يُهَادَى بَيْنَ ابْنَيْهِ، قَالَ: «مَا بَالُ هٰذَا؟»، قَالُوا: نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ، قَالَ: «إِنَّ اللّٰهَ عَنْ تَعْذِيبِ هٰذَا نَفْسَهُ لَغَنِيٌّ»، وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ. صحيح البخاري كتاب جزاء الصيد بَابُ مَنْ نَذَرَ الْمَشْيَ إِلَى الْكَعْبَةِ رقم الحديث ۱۸۶۵، صحيح مسلم كتاب النَّذْرِ بَابُ مَنْ نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ إِلَى الْكَعْبَةِ رقم الحديث ۹(۱۶۴۲)، سنن ابي داؤد كِتَاب الْأَيْمَانِ وَالنُّذُورِ بَابُ مَنْ رَأَى عَلَيْهِ كَفَّارَةً إِذَا كَانَ فِي مَعْصِيَةٍ رقم الحديث ۳۳۱۰، سنن الترمذي باب من جاء فيمن يحلف بالمشي ولايستطيع رقم الحديث ۱۵۳۷، سنن النسائي رقم الحديث ۳۸۵۲، مشكاة المصابيح باب في النذور الفصل الاول رقم الحديث ۳۴۳۱(۶).

(۲) قال ابن عثيمين: ولكن ما معنى الرفق؟ قد يظن بعض الناس أنّ معنى الرفق أن تأتي للناس على ما يشتهون ويريدون، وليس الأمر كذلك؛ بل الرفق أن تسير بالناس حسب أمر الله ورسوله، ولكن تسلك أقرب الطرق وأرفق الطرق الناس، ولا تشق عليهم في شيء ليس عليه أمر الله ورسوله، فإن شققت عليهم في شيء ليس عليه أمر الله ورسوله، فإنك تدخل في الطرف الثاني من الحديث، وهو الدعاء أن الله يشقق عليك والعياذ بالله. شرح رياض الصالحين لابن عثيمين ج ۳ ص ۶۳۴. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۲۵۴.

(۳) قال سفيان لأصحابه: تدرون ما الرفق؟ قالوا: قُلْ يا أبا محمد. قال: أن تضع الأمور من مواضعها الشدة في موضعها واللين في موضعه. والسيف في موضعه والسوط في موضعه. وهذه إشارة إلى أنه لا بد من مزج الغلظة باللين، والفظاظة بالرفق. كما قيل:

ووضع الندى في موضع السيف بالعلا ✿ مضر كوضع السيف في موضع الندى ←←←

# د غونډ تقرير خلاصه :

د غونډ تقرير خلاصه دا را اووته چې په قرآن کريم او احاديثو مباركه وُ كې د نرمۍ ډير فضائل او فوائد بيان شوي :

الله تعالى په هر كار كې نرمي خوښوي ، ډير ثوابونه او اجرونه پرې وركوي .

الله تعالى چې د چا سره محبت كوي يا ورته د خير اراده او كړي نو هغه ته نرمي وركړي .

چاته چې نرمي وركړې شوه نو هغه ته د دواړو جهانو خير وركړې شو ، او څوک چې د نرمۍ نه محروم كړې شو نو هغه د هر خير نه محروم شو .

د نرمۍ په وجه انسان د جهنم نه محفوظ كيږي او د جنت مستحق ګرځي .

د نرمۍ په وجه د انسان ګناهونه معاف كيږي ، په نرمۍ كې بركت او سختۍ كې سپيره والي دى .

د نرمۍ په وجه انسان د نورو خلقو محبوب ګرځي .

نرمي د ايمان په كامل والي ، خوش اخلاقۍ ، او حكمت باندې دلالت كوي .

د دينه علاوه د نرمۍ نور هم ډير فوائد بيان شوي .(۱)

---

←←← فالمحمود وسط بين العنف واللين كما في سائر الأخلاق . ولكن لمّا كانت الطباع إلى العنف والحدة أميل كانت الحاجة إلى ترغيبهم في جانب الرفق أكثر فلذلك كثر ثناء الشرع على جانب الرفق دون العنف و إن كان العنف في محله حسنًا كما أنّ الرفق في محله . احياء علوم الدين كتاب ذم الغضب والحقد والحسد ج ۳ ص ۱۸۶ ، وهكذا في الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۲۵۵ .

(۱) مِنْ فَوَائِدِ الرِّفْقِ : ۱. طَرِيْقٌ مُوَصِّلٌ إِلَى الْجَنَّةِ . ۲. دَلِيْلُ كَمَالِ الْإِيْمَانِ وَحُسْنِ الْإِسْلَامِ . ۳. يُثْمِرُ مَحَبَّةَ اللهِ وَمَحَبَّةَ النَّاسِ . ۴ . يُنَمِّي رُوْحَ الْمَحَبَّةِ وَالتَّعَاوُنِ بَيْنَ النَّاسِ . ۵ . دَلِيْلٌ عَلَى صَلَاحِ الْعَبْدِ وَحُسْنِ خُلُقِهِ . ۶. يُنْشِئُ مُجْتَمَعًا سَالِمًا مِنَ الْغِلِّ وَالْعُنْفِ . ۷ . عُنْوَانُ سَعَادَةِ الْعَبْدِ فِي الدَّارَيْنِ . ۸. اَلرِّفْقُ يُزَيِّنُ الْأَشْيَاءَ . ۹. رِفْقُ الْوَالِي بِالرَّعِيَّةِ مَدْعَاةٌ لِأَنْ يَرْفُقَ اللهُ بِالرَّعِيَّةِ ۱۰ . حَظُّ الْإِنْسَانِ مِنَ الْخَيْرِ هُوَ بِمِقْدَارِ حَظِّهِ مِنَ الرِّفْقِ . ۱۱. اَلرِّفْقُ بِالْحَيَوَانِ فِي إِطْعَامِهِ أَوْ ذَبْحِهِ مِنْ مَظَاهِرِ الْإِحْسَانِ . ۱۲. اَلرِّفْقُ دَلِيْلٌ عَلَى فِقْهِ الرَّجُلِ وَأَنَاتِهِ وَحِكْمَتِهِ . نضرة النعيم ج ۶ ص ۲۱۶۸ الرفق .

نبي عليه السلام به هم ډېره نرمي کوله ، په شرعي احکاماتو باندې به يې خلق په نرمۍ طريقې سره پوهه کول ، بياخاصکر د ناپوهه خلقو ، يتيمانو ، ماشومانو ، زَنانهٔ او غلامانو سره خو يې ډېره نرمي کوله . او نرمي کوونکو ته يې دُعا کړې .

لهذا انسان ته په کار دي چې شريعت ده ته په کومو ځايونو کې د نرمۍ کولو حُکم کړې وي هلته نرمي اوکړي ، او په کومو ځايونو کې يې چې ورته د سختۍ حُکم کړې وي هلته سختي اوکړي . يعنی نرمي به د شريعت په حُدودو کې دننه کوي .

**دُعا** : الله تعالی دې په مونږ کې هم نرمي ، خوش اخلاقي ، تواضع او نور ښائسته صفات پيدا کړي .

او ربِّ کائنات دې مونږ ټول د بدو صفاتو نه محفوظ اُوساتي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴾

الاعراف آیة ۱۹۹.

# د معافی فضائل او فوائد




آبُو الشَّمْس مولانا نُورُ الْهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دارُ العلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی مردان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د معافي فضائل او فوائد

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهُ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهُ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُ وَتَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ، اَمَّا بَعْدُ فَقَدْ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِى الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴾ . (۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيْلَ ﴾ . (۲)

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ ، وَمَا زَادَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا ، وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ . (۳)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ .

## تمهيدي خبره

عزت مندو مسلمانانو ورونو ! په ښائسته صفتونو کې يو صفت عَفوه ( دَرګُزر او معافي ) هم دی ، په قرآن کريم او احاديثو کې د معافۍ ډير فضائل ، فوائد او حِکمتونه ذکر شوي ، همدارنګې نبي عليه السلام په خپل ژوند کې هم د معافۍ بهترينه نمونه د خپل اُمت د پاره پيش کړی .

---

(۱) الاعراف آية ۱۹۹ .

(۲) الحجر آية ۸۵ .

(۳) صحيح مسلم كتاب البِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ اسْتِحْبَابِ الْعَفْوِ وَالتَّوَاضُعِ رقم الحديث ۶۹(۲۵۸۸) ، مشكوة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الاول رقم الحديث ۱۸۸۹(۲) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۰۰۸ ، موطاء مالک باب ماجاء فى التعفف عن المسالة ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۲۴۸ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۷۴ ، كنز العمال رقم الحديث ۱۵۷۶۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۸۵۸(۳) الترغيب فى الصدقة والحث عليها .

# د عَفوې لغوي او اِصطلاحي معنىٰ

معافی ته په عربي ژبه کې " عَفُوَ " وايي.

دعَفوې لغوي معنى ده : يو څيز پرېښودل ، يا مَحوه کول. (۱)

او اِصطلاحي تعريف يې دادی :

وَهُوَ التَّجَاوُزُ عَنِ الذَّنْبِ وتَرْكُ الْعِقَابِ عَلَيْهِ. (۲)

د ګناه معاف کول، او هغه ته پرې عذاب نه ورکول.

امام بغوي رَحِمَهُ اللَّهُ د عَفوې اِصطلاحي تعريف داسې ذکر کړی :

كَفُّ الضَّرَرِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ، وَكُلُّ مَنِ اسْتَحَقَّ عُقُوبَةً فَتَرَكَهَا فَهٰذَا التَّرْكُ عَفْوٌ. (۳)

د قدرت باوجود چاته ضَرَر نه رسول. او څوک چې د سزا مستحق شي او دا يې پرېږدي نو دې سزا نه ورکولو ته عَفوه وايي.

علماؤ د عَفوې نور اِصطلاحي تعريفونه هم کړي. (۴)

---

(۱) اَلعَفْوُ لُغَةً : مَصْدَرُ قَوْلِهِمْ عَفَا يَعْفُو عَفْوًا، وَهُوَ مَأْخُوذٌ مِنْ مَادَّةِ (ع ف و) اَلَّتِيْ تَدُلُّ عَلَى مَعْنَيَيْنِ أَصْلِيَّيْنِ: اَلْأَوَّلُ : تَرْكُ الشَّيْءِ ، وَالْآخَرُ طَلَبُهُ ، وَمِنَ الْمَعْنَى الْأَوَّلِ عَفْوُ اللهِ تَعَالَى عَنْ خَلْقِهِ، وَذٰلِكَ تَرْكُهُ إِيَّاهُمْ فَلَا يُعَاقِبُهُمْ فَضْلًا مِنْهُ تَعَالَى. قَالَ الْخَلِيْلُ : اَلْعَفْوُ تَرْكُكَ إِنْسَانًا اِسْتَوْجَبَ عُقُوْبَةً فَعَفَوْتَ عَنْهُ... وَقَالَ الْجَوْهَرِيُّ: يُقَالُ : عَفَوْتُ عَنْ ذَنْبِهِ إِذَا تَرَكْتَهُ وَلَمْ تُعَاقِبْهُ .... وَقَالَ ابْنُ الْأَثِيْرِ : أَصْلُ الْعَفْوِ : اَلْمَحْوُ وَالطَّمْسُ. نضرة النعيم ج ۷ ص ۲۸۸۹ العفو والغفران. مقاييس اللغة ۴/ ۵۶ ، وكتاب العين للخليل بن احمد ۲/ ۲۵۸ ، والمفردات للراغب ص ۳۴۰ ، والصحاح ۶/ ۲۴۳۳ ، والنهاية ۲/ ۲۶۵، ولسان العرب لابن منظور ج ۱۵ ص ۷۲ فصل العين المهملة

(۲) وَهُوَ التَّجَاوُزُ عَنِ الذَّنْبِ وتَرْكُ الْعِقَابِ عَلَيْهِ، وأَصلُه الْمَحْوُ والطَّمْسُ .... وَكُلُّ مَنِ اسْتَحَقَّ عُقُوبَةً فَتَرَكْتَهَا فَقَدْ عَفَوْتَ عَنْهُ. لسان العرب لابن منظور ج ۱۵ ص ۷۲ فصل العين المهملة. تحفة الأحوذي للمباركفوري ۶/ ۱۴۳.

(۳) نضرة النعيم ج ۷ ص ۲۸۹۰ العفو والغفران ، الكليات ص ۵۳ و ص ۵۹۸.

(۴) قَالَ الْمُنَاوِيْ رَحِمَهُ اللَّهُ : اَلْعَفْوُ : اَلْقَصْدُ لِتَنَاوُلِ الشَّيْءِ وَالتَّجَاوُزُ عَنِ الذَّنْبِ. التوقيف على مهمات التعاريف للمناوي التوقيف ص ۲۴۳ باب العين فصل الفاء

# الله تعالی ډیر عفوه کوونکي دی

عفوه د الله تعالی فِعلي صفت دی، د الله ﷻ په نومونو کې یو نوم "عَفُوٌّ" هم دی. (١)
انسان اګر چې د الله تعالی نافرماني کوي خو بیا هم دده ډیر ګناهونه معاف کوي، او سمدستي پرې سزا نه ورکوي، ربِّ کریم فرمایي:

﴿ وَمَآ أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا۟ عَن كَثِيرٍ ﴾. (٢)

ترجمه: او تاسو ته چې څه مصیبت دَرَسي نو دا ستاسو د لاسونو د عمَل په وجه دَر رسي، او (الله تعالی) ډیر ګناهونه (درته) معاف کوي.

ډیر کافران د الله ﷻ د پاره اَولاد هم ثابتوي (یعنی حضرت عیسیٰ علیه السلام ته د الله ﷻ ځوي وایي، او فرښتو ته د الله ﷻ لورانې وایي. نَعُوذُ بِالله) خو بیا هم الله ﷻ صبر کوي او دوی ته په دُنیا کې سمدَستي سزا نه ورکوي، بلکه ددې باوجود روغ صِحت او رِزق ورکوي. (٣)

---

(١) اَلعَفُوُ صِفَةٌ فِعْلِيَّةٌ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. ثَابِتَةٌ لَهُ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ، وَمَعْنَاهَا: الصَّفْحُ عَنِ الذُّنُوبِ. و "الْعَفُوُّ" اِسْمٌ لِلّٰهِ تَعَالٰى. قَالَ تَعَالٰى: إِنَّ اللهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا. [النساء آية ٤٣]. وَقَالَ تَعَالٰى: عَفَا اللهُ عَنْكَ لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ. [التوبة آية ٤٣]. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ١ ص ٤٢٤ العفو والصفح العَفو صفة من صفات الله عز وجل.

(٢) الشورى آية ٣٠.

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې په قرآن کریم کې دا افضل ترین آیت دی: قَالَ عَلِيٌّ رضي الله عنه: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلِ آيَةٍ فِي كِتَابِ اللهِ تَعَالٰى حَدَّثَنَا بِهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ}، وَسَأُفَسِّرُهَا لَكَ يَا عَلِيُّ: مَا أَصَابَكُمْ مِنْ مَرَضٍ، أَوْ عُقُوبَةٍ، أَوْ بَلَاءٍ فِي الدُّنْيَا، فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ، وَاللهُ تَعَالٰى أَكْرَمُ مِنْ أَنْ يُثَنِّيَ عَلَيْهِمِ الْعُقُوبَةَ فِي الْآخِرَةِ، وَمَا عَفَا اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ فِي الدُّنْيَا، فَاللهُ تَعَالٰى أَحْلَمُ مِنْ أَنْ يَعُودَ بَعْدَ عَفْوِهِ. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٦٤٩، المستدرک علی الصحيحين للحاكم رقم الحديث ٨١٦٦، كنز العمال رقم الحديث ٤٥٩١.

(٣) قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَحَدٌ أَصْبَرُ عَلَى أَذًى سَمِعَهُ مِنَ اللهِ، يَدَّعُونَ لَهُ الْوَلَدَ، ثُمَّ يُعَافِيهِمْ وَيَرْزُقُهُمْ. صحيح البخاري كِتَابُ التَّوْحِيدِ بَابُ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: {إِنَّ اللهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ} رقم الحديث ٧٣٧٨، مسند احمد رقم الحديث ١٩٥٨٩، مشكاة المصابيح كتاب الإيمان الفصل الأول رقم ٢٣(٢٢).

تر دې چې که يو کافر د کُفر نه توبه اُوباسي او اِيمان راوړي نو الله ﷻ ورته معافي کوي. الله تعالى نبي عليه السلام ته فرمايي:

﴿ قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ يَّنْتَهُوْا يُغْفَرْ لَهُمْ مَّا قَدْ سَلَفَ ﴾. (۱)

ترجمه: (اې پيغمبره!) ته دې کافرانو ته ووايه که چيرته دوی د کُفر نه منع شي (توبه اُوباسي، او اسلام قبول کړي) نو تير شوي گناهونه به ورته اُوبخښلې شي.

همدارنګې که يو مسلمان د خپلو گناهونو نه توبه اُوباسي نو هم الله تعالى ورته معافي کوي، الله ﷻ فرمايي:

﴿ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴾. (۲)

ترجمه: اې پيغمبره! زما د طرف نه دې خلقو ته اووايه چې اې زما هغه بندګانو چاچې زياتې کړې په خپلو ځانونو باندې (يعنى کفر، شرک او کبيره گناهونه يې کړي) تاسو د الله د رحمت نه مه نا اُميده کيږئ، بيشکه الله تعالى ټول گناهونه بخښي، بيشکه هم دا بخښونکى او مهربان دى.

# د معافۍ حُکم

۱. الله تعالى فرمايي: ﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَاَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴾. (۳)

ترجمه: ته معافي کوه، د نيک کار حُکم کوه، او د جاهِلانو نه مخ واړوه.

---

←←← په مسلم شريف کې دا حديث په دې الفاظو ذکر دى: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَحَدٌ أَصْبَرَ عَلَى أَذًى يَسْمَعُهُ مِنَ اللّٰهِ تَعَالَى، إِنَّهُمْ يَجْعَلُوْنَ لَهُ نِدًّا وَيَجْعَلُوْنَ لَهُ وَلَدًا وَهُوَ مَعَ ذٰلِكَ يَرْزُقُهُمْ وَيُعَافِيْهِمْ وَيُعْطِيْهِمْ. صحيح مسلم كتاب صِفَةِ الْقِيَامَةِ وَالْجَنَّةِ وَالنَّارِ بَابُ لَا أَحَدَ أَصْبَرُ عَلَى أَذًى مِنَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ رقم الحديث ۵۰(۲۸۰۴).

(۱) الانفال آية ۳۸.

(۲) الزمر آية ۵۳.

(۳) الاعراف آية ۱۹۹.

۲. الله تعالی نبي عليه السلام ته فرمايي : ﴿ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ ﴾. (۱)
ترجمه : پس ته د دوی نه په ښه طريقې سره دَرګُزر اوکړه ( يعنی معاف يې کړه ).

## معافي کول د مُتّقيانو صفت دی

په سورة آل عِمران کې ذکر دي چې : دا جنت د مُتّقيانو د پاره تيار کړې شوې دی.
بيا الله تعالی د مُتّقيانو څه صفتونه ذکر کړي دي ، په هغې کې يو صفت دا هم دی :
﴿ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ ﴾. (۲)
ترجمه : دوی خلقو ته معافي کوي . (يعنی د خلقو کوتاهيانې معاف کوي ).

## معافی د تقوی سبب دی

الله تعالی فرمايي : ﴿ .... وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ﴾. (۳)
ترجمه : او که تاسو معافي اوکړي نو دا (خبره) تقوی ته ډيره نزدې ده .

## معافي کول د لوي هِمت کار دی

الله تعالی فرمايي : ﴿ وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴾. (۴)
ترجمه : او چا چې صبر اوکړو او معافي يې اوکړه نو بيشکه دا ډير د هِمت د کارونو نه دی.

## د معافۍ او دَرګُزر کولو په وجه مغفرت

الله ﷻ فرمايي : ﴿ وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا ۗ أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴾. (۵)

---

(۱) الحجر آية ۸۵ .

(۲) پوره آيتونه داسې دي ، الله تعالی فرمايي : ﴿ وَسَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ۝ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴾ . آل عمران آية ۱۳۳ ، ۱۳۴ .

(۳) البقرة آية ۲۳۷ .

(۴) الشوری آية ۴۳ .

(۵) النور آية ۲۲ .

ترجمه : او په کار ده چې دوی معافي او درګزر اوکړي ، آيا تاسو دا نه خوښوئ چې الله تعالی تاسو ته معافي اوکړي ؟ او الله ډير بخونکی مهربان دی .

## د آخرت نعمتونه د معافي کوونکو د پاره دي

الله تعالی چې د آخرت نعمتونه د کومو خلقو د پاره تيار کړي په هغې کې هغه خلق هم دي : ﴿ وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : او کله چې دوی غصه شي نو معافي کوي .

## معافي کوونکو د پاره د الله ﷻ د طرفه اجر

الله تعالی انسان ته د بدل اخيستلو اجازت ورکړی خو د معافۍ يې هم ډير اَجرونه ذکر کړي ، فرمايي :

﴿ وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُۥ عَلَى ٱللَّهِ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ . (۲)

ترجمه : او د بدۍ بدله هماغه شان ( د بل سره ) بدي کول دي ، خو څوک چې معافي اوکړي او اصلاح اوکړي نو دده اجر د الله ﷻ په ذمه دی ، بيشکه الله تعالی ظالمان نه خوښوي .

## په معافۍ سره د انسان عزت نور هم زياتيږي

۱ . د مسلم شريف او مشکوة شريف حديث دی ، رسول الله ﷺ فرمايي :

مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ ، وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا ، وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ .(۳)

---

(۱) الشوری آية ۳۷ .

(۲) الشوری اية ۴۰ .

(۳) صحيح مسلم كتاب البِرّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ اسْتِحْبَابِ الْعَفْوِ وَالتَّوَاضُعِ رقم الحديث ۶۹(۲۵۸۸) ، مشكوة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الاول رقم الحديث ۱۸۸۹(۲) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۰۰۸ ، موطاء مالک باب ماجاء فی التعفف عن المسألة ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۲۴۸ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۷۴ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۵۷۶۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۸۵۸(۳) الترغيب فی الصدقة والحث عليها .

صدقه مال نه کموي ( بلکه الله ﷻ په کې نور هم برکت اچوي ، او ثواب پرې ورکوي )،
او په معافئ کولو سره الله تعالی د بنده عزت نور هم زیاتوي ، او څوک چې د الله ﷻ د پاره
تواضع ( عاجزي ) اوکړي نو الله تعالی ( په دُنیا او آخرت دواړو کې ) د هغه درجه نوره هم
اُوچتوي .

**تشريح** : په دې حديث کې ذکر شو چې " په معافئ سره د بنده عزت نور هم زياتيږي "
علماؤ ددې دوه مطلبه بيان کړي :

اول دا چې په دُنيا کې هر کس د عفوه کوونکي سره مينه کوي ، او د خلقو په زړونو کې
دده عزت او محبت نور هم زيات شي .

دويم مطلب يې دا دی چې الله تعالی به په آخرت کې ده ته ددې ډير أجر ورکړي ، او هلته
به ده ته ډير عزت ملاؤ شي . (۱)

۴ . په يو بل حديث کې ذکر دي ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

ثَلَاثٌ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنْ كُنْتُ لَحَالِفًا عَلَيْهِنَّ : لَا يَنْقُصُ مَالٌ مِنْ صَدَقَةٍ
فَتَصَدَّقُوْا ، وَلَا يَعْفُوْ عَبْدٌ عَنْ مَظْلَمَةٍ يَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ بِهَا عِزًّا ، وَلَا يَفْتَحُ عَبْدٌ
بَابَ مَسْأَلَةٍ إِلَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ . (۲)

قَسَم په هغه ذات چې د محمد ( ﷺ ) ساه د هغه په قبضهٔ قدرت کې ده درې خبرې
داسې دي چې زه خامخا د هغې په صداقت باندې قَسَم کوم :

( اول دا چې ) په صدقې سره مال نه کميږي ، لهذا تاسو صدقه ورکوئ .

(۱) قال القاضي عياض رَحِمَهُ اللهُ : وقوله : " وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا " فيه وجهان : أحدهما : ظاهره
أن من عرف بالصفح والعفو ساد وعظم في القلوب و زاد عزه . الثاني : أن يكون أجره على ذلك في الآخرة
وعزته هناك . إكمال المعلم للقاضي عياض ۲۸/۸ . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج۱ ص ۴۲۶ .

(۲) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۶۷۴ ، مجمع الزوائد كِتَابُ الزَّكَاةِ بَابُ مَا نَقَصَ مَالٌ مِنْ صَدَقَةٍ رقم الحديث
۴۵۷۷ ، و رواه البزار ۲۴۴/۳ ، و ابويعلی ۱۵۹/۲ وصحّحه الشوكاني في نيل الاوطار ۱۷۷/۷ ، وصححه الالباني في
صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۴۶۲ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۴۲۷ .

(دويم دا :) په کوم بنده باندې چې ظلم اوشي او دا د الله ﷻ د رَضا د پاره معافي اوکړي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ ده ده عزت نور هم زيات کړي.
او (دريم دا :) کوم بنده چې (په خپل ځان باندې) د سوال دَروازه پرانيزي (يعنى د خلقو نه سوال کوي) نو الله تعالى به په ده باندې د فقيرۍ دروازه پرانيزي.

۳. په مسند احمد او مشکوة شريف کې دا واقعه ذکر ده : حضرت ابوهريرة ﷺ فرمايي چې يو سړي حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته کنځل کول او په دې وخت کې نبي عليه السلام هم په مجلس کې ناست ؤ ، پيغمبر عليه السلام (ددې سړي په بې حَيايۍ او د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په صبر باندې) تعجب کولو ، او تبسّم يې کولو (چې دا کنځل کوونکی د سزا مستحق جوړيږي او په حضرت ابوبکر صديق ﷺ باندې د الله ﷻ رَحمتونه راوريږي).
کله چې دې سړي ډيرې کنځلې اوکړې (او د حَد نه تېر شو) نو حضرت ابوبکرصديق ﷺ د هغه د بعضو خبرو جواب ورکړو (يعنى په جواب کې يې ورته څه بَد رَد وويل ، ځکه انسان ته د بدل اخيستلو اجازت شته ، خو بيا هم د خواصو مرتبه ډيره اُوچته وي ، د دوی د پاره مناسب وي چې بدل وانخلي او معافي اوکړي).
پس نبي عليه السلام غصه (خفه) شو ، او د هغه مجلس نه پاڅيد (ځکه د حضرت ابوبکر صديق ﷺ مرتبه ډيره اُوچته وه ، ددې مرتبې تقاضا دا وه چې معافي يې کړې وی).
حضرت ابوبکر صديق ﷺ د نبي عليه السلام پسې ورغی او (د عُذر پيش کولو او ځان پوهه کولو د پاره) ورته وې فرمايل :
اې د الله رسوله ! هغه چې ما ته کنځلې کولې نو تاسو ناست وَی، خو چې ما هغه ته جواب ورکړو نو تاسو غصه شوی او پاڅيدی (نو په دې کې څه حِکمت دی ؟)
نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :
إِنَّهُ كَانَ مَعَكَ مَلَكٌ يَرُدُّ عَنْكَ ، فَلَمَّا رَدَدْتَ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ وَقَعَ الشَّيْطَانُ فَلَمْ أَكُنْ لِأَقْعُدَ مَعَ الشَّيْطَانِ.

بیشکه د تا سره یوه فرښتنه وه ( کله چې ته خاموشه وی ) هغې به ستا د طرفه هغه کس ته جواب ورکول ، پس کله چې تا هغه ته د بعضې خبرې جواب ورکړو نو شیطان مینځ ته راغی ( او فرښته لاړه ) ، او زه د شیطان سره نه کینم .

بیا نبي علیه السلام حضرت ابوبکرصدیق ﷺ ته او فرمایل :

يَا أَبَا بَكْرٍ ! ثَلَاثٌ كُلُّهُنَّ حَقٌّ : مَا مِنْ عَبْدٍ ظُلِمَ بِمَظْلَمَةٍ فَيُغْضِيَ عَنْهَا لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا أَعَزَّ اللهُ بِهَا نَصْرَهُ . وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ عَطِيَّةٍ يُرِيدُ بِهَا صِلَةً إِلَّا زَادَهُ اللهُ بِهَا كَثْرَةً ، وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ يُرِيدُ بِهَا كَثْرَةً إِلَّا زَادَهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ بِهَا قِلَّةً . (۱)

اې ابوبکر ! درې خبرې دي او هغه ټولې حقې دي : ۱ . په کوم بنده باندې چې څه ظلم اوشي او دا په هغې باندې خاص د الله ﷻ د رَضا د پاره چشم پُوشي اوکړي ( یعنی هغه کس معاف کړي ) نو الله تعالی ( په دُنیا او آخرت دواړو کې ) د خپل مدد په ذریعه دده عزت کوي ( او دا مضبوطوي ) .

۲ . کوم بنده چې د عَطایاوُ ( یعنی بل ته د صدقې ورکولو ) دروازه پرانیزي او دده مقصد په دې سره صِله رَحمي وي ( یعنی د رِشته دارو او مسکینانو سره مالي مدد کول وي ) نو الله تعالی به د دې صدقې په ذریعه دده مال ډیر کړي .

۳ . او کوم بنده چې ( په خپل ځان باندې ) د سوال دَروازه پرانیزي ( یعنی د خلقو نه

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ ، أَنَّ رَجُلًا شَتَمَ أَبَا بَكْرٍ ﷺ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ . فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْجَبُ وَيَتَبَسَّمُ . فَلَمَّا أَكْثَرَ رَدَّ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ . فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَامَ . فَلَحِقَهُ أَبُو بَكْرٍ ﷺ . فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! كَانَ يَشْتُمُنِي وَأَنْتَ جَالِسٌ فَلَمَّا رَدَدْتُ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ غَضِبْتَ وَقُمْتَ . قَالَ : إِنَّهُ كَانَ مَعَكَ مَلَكٌ يَرُدُّ عَنْكَ . فَلَمَّا رَدَدْتَ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ وَقَعَ الشَّيْطَانُ فَلَمْ أَكُنْ لِأَقْعُدَ مَعَ الشَّيْطَانِ . ثُمَّ قَالَ : يَا أَبَا بَكْرٍ ! ثَلَاثٌ كُلُّهُنَّ حَقٌّ : مَا مِنْ عَبْدٍ ظُلِمَ بِمَظْلَمَةٍ فَيُغْضِيَ عَنْهَا لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا أَعَزَّ اللهُ بِهَا نَصْرَهُ . وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ عَطِيَّةٍ يُرِيدُ بِهَا صِلَةً إِلَّا زَادَهُ اللهُ بِهَا كَثْرَةً . وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ يُرِيدُ بِهَا كَثْرَةً إِلَّا زَادَهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ بِهَا قِلَّةً . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۶۲۴ ، مشكاة المصابيح بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ الْفَصْلُ الثَّالِثُ رقم الحديث ۵۱۰۲(۳۵) ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۳۶۹۸ ، تفسير ابن كثير ج۷ ص ۲۱۴ ، الدر المنثور في التفسير بالمأثور ج۲ ص ۳۲۰ .

سوال کوي ) او مقصد يې په دې سره مال ډيرول وي نو الله تعالی به د دې سوال په سبب د ده مال نور هم کم کړي .

## د قدرت باوجود معافي کوونکې د الله ﷻ په نزد ډير مُعزّز دی

د مشکوة شريف حديث دی ، نبي عليه السلام اوفرمايل چې حضرت موسیٰ عليه السلام الله ﷻ ته عرض اوکړو : يَارَبِّ ! مَنْ أَعَزُّ عِبَادِكَ عِنْدَكَ ؟
اې ربه ! ستا په بندګانو کې تاته ډير معزّز څوک دی ؟
الله ﷻ ورته اوفرمايل : مَنْ إِذَا قَدَرَ غَفَرَ .
هغه کس ( ماته ډير مُعزّز دی ) چې کله د بدل اخيستلو قدرت اُومومي نو معافي اوکړي . (۱)

## معافي کوونکې په ټولو خلقو کې مُعزّز کس دی

د حضرت ابودرداء ﷺ نه پوښتنه اوشوه :
مَنْ أَعَزُّ النَّاسِ ؟ په خلقو کې ډير مُعزّز کس څوک دی ؟
ده ورته اوفرمايل : اَلَّذِيْ يَعْفُوْ إِذَا قَدَرَ ، أُعْفُوْا يُعِزَّكُمُ اللهُ .
څوک چې ( په بدل اخيستلو ) قادِر شي او معافي اوکړي ، پس تاسو معافي کوئ الله تعالی به تاسو مُعزّز کړي . (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ مُوْسٰى بْنُ عِمْرَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: يَارَبِّ ! مَنْ أَعَزُّ عِبَادِكَ عِنْدَكَ ؟ قَالَ : مَنْ إِذَا قَدَرَ غَفَرَ . مشكاة المصابيح بَابُ الغَضَبِ وَالكبر الفَصْل الثَّالِث رقم الحديث ۵۱۲۰(۱۷) ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۷۴ ، كنزالعمال رقم الحديث ۷۰۰۶ ، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج۷ ص ۳٦۰ .

(۲) سُئِلَ أَبُو الدَّرْدَاءِ ﷺ : مَنْ أَعَزُّ النَّاسِ ؟ قَالَ : اَلَّذِيْ يَعْفُوْ إِذَا قَدَرَ ، أُعْفُوْا يُعِزَّكُمُ اللهُ . بريقة محمودية في شرح طريقة محمدية وشريعة نبوية في سيرة احمدية ج۲ ص ۲٦۵ ، نهاية الأرب في فنون الأدب ج٦ ص ۵۸ ذكر ما قيل في العفو ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۴۲۸ اقوال السلف والعلماء في العفو والصفح.

## د عفوه کوونکي د پاره د قيامت په ورځ پوره بدله

حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه فرمايي : مونږ ته دا خبره رارسيدلې چې الله تعالی به د قيامت په ورځ يو آواز کوونکي ته حُکم اوکړي هغه به دا آواز اوکړي :

مَنْ كَانَ لَهُ عِنْدَ اللهِ شَيْءٌ فَلْيَقُمْ .

د چا چې د الله ﷻ سره څه څيزوي هغه دې پاڅي.

نو هغه خلق به پاڅي چې هغوی په دُنيا کې نورو خلقو ته معافي کوله ، پس الله تعالی به دوی ته د خلقو د معاف کولو پوره بدله ورکړي . (۱)

## د معافۍ په وجه د قيامت په ورځ حساب آسانيدل او د جنت مستحق کيدل

۱ . حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل :

ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ حَاسَبَهُ اللهُ حِسَابًا يَسِيْرًا وَأَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِهِ .

درې کسان داسې دي چې په چا کې دا خبرې وي نو الله تعالی به دده سره آسان حِساب اوکړي ، او په خپل رَحمت سره به يې جنت ته داخل کړي .

صحابه کرامو پوښتنه اوکړه : هغه درې کسان څوک دي ؟ نبي عليه السلام اوفرمايل :

تُعْطِيْ مَنْ حَرَمَكَ، وَتَعْفُوْ عَمَّنْ ظَلَمَكَ، وَتَصِلُ مَنْ قَطَعَكَ .

څوک چې تا مَحرومه کوي هغه ته ورکړه کوه ، څوک چې درباندې ظلم کوي هغه ته معافي کوه ، او څوک چې درسره صِله رَحمي کټ کوي د هغه سره صِله رَحمي کوه .

حضرت ابوهريرة رضي الله عنه نبي عليه السلام ته اوفرمايل : اې د الله رسوله ! چې کله زه دا کارونه اوکړم نو زما د پاره به څه وي ؟ نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

أَنْ تُحَاسَبَ حِسَابًا يَسِيْرًا ، وَيُدْخِلَكَ اللهُ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِهِ .

---

(۱) عَنْ أَبِيْ بَكْرٍ رضي الله عنه أَنَّهُ قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ اللهَ تَعَالَى يَأْمُرُ مُنَادِيًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُنَادِيْ : مَنْ كَانَ لَهُ عِنْدَ اللهِ شَيْءٌ فَلْيَقُمْ . فَيَقُوْمُ أَهْلُ الْعَفْوِ . فَيُكَافِئُهُمُ اللهُ بِمَا كَانَ مِنْ عَفْوِهِمْ عَنِ النَّاسِ . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۱۸۳ فَضِيلَةُ الْعَفْوِ وَالإِحْسَانِ ، نضرة النعيم ج ۷ ص ۲۹۰۷ العفو والغفران .

د تاسره به آسان حساب اوشي ، او الله تعالی به تا په خپل رَحمت سره جنت ته داخل کړي.(۱)

۲ . رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُشْرِفَ لَهُ الْبُنْيَانُ وَتُرْفَعَ لَهُ الدَّرَجَاتُ فَلْيَعْفُ عَمَّنْ ظَلَمَهُ، وَلْيُعْطِ مَنْ حَرَمَهُ، وَيَصِلْ مَنْ قَطَعَهُ.

څوک چې په دې باندې خوشحالیږي چې په جنت کې دده بَنګلې اُوچتې شي او دده درجې اُوچتې شي نو دا دې هغه چاته معافي کوي چې دده سره ظلم کوي ، او هغه چاته دې ورکړه کوي څوک چې دا مَحرومه کوي ، او هغه چا سره دې صِله رَحمي کوي چې دده سره خپلوَلي کټ کوي .(۲)

۳ . رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمايي چې کله الله تعالی ( د قیامت په ورځ ) مخلوقات راجمع کړي نو یو آواز کوونکی به آواز اوکړي :

أَيْنَ أَهْلُ الْفَضْلِ؟ د فضيلت واله خلق څوک دي ؟

نو څه خلق به راپاڅي او په تېزۍ سره به جنت ته روان وي . فرښتې به د دوی سره ملاو

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ حَاسَبَهُ اللهُ حِسَابًا يَسِيْرًا وَأَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِهِ » قَالُوْا : لِمَنْ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ: « تُعْطِيْ مَنْ حَرَمَكَ، وَتَعْفُوْ عَمَّنْ ظَلَمَكَ، وَتَصِلُ مَنْ قَطَعَكَ » قَالَ : فَإِذَا فَعَلْتُ ذٰلِكَ، فَمَا لِيْ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ : « أَنْ تُحَاسَبَ حِسَابًا يَسِيْرًا وَيُدْخِلَكَ اللهُ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِهِ » . المستدرک علی الصحیحین للحاکم رقم الحدیث ۳۹۱۲ وقال الحاکم: هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . مسند البزار رقم الحدیث ۸۶۳۵ ، السنن الکبری للبیهقي رقم الحدیث ۲۱۰۹۲ ، المعجم الاوسط رقم الحدیث ۵۰۶۴ ، الترغیب والترهیب للمنذري رقم الحدیث ۳۷۱۸ ، ورقم الحدیث ۳۸۱۵ ، مجمع الزوائد رقم الحدیث ۱۳۴۷۳ ، ورقم الحدیث ۱۳۶۹۷ ، الزواجر ج۲ ص۱۳۲ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۴۳۲۱۵ ، مکارم الاخلاق لابن ابي الدنيا ج ۱ ص۲۳ رقم ۲۱ .

(۲) المستدرک علی الصحیحین للحاکم رقم الحدیث ۳۱۶۱ وقال الحاکم: هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . مکارم الاخلاق للطبراني ج ۱ ص ۳۳۲ رقم ۵۷ ، الترغیب والترهیب للمنذري رقم الحدیث ۹ الترغیب فی العفو عن القاتل والجاني والظالم ، مجمع الزوائد رقم الحدیث ۱۳۶۹۵ ، المتجر الرابح ص ۳۶۲ .

شي او پوښتنه به ورنه اوکړي : إِنَّا نَرَاكُمْ سِرَاعًا إِلَى الْجَنَّةِ، فَمَنْ أَنْتُمْ؟

مونږ تاسو ګورو چې په ډيرې تيزۍ سره جنت ته ځئ ، پس تاسو څوک يئ ؟

دوی به ورته اُووايي : مونږ د فضيلت واله يو . فرښتې به ورته اووايي : ستاسو څه فضيلت وُ ؟ دوی به ورته اُووايي :

په دُنيا کې به چې کله د مونږ سره ظلم اوشو .نو مونږ به صبر کولو ، چې کله به مونږ ته تکليف رااُورسولې شو نو مونږ به معافي کوله ، او چې کله به د مونږ سره د جهالت ( بې وقوفتيا ) معامله اوشوه نو مونږ به صبر کولو .

پس دوی ته به وويلې شي : أُدْخُلُوا الْجَنَّةَ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِيْنَ .

تاسو جنت ته داخل شئ ، پس څه ښه دی اَجر د عمل کوونکو . (۱)

٤ . نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي چې کله خلق حساب ته اُودريږي ... نو بيا به يو آواز کوونکی آواز اوکړي :

لِيَقُمْ مَنْ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ، فَلْيَدْخُلِ الْجَنَّةَ .

د چا اَجر چې په الله ﷻ باندې وي هغه دې پاځي او جنت ته دې داخل شي .

په دويم ځل به هم همدغه آواز اوشي .

حضرت انس ﷺ پوښتنه اوکړه : هغه څوک دی چې د هغه اَجر په الله ﷻ باندې دی ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

اَلْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ .

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا جَمَعَ اللهُ تَعَالَى الْخَلَائِقَ نَادَى مُنَادٍ: أَيْنَ أَهْلُ الْفَضْلِ؟ فَيَقُوْمُ نَاسٌ هُمْ يَسِيْرٌ، فَيَنْطَلِقُوْنَ سِرَاعًا إِلَى الْجَنَّةِ فَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ، فَيَقُوْلُوْنَ: إِنَّا نَرَاكُمْ سِرَاعًا إِلَى الْجَنَّةِ، فَمَنْ أَنْتُمْ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: نَحْنُ أَهْلُ الْفَضْلِ، فَيَقُوْلُوْنَ: مَا كَانَ فَضْلُكُمْ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: كُنَّا إِذَا ظُلِمْنَا صَبَرْنَا، وَإِذَا أُسِيْءَ إِلَيْنَا غَفَرْنَا، وَإِذَا جُهِلَ عَلَيْنَا حَلُمْنَا. فَيُقَالُ لَهُمْ: أُدْخُلُوا الْجَنَّةَ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِيْنَ. شعب الايمان فصل فى التجاوز والعفو والمكافاة رقم الحديث ۷۷۳۱ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۲۰٦۴ الترغيب فى الرفق والاناة والحلم ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۱۷۸ ، المعجم الرابع ص ۳٦۳ رقم الحديث ۱٦۳ ، الزهد لابن ماجة ص ۳۴ . قال البيهقي: فِي إِسْنَادِهِ ضَعْفٌ وَاللهُ أَعْلَمُ .

څوک چې خلقو ته معافي کوي. (۱)

## معاف کوونکي ته الله ﷻ معافي کوي

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم په منبر باندې صحابه کرامو ته اوفرمايل :

إِرْحَمُوْا تُرْحَمُوْا، وَاغْفِرُوْا يَغْفِرِ اللهُ لَكُمْ.

په نورو باندې رَحم کوئ نو په تاسو به هم (د الله ﷻ د طرفه) رَحم اوکړې شي ، او نورو ته معافي کوي نو الله تعالى به ستاسو مغفرت هم اوکړي. (۲)

## بل ته معافي کول الله ﷻ ته محبوب عمل دی

۱. عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ به فرمايل : په ټولو کارونو کې الله ﷻ ته محبوب درې أعمال دي ، يو په هغې کې " د قدرت په وخت معافي کول " هم ده. (۳)

۲. سعيد بن مُسَيِّب رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

---

(۱) پوره حديث داسې دی : عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « إِذَا وَقَفَ الْعِبَادُ لِلْحِسَابِ جَاءَ قَوْمٌ وَاضِعِي سُيُوفِهِمْ عَلَى رِقَابِهِمْ، تَقْطُرُ دَمًا، فَازْدَحَمُوا عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ، فَقِيلَ : مَنْ هٰؤُلَاءِ ؟ قِيلَ: الشُّهَدَاءُ، كَانُوا أَحْيَاءً مَرْزُوقِينَ. ثُمَّ نَادَى مُنَادٍ : لِيَقُمْ مَنْ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ، فَلْيَدْخُلِ الْجَنَّةَ، ثُمَّ نَادَى الثَّانِيَةَ: لِيَقُمْ مَنْ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ، فَلْيَدْخُلِ الْجَنَّةَ . قَالَ : وَمَنْ ذَا الَّذِي أَجْرُهُ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ ؟ قَالَ: الْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ . ثُمَّ نَادَى الثَّالِثَةَ: لِيَقُمْ مَنْ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ، فَلْيَدْخُلِ الْجَنَّةَ . فَقَامَ كَذَا وَكَذَا أَلْفًا، فَدَخَلُوهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ. المعجم الاوسط للطبراني رقم الحديث ۱۹۹۸ ، حلية الاولياء ج٦ ص١٨٧ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۷۲۴ الترغيب في العفو عن القاتل والجاني والظالم ، وقال المنذري : رواه الطبراني بإسناد حسن. مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۸۷۱۴ ، المعجر الرابح في ثواب العمل الصالح ص ۳۶۳ ثواب من عفا عمن ظلمه او جنى عليه.

(۲) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٦٥٤١ ، و رقم الحديث ۷۰۴۱ ، صحيح الادب المفرد ۲۹۳/۳۸۰ باب رحمة البهائم ، شعب الايمان رقم الحديث ٦٨٤٣ ، و رقم الحديث ۱۰۵۴۱ ، مجمع الزوائد بابٌ فيمن يُصرّ على الذنب رقم الحديث ۱۷۳٦۹ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۹۷٦ .

(۳) كَانَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَحِمَهُ اللهُ يَقُوْلُ: إِنَّ مِنْ أَحَبِّ الْأُمُوْرِ إِلَى اللهِ الْقَصْدَ فِي الْجِدَةِ ، وَالْعَفْوَ عِنْدَ الْمَقْدِرَةِ ، وَالرِّفْقَ فِي الْوِلَايَةِ ، وَمَا رَفَقَ عَبْدٌ بِعَبْدٍ فِي الدُّنْيَا إِلَّا رَفَقَ اللهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. الزهد لهناد بن السري ج ۲ ص ٦٠٣ بَابُ الْحِلْمِ وَالْعَفْوِ. مصنف ابن ابي شيبة كَلَامُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ رقم ۳۵۰۸۸ ، روضة العقلاء ونزهة الفضلاء لابن حبان البستي ص ١٦٧ ذكر الحث على العفو عن الجاني ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ج١ ص ۴۲۸ .

مَا مِنْ شَيْءٍ إِلَّا اللهُ يُحِبُّ أَنْ يُعْفَى عَنْهُ مَا لَمْ يَكُنْ حَدًّا . (۱)

په هر شي کې الله تعالى معافي خوښوي خو چې حَد نه وي (مُحکه په حُدودو کې معافي نشته، بلکه د هغې جاري کول واجب دي).

بهر حال د مؤمن په اخلاقو کې افضل ترين صفت عَفوه ده. (۲)

## د ورځې اَويا (۷۰) کرَت خادم ته معافي کول

د ابوداؤد شريف حديث دی، حضرت عبد الله بن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې يو کس نبي کريم ﷺ ته راغی او ورته وې فرمايل: يَا رَسُولَ اللهِ! كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟

اې د الله رسوله! مونږ خادِم ته څو پيرې معافي کوو؟

نبي عليه السلام چُپ شو.

هغه کس دوباره همدا پوښتنه اوکړه، نبي عليه السلام بيا خاموش شو.

کله چې هغه کس په دريم ځل پوښتنه اوکړه، نو نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:

أُعْفُوا عَنْهُ فِي كُلِّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً. په هره ورځ ورته اَويا (۷۰) کرَت معافي کوئ. (۳)

د نبي عليه السلام مقصد دا دې چې خادم د ورځې هر څومره پيرې غلطي اوکړي هغه معاف کول په کار دي، دا مقصد ندې چې ګنې د اَويا پيرې نه پس يې اُووهئ، بلکه د اَويا عدد د کثرت د پاره استعماليږي، يعنی بار بار يې معاف کول په کار دي.

---

(۱) موطا الإمام مالک ج۲ ص ۸۴۳ كِتَابُ الْأَشْرِبَةِ بَابُ الْحَدِّ فِي الْخَمْرِ رقم الحديث ۴، نضرة النعيم ج ۷ ص ۲۹۱۰ العفو والغفران. موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۴۲۸.

(۲) عَنِ الْحَسَنِ قَالَ: أَفْضَلُ أَخْلَاقِ الْمُؤْمِنِ الْعَفْوُ. الآداب الشرعية والمنح المرعية ج ۱ ص ۷۱ فَصْلٌ فِي الْعَفْوِ عَمَّنْ ظَلَمَ وَجَعْلِهِ فِي حِلٍّ. موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۴۲۸.

(۳) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟ فَصَمَتَ. ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ. فَصَمَتَ. فَلَمَّا كَانَ فِي الثَّالِثَةِ، قَالَ: أُعْفُوا عَنْهُ فِي كُلِّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً. سنن ابي داود بَابٌ فِي حَقِّ الْمَمْلُوكِ رقم الحديث ۵۱۶۴ قال الالباني. صحيح. سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْعَفْوِ عَنِ الْخَادِمِ رقم الحديث ۱۹۴۹، كنز العمال رقم الحديث ۲۵۰۸۴، مسند احمد رقم الحديث ۵۸۹۹.

# نبي عليه السلام ډير معافي كوونكى ؤ

په نبي عليه السلام كې لكه څرنګې چې نور ښائسته اخلاق په كامِلې طريقې سره موجود وو نو همدغه شان عَفوه (نورو ته معافي كول) په كې هم په كامِلې طريقې سره موجود ؤ .

۱ . د مشكوة شريف حديث دى ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ښائسته اخلاق بيانوي ، په هغې كې دا هم دي :

... وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَعْفُوْ وَيَصْفَحُ . (۱)

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د بَدى بدله په بَدى نه اخيسته ، بلكه بَدي كوونكې به يې د زړه نه معاف كولو ، او ظاهرًا به يې هم د هغه سره د دَرګُزر (معافى) معامله كوله . (۲)

۲ . نبي عليه السلام ته د مكې كافرانو او د مدينې منوّرې يهودو ډير تكليفونه رسولي وو خو د هيچا نه يې هم ذاتي بدل نهٔ اخيستى ، البته چې چا به شرعي حُدود مات كړل نو په هغوى باندې به يې ضرور حَد جاري كول . (۳)

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَلَا سَخَّابًا فِي الْأَسْوَاقِ ، وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَعْفُوْ وَيَصْفَحُ . مشكاة المصابيح كتاب الفَضَائِل وَالشَّمَائِل بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم اَلْفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ۵۸۲۰(۲۰) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۶۴۴۳ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۳۰ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۶۲۳ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۸۷۰۸ ، سنن الترمذي باب ماجاء في خلق النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۲۰۱۶ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۲۴ ، مسند احمد رقم الحديث ۲۵۴۱۷ .

(۲) (وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ) . أَيْ بَلْ بِالْحَسَنَةِ لِقَوْلِهِ : (وَلٰكِنْ يَعْفُوْ) أَيْ : فِي الْبَاطِنِ (يَصْفَحُ) . أَيْ يُعْرِضُ فِي الظَّاهِرِ عَنْ صَاحِبِ السَّيِّئَةِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى : {فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ} [المائدة آية ۱۳] . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۷ في تشريح حديث ۵۸۲۰ .

(۳) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : مَا ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَطُّ بِيَدِهٖ ، وَلَا امْرَأَةً ، وَلَا خَادِمًا ، إِلَّا أَنْ يُجَاهِدَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ، وَمَا نِيْلَ مِنْهُ شَيْءٌ قَطُّ فَيَنْتَقِمَ مِنْ صَاحِبِهٖ إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ شَيْءٌ ←←←←←←←

همدارنګې نبي علیه السلام به جهاد هم کولو ، او په جهاد کې يې أبيّ بن خلف کافر وژلې دی ، ځکه جهاد د الله تعالی حُکم دی . د چا نه يې خپل ذاتي بدل ندې اخيستی .

ندې په باره کې درته يو څو واقعات رانقل کوم :

## نبي ﷺ هغه اَعرابي معاف کړو چې د دوی پسې يې توره راويستې وه

۱ . په بخاري شريف او مسلم شريف کې دا واقعه څو ځايه ذکر ده ، حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنهما فرمايي چې زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نَجد طرف ته غزا له تللې ووم ، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ( د جهاد نه ) راواپس شو نو زه هم ورسره راواپس شوم ، د قيلولې ( غرمې خوب ) په وخت داسې يو وادی ته راغی چې هلته ډيرې د اَزغو واله ( يعنی د کيکر ) ونې وی ( اِراده يې اوکړه چې دلته د غرمې خوب "قيلوله" اوکړي ) .

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې وادی کې ښکته شو ( په دې کې چونکې نمرۇ ) نو صحابه کرام د اُونو د سورې د پاره په وادی کې خواره شو ، نبي علیه السلام هم د کيکر يوې اُونې لاندې قِيام اوکړو ، خپله تُوره يې په اُونه کې راځوړنده کړه .

حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي : مونږ داسې لږ خوب اوکړو چې ناڅاپه رسول الله ﷺ مونږ ته آواز اوکړو ( چې دلته راشئ ) ، کله چې مونږ د هغوی په خدمت کې حاضر شو نو مونږ اُوکتل چې يو اَعرابي ( بانديچي ) د دوی سره ناست ؤ ، ( دا مُشرک ؤ ) .

رسول الله ﷺ اوفرمايل چې زه اُوده ووم ، دې کس زما توره د ماپسې راخيستې وه ، کله چې زه راويخ شوم نو ده دا توره د تيکي نه راويستې وه او لاس کې يې نيولې وه ، ده ماته ووېل :

---

←←← مِنْ مَحَارِمِ اللهِ، فَيَنْتَقِمَ لِلهِ عَزَّ وَجَلَّ . صحيح مسلم كتاب الفَضَائِلِ بَابُ مُبَاعَدَتِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلآثَامِ وَاخْتِيَارِهِ مِنَ الْمُبَاحِ، أَسْهَلَهُ وَانْتِقَامِهِ لِلهِ عِنْدَ انْتِهَاكِ حُرُمَاتِهِ رقم الحديث ۷۹ (۲۳۲۸) ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۵۳۲۸ ، مشكاة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الاول رقم الحديث ۵۸۱۸(۱۸) ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۱۷۹۴۲ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۴۵۹ ، سنن ابي داؤد بابٌ في التجاوز في الامر رقم الحديث ۴۷۸۶ ، سنن ابن ماجة باب ضرب النساء رقم الحديث ۱۹۸۴ ، سنن الدارمي رقم الحديث ۲۲۶۴ .

مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ؟ تا به د مانه څوک بچ کوي ؟

ما ورته وويل : اَللّٰهُ . الله ﷻ به مې درنه بچ کوي .

(نبي عليه السلام اوفرمايل ) اوس دا اوګورئ چې ناست دی .

(ددې حديث په آخر کې دي : )

ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

بيا رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته هيڅ سزا ورنکړه ( بلکه معاف يې کړو ) . (۱)

۲ . په احاديثو کې دا هم ذکر دي چې غَوْرَث بن حَارِثِ د نبي عليه السلام پسې توره رااُوويسته ، او ورته وې ويل :

مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ؟ تا به (اوس) د مانه څوک بچ کوي ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : اَللّٰهُ . الله ﷻ به مې درنه بچ کوي .

نو توره د هغه کس د لاس نه اُوغورځيده ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم رااواخيسته ، بيا نبي عليه السلام هغه کس ته وويل :

مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ؟ اوس به تا د مانه څوک بچ کوي ؟

---

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَخْبَرَهُ: أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ، فَلَمَّا قَفَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ، فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيْرِ الْعِضَاهِ، فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الْعِضَاهِ ، يَسْتَظِلُّوْنَ بِالشَّجَرِ، وَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ . قَالَ جَابِرٌ رضي الله عنه : فَنِمْنَا نَوْمَةً، ثُمَّ إِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْنَا فَجِئْنَاهُ . فَإِذَا عِنْدَهُ أَعْرَابِيٌّ جَالِسٌ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ سَيْفِيْ وَأَنَا نَائِمٌ. فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِيْ يَدِهِ صَلْتًا. فَقَالَ لِيْ : مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ؟ قُلْتُ: اَللّٰهُ. فَهَا هُوَ ذَا جَالِسٌ" ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. صحيح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِيْ بَابُ غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ رقم الحديث ۴۱۳۵ ، ورقم الحديث ۲۹۱۰، ورقم الحديث ۲۹۱۳ . صحيح مسلم كتاب الْفَضَائِلِ بَابُ تَوَكُّلِهِ عَلَى اللّٰهِ تَعَالَى، وَعِصْمَةِ اللّٰهِ تَعَالَى لَهُ مِنَ النَّاسِ رقم الحديث ۱۳(۸۴۳) ، مشكاة المصابيح باب التوكل والصبر الفصل الثالث رقم الحديث ۵۳۰۴(۱۰) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۴۳۳۵ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۵۳۷ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۱۲۸۳۴ .

هغه کس ورته وويل :

كُنْ كَخَيْرِ آخِذٍ . ته د توري ښه نيوونکی شه (يعنی ما معاف کړه) .

نبي ﷺ ورته اوفرمايل : آيا ته ددې ګواهي ورکوی چې د الله ﷻ نه علاوه بل معبود نشته او زه د الله ﷻ رسول يم ؟ (يعنی مسلمانيږی ؟ )

هغه کس وويل : نه . خو زه د تاسره دا وعده کوم چې د تاسو سره به نه جنګيږم ، او د هغه خلقو سره به هم نه ملګرې کيږم چې د تاسو سره جنګيږي .

نو نبي عليه السلام هغه پريخود . کله چې دا خپل قوم ته لاړ نو ورته وې ويل :

جِئْتُكُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ . زه تاسو ته د بهترين کس نه راغلی يم . (١)

# نبي عليه السلام د طائف خلق معاف کړل

د طائف خلقو نبي عليه السلام ته ډير تکليف اورسول ، خو بيا هم پيغمبر عليه السلام دوی معاف کړل .

په بخاري شريف او مسلم شريف کې دا واقعه ذکر ده : حضرت عائشې رضي الله عنها د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوکړه : هَلْ أَتَى عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ ؟

آيا په تاسو باندې د اُحد نه سخته ورځ راغلې ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : (تاته معلومه ده چې) ما ستا د قوم ( قريشو ) نه ډير تکليفونه برداشت کړي دي ، خو په دې ټول دَور کې په ما باندې سخته ورځ د " عقبې " و "

(١) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، قَالَ : قَاتَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحَارِبَ بْنَ خَصَفَةَ ، فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْهُمْ يُقَالُ لَهُ غَوْرَثُ بْنُ الْحَارِثِ حَتَّى قَامَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالسَّيْفِ . فَقَالَ : مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي ؟ قَالَ : « اَللهُ » فَسَقَطَ السَّيْفُ مِنْ يَدِهِ . فَأَخَذَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : « مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي ؟ » قَالَ : كُنْ كَخَيْرِ آخِذٍ . قَالَ : « وأَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ، وَأَنِّي رَسُوْلُ اللهِ ؟ » قَالَ : لَا . وَلٰكِنْ أُعَاهِدُكَ عَلَى أَنْ لَا أُقَاتِلَكَ ، وَلَا أَكُوْنَ مَعَ قَوْمٍ يُقَاتِلُوْنَكَ . فَخَلَّى سَبِيْلَهُ . فَأَتَى قَوْمَهُ فَقَالَ : جِئْتُكُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ١٥١٩٠ ، و رقم الحديث ١٣٩٢٩ ، مشكاة المصابيح باب التوكل والصبر الفصل الثالث رقم الحديث ٥٣٠٥(١١) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٢٨٨٣ ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ٤٣٢٢ وقال الحاكم : هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي .

کله چې ما خپل ځان ( د طائف سردار ) ابن عَبدِيَاليل ته پيش کړو ( يعنى هغه ته د دَعوت او پناه د پاره ورغلم ) ، خو ما چې د څه اِراده لرله هغه ده اُو نه منله ، پس زه د هغه ځای نه ډير غَمجَن راروان شوم .

( د طائف سردار او خلقو نبي عليه السلام ته ډيرې بدې رَدې خبرې اوکړې ، او تکليف يې ورته اورسول ، هلکان يې ورپسې کړل ، په کانړو يې دومره اُوويشت چې خپې مبارکې يې په وِينو رَنګ شوی ) .

( نبي عليه السلام فرمايي : ) کله چې زه قَرنُ الثعالب ځای ته رااُورسيدم ( نو زما غم څه نا څه سپَک شوې وُ ) پس ما خپل سَر ( پاس آسمان طرف ته ) پورته کړو ، ناڅاپه مې يوه وريځ اُوليده چې په ما باندې يې سُورې کړې وُ ، ما چې هغې طرف ته اُوکتل نو په هغې کې حضرت جبريل عليه السلام وُ ، هغه ماته آواز اوکړو او راته وې ويل :

إِنَّ اللهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ لَكَ، وَمَا رَدُّوْا عَلَيْكَ ، وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الْجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيْهِمْ .

الله تعالی ستا سو د قوم خبرې ستاسو په باره کې واوريدی ، او تاسو ته يې چې څه جواب درکړو هغه يې هم واوريد ، ( اوس ) الله تعالی تاسو ته د غرونو فرښته راليږلې ده دې د پاره چې تاسو ديته ددې خلقو په باره کې څه حُکم کول غواړئ هغه ورته اوکړئ ( دا به هغه حُکم اُومني ) .

( نبي عليه السلام فرمايي چې ) بيا ماته د غرونو فرښتې آواز اوکړو او سلام يې راباندې واچول ، بيا دې هم ماته د حضرت جبريل ﷺ په شان خبره اوکړه ، اوس چې ستاسو څه خوښه وي ( د هغې حُکم ماته اوکړئ ) ، که تاسو غواړئ نو زه به د اَخشَبَان دواړه غرونه په دوی باندې راپو ځای کړم ( يعنی دواړه به پرې رااُوغورځوم او په مينځ کې به يې چَخنړې کړم ) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

بَلْ أَرْجُوْ أَنْ يُخْرِجَ اللهُ مِنْ أَصْلَابِهِمْ مَنْ يَعْبُدُ اللهَ وَحْدَهُ ، لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا .

( دوی اګر چې د کُفر په وجه د همدې مستحق دي خو زه دا نه غواړم ) بلکه زما اُميد دی

چې الله تعالى به د دوی د شاګانو (یعنی د دوی د نسب) نه داسې خلق پيدا کړي چې هغوی به بواځې د الله ﷻ عبادت کوي او د هغه سره به (په عبادت کې) هيڅوک نه شريکوي.(۱)

## د فتح مکه په وخت د معافۍ اعلان

اګر چه د مکې کافرانو نبي عليه السلام ته ډير ضرر رسولې وُ خو چې کله نبي عليه السلام مکه فتح کړه او ټول دُشمنان ورته په ګوتو ورغلل، قدرت ورته پرې حاصل شو نو (بغير د يو څو کسانو نه) ټولو ته يې معافي اوکړه.

کله چې د مکې کافرانو د نبي عليه السلام دا ښائسته اخلاق او معافي اوليده نو دومره متأثره شو چې په خپله يې اسلام قبول کړو.(۲)

---

(۱) عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَتْهُ أَنَّهَا قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ أَتَى عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ؟ قَالَ: لَقَدْ لَقِيتُ مِنْ قَوْمِكِ مَا لَقِيتُ، وَكَانَ أَشَدَّ مَا لَقِيتُ مِنْهُمْ يَوْمَ العَقَبَةِ، إِذْ عَرَضْتُ نَفْسِي عَلَى ابْنِ عَبْدِ يَالِيلَ بْنِ عَبْدِ كُلاَلٍ، فَلَمْ يُجِبْنِي إِلَى مَا أَرَدْتُ، فَانْطَلَقْتُ وَأَنَا مَهْمُومٌ عَلَى وَجْهِي، فَلَمْ أَسْتَفِقْ إِلَّا وَأَنَا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ فَرَفَعْتُ رَأْسِي، فَإِذَا أَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ أَظَلَّتْنِي، فَنَظَرْتُ فَإِذَا فِيهَا جِبْرِيلُ، فَنَادَانِي فَقَالَ: إِنَّ اللهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ لَكَ، وَمَا رَدُّوا عَلَيْكَ، وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيهِمْ، فَنَادَانِي مَلَكُ الجِبَالِ فَسَلَّمَ عَلَيَّ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ، ذَلِكَ فِيمَا شِئْتَ، إِنْ شِئْتَ أَنْ أُطْبِقَ عَلَيْهِمُ الأَخْشَبَيْنِ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ اللهُ مِنْ أَصْلاَبِهِمْ مَنْ يَعْبُدُ اللهَ وَحْدَهُ، لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا. صحيح البخاري كِتَابُ بَدْءِ الخَلْقِ بَابُ ذِكْرِ المَلاَئِكَةِ رقم الحديث ۳۲۳۱، صحيح مسلم كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ مَا لَقِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَذَى الْمُشْرِكِينَ وَالْمُنَافِقِينَ رقم الحديث ۱۱۱(۱۷۹۵)، مشكاة المصابيح باب المبعث وبدء الوحي الفصل الاول رقم الحديث ۵۸۴۸(۱۲)، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۹۰۲.

(۲) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ .... ثُمَّ أَتَى الْكَعْبَةَ فَأَخَذَ بِعِضَادَتَيِ الْبَابِ فَقَالَ: مَا تَقُولُونَ وَمَا تَظُنُّونَ؟ قَالُوا: نَقُولُ: ابْنُ أَخٍ وَابْنُ عَمٍّ حَلِيمٌ رَحِيمٌ. قَالَ: وَقَالُوا ذَلِكَ ثَلَاثًا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَقُولُ كَمَا قَالَ يُوسُفُ عليه السلام: { لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ يَغْفِرُ اللهُ لَكُمْ وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ } [يوسف آية ۹۲]. قَالَ: فَخَرَجُوا كَأَنَّمَا نُشِرُوا مِنَ الْقُبُورِ فَدَخَلُوا فِي الْإِسْلَامِ. السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۸۲۷۵.

وَلَفِيْنَا حَكَى الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ عَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ أَنَّهُ قَالَ لَهُمْ حِينَ اجْتَمَعُوا فِي الْمَسْجِدِ: ←←←←

## ابوسُفيان ﷺ ته معافي

ابوسفيان ﷺ د اسلام راوړلو نه مخکې د نبي عليه السلام خلاف ډير سازشونه کړي وو، بلکه په غزوه خَندق کې د ټولو کافرانو مشرؤ، خو بيا هم نبي عليه السلام د فتح مکه په وخت هغه ته معافي اوکړه، او دا احسان يې ورسره هم اوکړو چې نبي ﷺ اوفرمايل:

مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ.

څوک چې د ابوسفيان کور ته داخل شي هغه به په آمن وي. (١)

## نبي عليه السلام هِنده معاف کړه

هنده د اسلام راوړلو نه مخکې ډيره ظالمه ښځه وه، دې د خپل غلام " حضرت وحشي ﷺ ( کوم چې تر اوسه ايمان نه ؤ راوړی، دده ) " په ذريعه د نبي عليه السلام خوږ تره " حضرت حمزه ﷺ " شهيد کړو.

کله چې حضرت حمزه ﷺ شهيد شو نو دا هِنده راغله په خَنجَر سره يې دده سِينه اُوشلوله، زړه او اِينه (کليجي) يې ورنه رااُوويسته، دا يې اُوچيچل (٢)، بيا يې دده غوږونه کټ کړل، دده سترګې يې رااُوويستې، او غونډ لاش يې ورله مَسخ کړو.

---

←←← مَا تَرَوْنَ أَنِّي صَانِعٌ بِكُمْ؟ قَالُوا: خَيْرًا، أَخٌ كَرِيمٌ وَابْنُ أَخٍ كَرِيمٍ. قَالَ: اِذْهَبُوا فَأَنْتُمُ الطُّلَقَاءُ.
السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٨٢٧٦. تفسير البغوي ج٥ ص ٣٢٣، تفسير القرطبي ج٩ ص ٢٥٨، تفسير ابي سعود ج٩ ص ٢٠٨، تفسير المظهري ج١٠ ص ٣٦٣. تفسير النسفي ج٢ ص ١٣٢.

(١) د فتح مکې تفصيلي واقعه په احاديثو کې ذکر ده، په هغې کې دا هم دي: .... قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ، وَمَنْ أَلْقَى السِّلَاحَ فَهُوَ آمِنٌ، وَمَنْ أَغْلَقَ بَابَهُ فَهُوَ آمِنٌ ... صحيح مسلم كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ فَتْحِ مَكَّةَ رقم الحديث ٨٦(١٧٨٠)، و رقم الحديث ٨٤(١٧٨٩)، سنن ابي داؤد باب ماجاء في خبر مكة رقم الحديث ٣٠٢١.

(٢) عن عوف بن محمد قال: بلغني أن هندا بنت عتبة بن ربيعة جاءت يوم أحد، وكانت نذرتْ لئن قدرت على حمزة لتأكلن من كبده. فجاءوا بحمزة من كبد حمزة أخذتها تمضغها لتأكلها، فلم تستطع أن تبتلعها فلفظتها. سبل الهدى والرشاد، في سيرة خير العباد ج ٤ ص ٢٣١.

کله چې نبي عليه السلام د خپل تره لاش اُوليد نو د سترګو مبارکو نه يې اُوښکې رواني شوی، او حضرت صفيه ﷺ يې ددې لاش کتلو نه منع کړه، ورته وې ويل چې ته به ددې د ليدلو برداشت اونکړې شی.

نبي عليه السلام ته د حضرت حمزه ﷺ په شهادت باندې ډير صَدمه اُورسيده، ځکه د دوی د حضرت حمزه ﷺ سره درې قِسمه رِشته وه:

يو دا چې دا د نبي عليه السلام تره وُ، دويم دا چې دوست يې وُ، او دريم دا چې د نبي عليه السلام رضاعي وَرور هم وُ، ځکه په وړوکوالي کې يوې زَنانه دې دواړو ته سِينه ورکړې وه.

بهر حال هندې نبي عليه السلام ته ډير تکليف رسولې وُ خو چې کله دا د فتح مکې په وخت راغله او مسلمانه شوه نو نبي عليه السلام ددې غلطي معاف کړه.(۱)

## نبي عليه السلام حضرت وَحشي ﷺ هم معاف کړو

(پاس ذکر شو چې) حضرت وَحشي ﷺ د اسلام نه مخکې په غزوه اُحد کې د نبي عليه السلام خوږ تره " حضرت حمزه ﷺ " شهيد کړو، او په دې باندې نبي عليه السلام ته سخته صَدمه اورسيده.

بيا څه وخت پس حضرت وَحشي اِيمان راوړو، نو نبي عليه السلام معاف کړو، صرف دومره يې ورته وويل: که ستا طاقت وي نو ماله مخې ته مه راځه؛ ځکه ما ته بيا خپل تره رايادېږي.

بيا حضرت وَحشي ﷺ ډير جهادونه اوکړل، کله چې د نبي عليه السلام د وفات نه پس مُسَيْلِمَةُ الكَذَّاب د پيغمبرۍ دعوی اوکړه نو حضرت وَحشي ﷺ هغه لره مردار کړو.(۲)

---

(۱) اخلاق رسول اکرم، سبل الهدی، الله دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۴ ص ۲۳۶.

(۲) په بخاري شريف کې دا پوره واقعه ذکر ده، حضرت وَحشي ﷺ په خپله فرمايي، إِنَّ حَمْزَةَ ﷺ قَتَلَ طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الخِيَارِ بِبَدْرٍ، فَقَالَ لِي مَوْلَايَ جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ: إِنْ قَتَلْتَ حَمْزَةَ بِعَمِّي فَأَنْتَ حُرٌّ. قَالَ: فَلَمَّا أَنْ خَرَجَ النَّاسُ عَامَ عَيْنَيْنِ، وَعَيْنَيْنِ جَبَلٌ بِحِيَالِ أُحُدٍ، بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ وَادٍ، خَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ ←←←←←

## نبي ﷺ عُمَير بن وَهب او صَفوان بن اُمیه معاف کړل

صَفوان بن اُمَيّة د مکې معظمې مالدار کس وُ ، د اَسلحې غټ تاجِر وُ ، د غزوه بدر نه پس صفوان ډير خفه وُ ، عُمَير بن وهب چې د اسلام راوړلو نه مخکې ډير ضَرري سړی وُ ، د غزوه بدر نه پس ده صفوان ته وويل چې په ما باندې ډيره قرضه ده او د ماسره د خپلو بچو يَره ده کنې ما به نبي عليه السلام قتل کړې وُ ( نَعُوذُ بِالله ) .

صَفوان ورته وويل : زه به ستا ټوله قرضه اَداء کړم ، او ستا د بچو کفالت به کوم خو ته دا کار ضرور اوکړه .

بيا صفوان دې عُمَير ته تېره توره ورکړه چې په زهرو کې يې لړلې وه ، او مدينې منوّرې ته يې د نبي عليه السلام د قتلولو پسې اُوليږل .

کله چې عُمَير مدينې منوّرې ته راغی ، هلته حضرت عُمر رضي الله عنه د صحابه کرامو سره ناست وُ ، د غزوه بدر متعلق خبرې يې کولی ، کله يې چې دا عُمَير بن وهب اوليد نو ورباندې

---

←←← إِلَى الْقِتَالِ. فَلَمَّا أَنِ اصْطَفُّوا لِلْقِتَالِ، خَرَجَ سِبَاعٌ فَقَالَ : هَلْ مِنْ مُبَارِزٍ ؟ قَالَ: فَخَرَجَ إِلَيْهِ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ. فَقَالَ: يَا سِبَاعُ ! يَا ابْنَ أُمِّ أَنْمَارٍ مُقَطِّعَةِ الْبُظُورِ أَتُحَادُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: ثُمَّ شَدَّ عَلَيْهِ. فَكَانَ كَأَمْسِ الذَّاهِبِ. قَالَ: وَكَمَنْتُ لِحَمْزَةَ رضي الله عنه تَحْتَ صَخْرَةٍ. فَلَمَّا دَنَا مِنِّي رَمَيْتُهُ بِحَرْبَتِي. فَأَضَعُهَا فِي ثُنَّتِهِ حَتَّى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ وَرِكَيْهِ. قَالَ: فَكَانَ ذَاكَ الْعَهْدَ بِهِ. فَلَمَّا رَجَعَ النَّاسُ رَجَعْتُ مَعَهُمْ. فَأَقَمْتُ بِمَكَّةَ حَتَّى فَشَا فِيهَا الْإِسْلَامُ. ثُمَّ خَرَجْتُ إِلَى الطَّائِفِ. فَأَرْسَلُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُولًا. فَقِيلَ لِي: إِنَّهُ لَا يَهِيجُ الرُّسُلَ. قَالَ: فَخَرَجْتُ مَعَهُمْ حَتَّى قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَلَمَّا رَآنِي قَالَ: « آنْتَ وَحْشِيٌّ ؟ » قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: « أَنْتَ قَتَلْتَ حَمْزَةَ ؟ » قُلْتُ: قَدْ كَانَ مِنَ الْأَمْرِ مَا بَلَغَكَ. قَالَ: « فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُغَيِّبَ وَجْهَكَ عَنِّي » قَالَ: فَخَرَجْتُ فَلَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ. قُلْتُ: لَأَخْرُجَنَّ إِلَى مُسَيْلِمَةَ. لَعَلِّي أَقْتُلُهُ فَأُكَافِئَ بِهِ حَمْزَةَ رضي الله عنه . قَالَ : فَخَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ. فَكَانَ مِنْ أَمْرِهِ مَا كَانَ. قَالَ: فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِي ثَلْمَةِ جِدَارٍ. كَأَنَّهُ جَمَلٌ أَوْرَقُ ثَائِرُ الرَّأْسِ. قَالَ: فَرَمَيْتُهُ بِحَرْبَتِي. فَأَضَعُهَا بَيْنَ ثَدْيَيْهِ حَتَّى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ كَتِفَيْهِ. قَالَ: وَوَثَبَ إِلَيْهِ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَضَرَبَهُ بِالسَّيْفِ عَلَى هَامَتِهِ . قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْفَضْلِ: فَأَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما . يَقُولُ : " فَقَالَتْ جَارِيَةٌ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ : وَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. قَتَلَهُ الْعَبْدُ الْأَسْوَدُ " . صحيح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ قَتْلِ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رقم الحديث ٣٠٧٢ .

پوهه شو چې دا د شَر د پاره راغلې دی نو وې نيولو ، او نبي ﷺ ته يې ددې خبر ورکړو ، رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته اوفرمايل چې ماته يې راولئ ،

کله چې هلته وَر وستې شو نو نبي عليه السلام ورنه پوښتنه اوکړه :

اې عُمَير ! څنګه راغلې يې ؟

( چونکه د غزوه بدر په قيديانو کې دده څوي هم ګير شوې وُ نوم يې " وَهب بن عُمَير " وُ ).

عُمَير ورته ووئيل : د خپل څوي پسې راغلې يم .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : چې دا توره دې ولې راوړې ده ؟ صحيح خبره راته اوکړه . هغه ووئيل : د خپل څوي پسې راغلې يم .

پيغمبر عليه السلام ورته هغه خبرې اوکړې کومې چې دده او صفوان په مينځ کې شوې وې : "" چې تا صفوان ته دا خبره اوکړه چې که په ما باندې قرض نه وی نو ما به نبي عليه السلام قتل کړې وُ نو صفوان تاته د قرض ذِمه واري واخيسته او ته زما د قتلولو پسې راغلې يې ، خو الله تعالی زه محفوظ کړم ""

عُمَير چې دا خبرې واوريدې نو سمدستي يې ووئيل :

أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ . زه دا ګواهي ورکوم چې ته د الله ﷻ رسول يې .

دا خبرې خو ما او صَفوان يواځې کړې وې ، او تاته د وَحي په ذريعه معلومې شوې .

بهر حال ، عُمَير اسلام راوړو ، نبي عليه السلام ورسره خپل څوي پريخود .(۱)

---

(۱) دا واقعه علامه ابن هشام رَحِمَهُ اللهُ داسې ذکر کړې : إِسْلَامُ عُمَيْرِ بْنِ وَهْبٍ . صَفْوَانُ يُحَرِّضُهُ عَلَى قَتْلِ الرَّسُوْلِ: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ جَلَسَ عُمَيْرُ بْنُ وَهْبٍ الْجُمَحِيّ مَعَ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ بَعْدَ مُصَابِ أَهْلِ بَدْرٍ مِنْ قُرَيْشٍ فِي الْحِجْرِ بِيَسِيْرٍ . وَكَانَ عُمَيْرُ بْنُ وَهْبٍ شَيْطَانًا مِنْ شَيَاطِيْنِ قُرَيْشٍ . وَمِمَّنْ كَانَ يُؤْذِيْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ وَيَلْقَوْنَ مِنْهُ عَنَاءً . وَهُوَ بِمَكَّةَ وَكَانَ ابْنُهُ وَهْبُ بْنُ عُمَيْرٍ فِيْ أُسَارَى بَدْرٍ .... فَذَكَرَ أَصْحَابَ الْقَلِيْبِ وَمُصَابَهُمْ فَقَالَ صَفْوَانُ وَاللهِ إِنْ فِي الْعَيْشِ بَعْدَهُمْ خَيْرٌ . قَالَ لَهُ عُمَيْرٌ : صَدَقْتَ وَاللهِ . أَمَا وَاللهِ لَوْلَا دَيْنٌ عَلَيَّ لَيْسَ لَهُ عِنْدِيْ قَضَاءٌ وَعِيَالٌ أَخْشَى عَلَيْهِمُ الضَّيْعَةَ بَعْدِيْ لَرَكِبْتُ إِلَى مُحَمَّدٍ حَتَّى أَقْتُلَهُ فَإِنَّ لِيْ قِبَلَهُمْ عِلَّةً ابْنِيْ أَسِيْرٌ فِيْ أَيْدِيْهِمْ . قَالَ فَاغْتَنَمَهَا صَفْوَانُ وَقَالَ عَلَيَّ دَيْنُكَ . أَنَا أَقْضِيْهِ عَنْكَ . وَعِيَالُكَ مَعَ عِيَالِيْ أُوَاسِيْهِمْ مَا بَقُوْا . لَا يَسَعُنِيْ شَيْءٌ وَيَعْجِزُ عَنْهُمْ . فَقَالَ لَهُ عُمَيْرٌ : فَاكْتُمْ شَأْنِيْ وَشَأْنَكَ . قَالَ أَفْعَلُ . ←←←←←

کله چې مکه فتح شوه نو صَفوان بن اُمَيّة اِراده اوکړه چې جَدې ته لاړ شي او د هغه ځاى نه يَمن ته لاړ شي ( ځکه دده سره يَره وه چې هسې نه ما نبي عليه السلام قتل کړي ) نو عُمَير بن وهب نبي عليه السلام ته راغى او ورته وې ويل :

اې د الله رسوله ! بيشکه صَفوان بن اُميّة د خپل قوم سَردار دى ، د تاسو نه تختي ، پس تاسو هغه ته اَمان ورکړئ.

---

←←←← ثُمَّ أَمَرَ عُمَيْرٌ بِسَيْفِهِ فَشُحِذَ لَهُ وَسُمَّ ثُمَّ انْطَلَقَ حَتَّى قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ ؛ فَبَيْنَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِي نَفَرٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ يَتَحَدَّثُوْنَ عَنْ يَوْمِ بَدْرٍ وَيَذْكُرُوْنَ مَا أَكْرَمَهُمُ اللهُ بِهِ وَمَا أَرَاهُمْ مِنْ عَدُوِّهِمْ إِذْ نَظَرَ عُمَرُ رضي الله عنه إِلى عُمَيْرِ بْنِ وَهْبٍ حِيْنَ أَنَاخَ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ مُتَوَشِّحًا السَّيْفَ . فَقَالَ : هٰذَا الْكَلْبُ عَدُوُّ اللهِ عُمَيْرُ بْنُ وَهْبٍ وَاللهِ مَا جَاءَ إِلَّا لِشَرٍّ وَهُوَ الَّذِيْ حَرَّشَ بَيْنَنَا ، وَحَزَرَنَا لِلْقَوْمِ يَوْمَ بَدْرٍ . ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ رضي الله عنه عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : يَا نَبِيَّ اللهِ ! هٰذَا عَدُوُّ اللهِ عُمَيْرُ بْنُ وَهْبٍ قَدْ جَاءَ مُتَوَشِّحًا سَيْفَهُ . قَالَ : " فَأَدْخِلْهُ عَلَيَّ" . قَالَ فَأَقْبَلَ عُمَرُ رضي الله عنه حَتَّى أَخَذَ بِحِمَالَةِ سَيْفِهِ فِيْ عُنُقِهِ فَلَبَّبَهُ بِهَا ، وَقَالَ لِرِجَالٍ مِمَّنْ كَانُوْا مَعَهُ مِنَ الْأَنْصَارِ : اُدْخُلُوْا عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاجْلِسُوْا عِنْدَهُ وَاحْذَرُوْا عَلَيْهِ مِنْ هٰذَا الْخَبِيْثِ فَإِنَّهُ غَيْرُ مَأْمُوْنٍ . ثُمَّ دَخَلَ بِهِ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَآهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعُمَرُ رضي الله عنه آخِذٌ بِحِمَالَةِ سَيْفِهِ فِيْ عُنُقِهِ ، قَالَ أَرْسِلْهُ يَا عُمَرُ ، اُدْنُ يَا عُمَيْرُ ، فَدَنَا ، ثُمَّ قَالَ انْعَمُوْا صَبَاحًا ، وَكَانَتْ تَحِيَّةَ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ بَيْنَهُمْ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : قَدْ أَكْرَمَنَا اللهُ بِتَحِيَّةٍ خَيْرٍ مِنْ تَحِيَّتِكَ يَا عُمَيْرُ بِالسَّلَامِ تَحِيَّةِ أَهْلِ الْجَنَّةِ . فَقَالَ أَمَا وَاللهِ يَا مُحَمَّدُ إِنْ كُنْتُ بِهَا لَحَدِيْثُ عَهْدٍ ، قَالَ فَمَا جَاءَ بِكَ يَا عُمَيْرُ ؟ قَالَ جِئْتُ لِهٰذَا الْأَسِيْرِ الَّذِيْ فِيْ أَيْدِيْكُمْ فَأَحْسِنُوْا فِيْهِ قَالَ " فَمَا بَالُ السَّيْفِ فِيْ عُنُقِكَ" ؟ قَالَ قَبَّحَهَا اللهُ مِنْ سُيُوْفٍ وَهَلْ أَغْنَتْ عَنَّا شَيْئًا ؟ قَالَ " اُصْدُقْنِيْ ، مَا الَّذِيْ جِئْتَ لَهُ" ؟ قَالَ : مَا جِئْتُ إِلَّا لِذٰلِكَ ، قَالَ : " بَلْ قَعَدْتَ أَنْتَ وَصَفْوَانُ بْنُ أُمَيَّةَ فِي الْحِجْرِ ، فَذَكَرْتُمَا أَصْحَابَ الْقَلِيْبِ مِنْ قُرَيْشٍ ، ثُمَّ قُلْتَ : لَوْلَا دَيْنٌ عَلَيَّ وَعِيَالٌ عِنْدِيْ لَخَرَجْتُ حَتَّى أَقْتُلَ مُحَمَّدًا ، فَتَحَمَّلَ لَكَ صَفْوَانُ بِدَيْنِكَ وَعِيَالِكَ عَلَى أَنْ تَقْتُلَنِيْ لَهُ وَاللهُ حَائِلٌ بَيْنَكَ وَبَيْنَ ذٰلِكَ" قَالَ عُمَيْرٌ : أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ وَقَدْ كُنَّا يَا رَسُوْلَ اللهِ نُكَذِّبُكَ بِمَا كُنْتَ تَأْتِيْنَا بِهِ مِنْ خَبَرِ السَّمَاءِ وَمَا يَنْزِلُ عَلَيْكَ مِنَ الْوَحْيِ وَهٰذَا أَمْرٌ لَمْ يَحْضُرْهُ إِلَّا أَنَا وَصَفْوَانُ فَوَاللهِ إِنِّيْ لَأَعْلَمُ مَا أَتَاكَ بِهِ إِلَّا اللهُ فَالْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدَانِيْ لِلْإِسْلَامِ وَسَاقَنِيْ هٰذَا الْمَسَاقَ . ثُمَّ شَهِدَ شَهَادَةَ الْحَقِّ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " فَقِّهُوْا أَخَاكُمْ فِيْ دِيْنِهِ وَأَقْرِئُوْهُ الْقُرْآنَ وَأَطْلِقُوْا لَهُ أَسِيْرَهُ . فَفَعَلُوْا . الروض الأنف في شرح السيرة النبوية لابن هشام ج ٥ ص ١٣٩ إِسْلَامُ عُمَيْرِ بْنِ وَهْبٍ

نبي عليه السلام اوفرمايل: هغه ته أمان دى.

ده ورته وويل: ماته داسې څه نخه راکړه چې هغه وربانديې ستاسو أمان ورکول اُوپيژني.

نو نبي عليه السلام ورته هغه پټکې ورکړو په کوم کې چې مکې معظمې ته فاتح راداخل شوې وُ.

عُمَير په منډه د صَفوان پسې ورغى او هغه ته يې دا خبره اوکړه، هغه ورته وويل: زه په ځان ويريږم چې مَرمې نکړي.

عُمَير ورته وويل: هغه دير أفضل او صابِره پيغمبر دى.

بهر حال، صَفوان د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو، او ورته وې ويل: دا عُمَير وايي چې تاسو ماته أمان راکړې دى؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: دا ريښتيا وايي (ما درته أمان درکړى).

صفوان ورته وويل: ماته دوه مياشتې اِختيار راکړه (څکه ما تر اُوسه د اسلام راوړلو اِراده نده کړى). نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: تاته څلور مياشتې اِختيار دى (کله چې ستا زړه اُوغواړي نو اِيمان راوړه).

بيا صَفوان به أمَيّة د څلور مياشتو نه مخکې مخکې اِيمان راوړو. (۱)

---

(۱) أَمَانُ الرَّسُوْلِ لِصَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ. قَالَ خَرَجَ صَفْوَانُ بْنُ أُمَيَّةَ يُرِيْدُ جدةَ لِيَرْكَبَ مِنْهَا إِلَى الْيَمَنِ. فَقَالَ عُمَيْرُ بْنُ وَهْبٍ: يَا نَبِيَّ اللهِ! إِنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ سَيِّدُ قَوْمِهِ وَقَدْ خَرَجَ هَارِبًا مِنْك لِيَقْذِفَ نَفْسَهُ فِي الْبَحْرِ فَأَمِنْهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْكَ. قَالَ: "هُوَ آمِنٌ"؟ قَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! فَأَعْطِنِي آيَةً يَعْرِفُ بِهَا أَمَانَكَ؛ فَأَعْطَاهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِمَامَتَهُ الَّتِيْ دَخَلَ فِيْهَا مَكَّةَ. فَخَرَجَ بِهَا عُمَيْرٌ حَتَّى أَدْرَكَهُ وَهُوَ يُرِيْدُ أَنْ يَرْكَبَ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ: يَا صَفْوَانُ! فِدَاك أَبِي وَأُمِّي، اَللهَ اللهَ فِي نَفْسِكَ أَنْ تُهْلِكَهَا. فَهٰذَا أَمَانٌ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جِئْتُكَ بِهِ. قَالَ: وَيْحَكَ أُغْرُبْ عَنِّيْ فَلَا تُكَلِّمْنِي، قَالَ أَيْ صَفْوَانُ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي أَفْضَلُ النَّاسِ وَأَبَرُّ النَّاسِ وَأَحْلَمُ النَّاسِ وَخَيْرُ النَّاسِ ابْنُ عَمِّكَ. عِزُّهُ عِزُّكَ، وَشَرَفُهُ شَرَفُك، وَمُلْكُهُ مُلْكُكَ، قَالَ إِنِّيْ أَخَافُهُ عَلَى نَفْسِيْ. قَالَ هُوَ أَحْلَمُ مِنْ ذٰلِكَ وَأَكْرَمُ. فَرَجَعَ مَعَهُ حَتَّى وَقَفَ بِهِ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَفْوَانُ إِنَّ هٰذَا يَزْعُمُ أَنَّكَ قَدْ أَمَّنْتَنِيْ. قَالَ: "صَدَقَ". قَالَ: فَاجْعَلْنِيْ فِيْهِ بِالْخِيَارِ شَهْرَيْنِ. قَالَ: أَنْتَ بِالْخِيَارِ فِيْهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ. الروض الانف في شرح السيرة النبوية لابن هشام ج ۷ ص ۲۴۳ أَمَانُ الرَّسُوْلِ لِصَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ.

**فائده** : ددې واقعې نه معلومه شوه چې چا د نبي عليه السلام د قتلولو سازش کړې ؤ دوی هغه هم معاف کړل .

## عکرمة رضی الله عنه بن ابي جهل ته معافي

د ابوجهل ځوي " حضرت عِکرمة رضی الله عنه " اګر چې د اِسلام نه مخکې د نبي عليه السلام خلاف ډېر جَنګيدلې ؤ ، خو د فتحِ مکه په وخت دده بي بي " اُمِّ حکيم " دده د پاره اَمان اُوغوښت ، نبي عليه السلام ورته اَمان ورکړو ، او معاف يې کړو ، عِکرمه رضی الله عنه راغی ، او اِيمان يې راوړو ، بيا يې د اِسلام ډېر ښه خدمت اوکړو ، په ډېرو جهادونو کې يې حصه واخيسته ، تردې چې د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په دَورِ خلافت کې په يو جهاد کې شهيد شو . (۱)

د نبي السلام دومره ښائسته اخلاق وو چې کله حضرت عِکرمة نبي عليه السلام ته راروان ؤ نو دوی صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمايل : چونکه عِکرمة د اسلام قبلولو د پاره راځي نو تاسو (دده د وړاندې ) دده پلار " ابوجهل " ته کنځل مه کوئ ؛ ځکه کنځل

---

(۱) عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ : قَالَ عِكْرِمَةُ بْنُ أَبِي جَهْلٍ : لَمَّا انْتَهَيْتُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ: يَا مُحَمَّدُ ! إِنَّ هٰذِهِ أَخْبَرَتْنِيْ أَنَّكَ آمَنْتَنِيْ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَنْتَ آمِنٌ » فَقُلْتُ : أَشْهَدُ أَنْ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ ، وَأَنْتَ عَبْدُ اللهِ وَرَسُوْلُهُ ، وَأَنْتَ أَبَرُّ النَّاسِ ، وَأَصْدَقُ النَّاسِ ، وَأَوْفَى النَّاسِ . قَالَ عِكْرِمَةُ : أَقُوْلُ ذٰلِكَ وَإِنِّيْ لَمُطَأْطِئٌ رَأْسِي اسْتِحْيَاءً مِنْهُ . ثُمَّ قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اِسْتَغْفِرْ لِيْ كُلَّ عَدَاوَةٍ عَادَيْتُكَهَا أَوْ مَوْكِبٍ أَوْضَعْتُ فِيْهِ أُرِيْدُ فِيْهِ إِظْهَارَ الشِّرْكِ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعِكْرِمَةَ كُلَّ عَدَاوَةٍ عَادَانِيْهَا ، أَوْ مَوْكِبٍ أَوْضَعَ فِيْهِ يُرِيْدُ أَنْ يَصُدَّ عَنْ سَبِيْلِكَ » قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مُرْنِيْ بِخَيْرِ مَا تَعْلَمُ فَأَعْلَمُهُ . قَالَ : " قُلْ : أَشْهَدُ أَنْ لَآ إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ . وَتُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِهِ " . ثُمَّ قَالَ عِكْرِمَةُ: أَمَا وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! لَا أَدَعُ نَفَقَةً كُنْتُ أَنْفَقْتُهَا فِي الصَّدِّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ إِلَّا أَنْفَقْتُ ضِعْفَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ، وَلَا قَاتَلْتُ قِتَالًا فِي الصَّدِّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ إِلَّا أَبْلَيْتُ ضِعْفَهُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . ثُمَّ اجْتَهَدَ فِي الْقِتَالِ حَتّٰى قُتِلَ يَوْمَ أَجْنَادِيْنَ شَهِيْدًا فِيْ خِلَافَةِ أَبِيْ بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . . المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۵۰۵۷ ذِكْرُ مَنَاقِبِ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِيْ جَهْلٍ وَاسْمُ أَبِيْهِ عَمْرُو . كنز العمال رقم الحديث ۳۷۴۲۰ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۴۳۱ . و رواه الطبراني في تاريخه ۵۰۲/۱۱ ، وابن عساكر في تاريخ دمشق ۶۴/۴۱ .

کول ژوندو خلقو ته ضرر رسوي او مړو ته نه رسي.

(ابوجهل چونکه په غزوه بدر کښې مردار شوې ؤ نو ځکه نبي علیه السلام اوفرمایل چې هغه ته کنځل مه کوئ چې ددې په وجه به عکرمه رضي الله عنه ته تکلیف اورسیږي). (۱)

## نبي ﷺ هغه زنانه د خپل حق نه معاف کړه چې دوی ته یې په خوراک کې زهر اچولي وو

د ابوداؤد شریف او مشکوة شریف حدیث دی، حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي :

په اهلِ خیبر کې یوې یهودنۍ ښځې د چیلۍ په وریته شوي غوښه کې زهر واچول، بیا یې دا رسولُ الله صلی الله علیه وسلم ته هدیه کړه ، نبي علیه السلام ددې یو پټون راواخیست او ددې په خوراک یې شروع اوکړه ، همدارنګې د دوی صحابه کرامو یو جَماعت هم ددې په خوړلو شروع اوکړه.

بیا ( ناڅاپه ) رسولُ الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته وفرمایل : لاسونه د خوراک نه پورته کړئ ( یعنی ددینه خوراک مه کوئ ) .

نبي علیه السلام ددې یهودنۍ راوستلو پسې یو کس وَرأولیږل ( هغه راغله ) ، پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل :

أَسَمَمْتِ هٰذِهِ الشَّاةَ ؟ آیا تا ددې چیلۍ په غوښه کې زهر اچولي دي ؟

دې یهودنۍ ښځې ورته وویل :

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه قَالَ : لَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ هَرَبَ عِكْرِمَةُ بْنُ أَبِي جَهْلٍ وَكَانَتِ امْرَأَتُهُ أُمُّ حَكِيمٍ بِنْتِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ امْرَأَةً عَاقِلَةً أَسْلَمَتْ. ثُمَّ سَأَلَتْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَمَانَ لِزَوْجِهَا فَأَمَرَهَا بِرَدِّهِ. فَخَرَجَتْ فِي طَلَبِهِ وَقَالَتْ لَهُ: جِئْتُكَ مِنْ عِنْدِ أَوْصَلِ النَّاسِ وَأَبَرِّ النَّاسِ وَخَيْرِ النَّاسِ وَقَدِ اسْتَأْمَنْتُ لَكَ فَأَمَّنَكَ . فَرَجَعَ مَعَهَا . فَلَمَّا دَنَا مِنْ مَكَّةَ. قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ : « يَأْتِيكُمْ عِكْرِمَةُ بْنُ أَبِي جَهْلٍ مُؤْمِنًا مُهَاجِرًا فَلَا تَسُبُّوا أَبَاهُ ، فَإِنَّ سَبَّ الْمَيِّتِ يُؤْذِي الْحَيَّ، وَلَا يَبْلُغُ الْمَيِّتَ » . فَلَمَّا بَلَغَ بَابَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَبْشَرَ وَ وَثَبَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمًا عَلَى رِجْلَيْهِ فَرِحًا بِقُدُوْمِهِ. المستدرک علی الصحیحین للحاکم رقم الحدیث ۵۰۵۵ ذِكْرُ مَنَاقِبِ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ وَاسْمُ أَبِيهِ مَشْهُورٌ. کنزالعمال رقم الحدیث ۳۷۴۲۰ .

مَنْ أَخْبَرَكَ ؟ تاسو ته چا خبر درکړو ؟ ( چې په دې کې زَهر دې ) .

نبي ﷺ ورته وفرمايل :

أَخْبَرَتْنِيْ هٰذِهٖ فِيْ يَدِيْ. ماته زما په دې لاس کې وریتې شوې غوښې خبر راکړو .

پیغمبر ﷺ د چیلۍ وریت شوي پَتون طرف ته اِشاره اوکړه ( چې دې راته داخبر راکړو ) ، نو دې یهودنړې ښځې اِقرار اوکړو چې :آو ، ما په دې غوښه کې زهر اچولي دي .

پیغمبر ﷺ ورته ووېل : فَمَا أَرَدْتِ إِلَى ذٰلِكَ ؟ ستاددې نه څه اِراده وه ؟

دې جواب ورکړو : ما د ځان سره په زړه کې ( دا سوچ کولو ، او دا مې ) ووېل : که چیرته محمد ( ﷺ ) د الله ﷻ رېښتينې نبي وي نو دا زهر به ده ته نقصان او نه رَسوي ، او که ( رېښتينې ) نبي نه وي نو ( په دې زهرو به مړ شي او ) مونږ به ترې راحت حاصل کړو ( یعنی مونږ به ترې خلاص شو ) .

فَعَفَا عَنْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُعَاقِبْهَا.

رسول الله صلى الله عليه وسلم دا معاف کړه ، او سَزا یې ورته وَرنکړه . (۱)

په ځنې روایاتو کې راځي چې صحابه کرامو رضي الله عنهم نبي علیه السلام ته اوفرمايل :

أَفَلَا نَقْتُلُهَا ؟

آیا مونږ دا قتل کړو ؟

---

(۱) عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ، قَالَ : كَانَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ يُحَدِّثُ أَنَّ يَهُوْدِيَّةً مِنْ أَهْلِ خَيْبَرَ سَمَّتْ شَاةً مَصْلِيَّةً ثُمَّ أَهْدَتْهَا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذِّرَاعَ . فَأَكَلَ مِنْهَا . وَأَكَلَ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِهٖ مَعَهُ . ثُمَّ قَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اِرْفَعُوْا أَيْدِيَكُمْ » . وَأَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَهُوْدِيَّةِ فَدَعَاهَا . فَقَالَ لَهَا « أَسَمَمْتِ هٰذِهِ الشَّاةَ ؟ » قَالَتِ الْيَهُوْدِيَّةُ : مَنْ أَخْبَرَكَ ؟ قَالَ « أَخْبَرَتْنِيْ هٰذِهٖ فِيْ يَدِيْ » لِلذِّرَاعِ . قَالَتْ : نَعَمْ . قَالَ « فَمَا أَرَدْتِ إِلَى ذٰلِكَ ؟ » قَالَتْ : قُلْتُ : إِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَنْ يَضُرَّهُ . وَإِنْ لَمْ يَكُنْ نَبِيًّا اِسْتَرَحْنَا مِنْهُ . فَعَفَا عَنْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُعَاقِبْهَا. سنن ابی داؤد كتاب الديات بَابٌ فِيْمَنْ سَقَى رَجُلًا سَمًّا أَوْ أَطْعَمَهُ فَمَاتَ أَيُقَادُ مِنْهُ رقم الحديث ۴۵۱۰ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۶۰۰۸ ، مشكوة المصابيح باب في المعجزات اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ رقم الحديث ۵۹۳۱ (۴۶) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: نه.(۱)

**فائده**: دې يهودنړې زَنانه اگر چې نبي عليه السلام ته په خوراک زهر اچولي وو خو دوی ورنه خپل ذاتي بدل وانه خيست.

البته چې کله په دې زهرو باندې يو صحابي "حضرت بشير بن براء رضي الله عنه" وفات شو نو بيا د هغې په قصاص کې اُووژلې شوه.(۲)

## نبي عليه السلام هغه يهودي ته هيڅ او نه ويل چې په دوی يې سِحر کړې ؤ

۱ . په نبي عليه السلام باندې يو يهودي ( لبيد بن اَعصَم ، او د هغه لورانو ) سِحر کړې ؤ ، بيا حضرت جبريل عليه السلام پيغمبر عليه السلام ته ددې خبر ورکړو ، او د ددې يهودي نوم يې هم ورته اُوخود ، نبي عليه السلام هغه سِحر رااُوويست او جوړ شو ، خو هيچا ته يې د يهودي نوم او نه خود چې کني دا سِحر راباندې ده کړی.

په بخارۍ شريف کې اُوړده واقعه ده ، د هغې په آخر کې دا ذکر دي :

أَمَّا اللهُ فَقَدْ شَفَانِيْ ، وَأَمَّا أَنَا فَأَكْرَهُ أَنْ أُثِيْرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا .

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّ يَهُوْدِيَّةً أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ مَسْمُوْمَةٍ . لِيَأْكُلَ مِنْهَا . فَجِيْءَ بِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهَا عَنْ ذٰلِكَ ؟ فَقَالَتْ : أَرَدْتُ قَتْلَكَ . فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا كَانَ اللهُ لِيُسَلِّطَكِ عَلَى ذٰلِكَ . أَوْ قَالَ: عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ . قَالُوْا : أَفَلَا نَقْتُلُهَا ؟ قَالَ: لَا . اخلاق النبي وآدابه لابي الشيخ الأصبهاني ص ۲۵۶ رقم الحديث ۷۸ وَأَمَّا مَا رُوِيَ مِنْ عَفْوِهِ وَصَفْحِهِ .

(۲) وَلَمْ يُعَاقِبْهَا. په دې روايت او بعضې نورو روايتونو کې راځي چې نبي عليه السلام دا يهودنړه ښځه معاف کړه او هيڅ سزا يې ورنکړه ، په بعضې روايتونو کې راځي چې دې بيا اِيمان راوړو .
خو علامه طيبي رحمه الله ليکلي چې ددې په باره کې مختلف روايات راغلي ، ځکه په يو روايت کې دا هم ذکر دي چې نبي عليه السلام ددې د قتلولو حکم اوکړو .
اوس په دې ټولو روايتونو کې تطبيق داسې دی چې نبي عليه السلام اول دا ښځه معاف کړه خو چې کله يو صحابي "حضرت بشير بن براء رضي الله عنه" ددې غوښې د يوې نوړی خوړلو په وجه وفات شو ( کوم چې د نبي عليه السلام د مَنع کولو نه مخکې يوه نوَړی تېره کړې وه او ددې زَهرو په وجه وفات شو ) نو نبي عليه السلام ددې ښځې د قتلولو حکم اوکړو . او ددې صحابي په قِصاص کې دا قتل کړې شوه . مظاهرحق شرح مشکوٰة ج۹ باب في المعجزات .

الله تعالى ماته شفاء راکړه ، او زه په خلقو کې شر خوَرول نه خوَښوم . (۱)
(يعنى که زه د هغه يهودي نوم خلقو ته اُوښايم نو خلق به ورته تکليف اُورسوي ) .

۲ . په مسند احمد او نورو د احاديثو په کتابونو کې چې دا واقعه ذکر ده د هغې په آخر کې دا الفاظ دي :

فَمَا ذَكَرَ لِذٰلِكَ الْيَهُودِيِّ ، وَلَا رَآهُ فِيْ وَجْهِهٖ قَطُّ حَتّٰى مَاتَ .

نبي عليه السلام تر وفات پورې دې يهودي ته ددې تذکره نده کړې ، او دې يهودي د نبي عليه السلام په مخ ( تندي ) مبارک باندې څه ګُنجې او د نفرت نخې هم نه وې ليدلى . (۲)

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ : مَكَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَا وَكَذَا ، يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَأْتِي أَهْلَهُ وَلَا يَأْتِي . قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنهَا : فَقَالَ لِي ذَاتَ يَوْمٍ : " يَا عَائِشَةُ ! إِنَّ اللهَ أَفْتَانِي فِي أَمْرٍ اسْتَفْتَيْتُهُ فِيهِ : أَتَانِي رَجُلَانِ ، فَجَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رِجْلَيَّ وَالآخَرُ عِنْدَ رَأْسِي ، فَقَالَ الَّذِي عِنْدَ رِجْلَيَّ لِلَّذِي عِنْدَ رَأْسِي : مَا بَالُ الرَّجُلِ ؟ قَالَ : مَطْبُوبٌ ، يَعْنِي مَسْحُورًا ، قَالَ : وَمَنْ طَبَّهُ ؟ قَالَ : لَبِيدُ بْنُ أَعْصَمَ ، قَالَ : وَفِيمَ ؟ قَالَ : فِي جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ فِي مُشْطٍ وَمُشَاقَةٍ ، تَحْتَ رَعُوفَةٍ فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ " فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : « هٰذِهِ الْبِئْرُ الَّتِي أُرِيتُهَا ، كَأَنَّ رُءُوسَ نَخْلِهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ ، وَكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ » فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُخْرِجَ . قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها : فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ! فَهَلَّا ، تَعْنِي تَنَشَّرْتَ ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « أَمَّا اللهُ فَقَدْ شَفَانِي ، وَأَمَّا أَنَا فَأَكْرَهُ أَنْ أُثِيرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا » . صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى : إِنَّ اللهَ يَأْمُرُ بِالعَدْلِ وَالإِحْسَانِ ... رقم الحديث ۶۰۶۳ ، و رقم الحديث ۵۷۶۵ كِتَابُ الطِّبِّ بَابٌ : هَلْ يَسْتَخْرِجُ السِّحْرَ ؟

(۲) عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ رضي الله عنه قَالَ : سَحَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ ، قَالَ : فَاشْتَكَى لِذٰلِكَ أَيَّامًا ، قَالَ : فَجَاءَهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَ : إِنَّ رَجُلًا مِنَ الْيَهُودِ سَحَرَكَ ، عَقَدَ لَكَ عُقَدًا فِي بِئْرِ كَذَا وَكَذَا ، فَأَرْسِلْ إِلَيْهَا مَنْ يَجِيءُ بِهَا ، فَبَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَاسْتَخْرَجَهَا ، فَجَاءَ بِهَا ، فَحَلَّلَهَا ، قَالَ : فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ ، فَمَا ذَكَرَ لِذٰلِكَ الْيَهُودِيِّ ، وَلَا رَآهُ فِي وَجْهِهِ قَطُّ حَتّٰى مَاتَ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۹۲۶۷ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۳۵۲۹ سَحَرَة اهل الكتاب ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۵۰۱۶ ، تفسير البغوي ج۵ ص ۳۳۴ .

## نبي عليه السلام د غاښونو مبارک شهيدان کيدو باوجود ښېرې اُونکړې

کله چې په غزوه اُحد کې د نبي عليه السلام غاښونه مبارک شهيدان شو ، نور هم زَخمي شو ، وِينه يې په مخ مبارک باندې رارَوانه وه . چا ورته وويل :

اې د الله رسوله ! دُشمنانو ته ښېرې ( بَد دُعا ) اوکړه .

رسولُ الله ﷺ اوفرمايل :

بيشکه الله تعالی زه طعن او لعنت کوونکی نه يم رالېږلی ، بلکه زه يې دَاعِي او رَحمت رالېږلې يم .

بيا نبي عليه السلام دا دُعا اوکړه : اَللّٰهُمَّ اهْدِ قَوْمِيْ فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ .

اې الله ! زما قوم ته هدايت اوکړه ؛ ځکه دوی نه پوهيږي . (۱)

## نبي ﷺ د خپلې لور " حضرت زينب رضي الله عنها " قاتل معاف کړو

د نبي عليه السلام مشرې لور " حضرت زينب رضي الله عنها " چې کله مدينې منوّرې ته هِجرت کولو نو د ورځې د خپل لېور ( د خاوند ورور ) " کنانه " سره روانه شوه ، د مکې قريشو ته چې دا پته اُولګېده نو ابوسفيان او څه نور کسان د دوی پسې راغلل ، دا په اُوښه باندې ناسته وه ، په دې وخت کې دا حامِله وه ( يعنی ماشوم يې په خېټه وُ ) .

هبار بن اسود ( چې تر اوسه يې اِيمان نه وُ راوړی ) راغی او د حضرت زينب رضي الله عنها د اُوښې خېټه يې په نېزه باندې اُووهله ، چې په دې سره اُوښې ټوپونه اُووهل او حضرت زينب رضي الله عنها د اُوښې نه لاندې رااُوغورځيده چې په دې سره ددې حمَل ( ماشوم ) ضائع شو .

بيا ابوسفيان ( چې تر اوسه يې اِيمان نه وُ راوړی ) ورته وويل چې تاسو د ورځې نشې تللی ؛ ځکه په دې کې زمونږ بې عزتي ده چې تاسو په ښکاره روان يئ ، د شپې په پټه باندې لاړ شئ نو مونږ به خلقو ته بهَانه جوړوو چې په پټه باندې تللي دي .

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ: لَمَّا كُسِرَتْ رُبَاعِيَةُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَشُجَّ فِيْ جَبْهَتِهِ فَجَعَلَتِ الدِّمَاءُ تَسِيْلُ عَلَى وَجْهِهِ . قِيْلَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اُدْعُ اللهَ عَلَيْهِمْ . فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَمْ يَبْعَثْنِيْ طَعَّانًا وَلَا لَعَّانًا وَلٰكِنْ بَعَثَنِيْ دَاعِيَةً وَرَحْمَةً . اَللّٰهُمَّ اهْدِ قَوْمِيْ فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ . شعب الايمان رقم الحديث ۱۳۷۵ فصل في بيان النبي صلى الله عليه وسلم وفصاحته ، تنبيه الغافلين ص ۲۰۹ بَابُ كَظْمِ الْغَيْظِ.

بيا حضرت زينب رضي الله عنها راواپس شوه ، او د شپې روان شو .

( هاغه وخت به كس د مكې معظمې نه مدينې منوّرې ته په سوَرلۍ باندې په پنځلسو ورځو كې رسيدو ) .

بهر حال ، حضرت زينب رضي الله عنها مدينې منوّرې ته په سخت تكليف باندې اُورسيده ، نبي عليه السلام چې دا په دې سخت حالت كې اُوليده نو د سترګو مباركو نه يې اُوښكې روانې شوې او وې فرمايل : زما لور زينب ته زما په وجه ډير تكليف اُورسيد .

د همدې زخم په وجه بيا وفات شو . (١)

نبي عليه السلام د هبار بن اسود په باره كې د قتلولو حُكم كړې وُ ، خو بيا ده اِيمان راوړو او د خپلې خطايې اِقرار يې اوكړو نو نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

يَا هَبَّارُ ! عَفَوْتُ عَنْكَ ، وَقَدْ أَحْسَنَ اللهُ إِلَيْكَ حَيْثُ هَدَاكَ إِلَى الْإِسْلَامِ ، وَالْإِسْلَامُ يَجِبُ مَا

---

(١) .... فلمّا وصل أبو العاص مكة أمرها باللحوق بأبيها فخرجت. وقد كان صلى الله عليه وسلم أرسل زيد بن حارثة و رجلا من الأنصار قال لهما : تكونان بمحل كذا لمحل قريب من مكة حتى تمرّ بكما زينب فتصحباها حتى تأتيا بها . أي و ذكر أن حماها كنانة بن الربيع أخا زوجها قدم لها بعيرا فركبته واتخذ قوسه وكنانته، ثم خرج بها نهارا يقودها في هودج لها وكانت حاملا. فتحدث بذلك رجال من قريش فخرجوا في طلبها حتى أدركوها بذي طوى. فكان أوّل من سبق إليها هبار بن الأسود رضي الله تعالى عنه. فإنه أسلم بعد ذلك. ونخس البعير بالرمح فوقعت وألقت حملها.

وفي رواية أنه سبق إليها هبار و رجل آخر يقال له نافع، وقيل خالد بن عبد قيس. ثم إنّ كنانة برك ونثر كنانته وأخذ قوسه وقال: والله لا يدنو منّي رجل إلّا وضعتُ فيه سهما. فجاء إليه أبو سفيان في رجال من قريش. وقال له: كف عنا نبلك حتى نكلّمك فكف. ثم قال له: إنّك لم تصب في فعلك. فإنّك خرجتَ بالمرأة جهارا على رؤوس الأشهاد وقد عرفتَ مصيبتنا التي كانت وما دخل علينا من محمد، فيظن الناس إذا خرجت زينب علانية على رؤوس الناس من بين أظهرنا أن ذلك من ذلّ أصابنا، وأن ذلك منا من ضعف ووهن، ولعمري ما لنا بحبسها عن أبيها من حاجة، ولكن ارجع بها حتى إذا هدأت الأصوات وتحدث الناس أن قد رددناها فسر بها سرا فألحقها بأبيها ففعل، وأقامت ليالي ثم خرج بها ليلا حتى أسلمها إلى زيد بن حارثة وصاحبه. السيرة الحلبية ( إنسان العيون في سيرة الأمين المامون ) ج ٢ ص ٢٦٦ باب غزوة بدر الكبرى .

كَانَ قَبْلَهُ.

اې هبار ! ما تاته معافي اوكړه ، الله تعالى په تا باندې احسان اوكړو ، اسلام يې درته نصيب كړو ، او اسلام خو مخكيني هر څه ختموي. (۱)

## حضرت يوسف عليه السلام خپل وروڼه معاف كړل

د حضرت يوسف عليه السلام وروڼو ده لره په كوهي كې اوغورځول ، بيا يې په قافلې واله باندې خرڅ كړو ، او پلار ته يې دا بهانه جوړه كړه چې هغه لېوه اوخوړ.

خو څه وخت پس چې حضرت يوسف عليه السلام ته د مصر خزانه بلكه د حكومت ټول

(۱) وأما هبار بن الأسود رضي الله عنه فإنه أسلم بعد ذلك، وإنما أمر صلى الله عليه وسلم بقتله لأنه كان عرض لزينب بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم في سفهاء من قريش حين بعث بها زوجها أبو العاص إلى المدينة. فأهوى إليها هبار ونخس بعيرها.

وفي رواية: ضربها بالرمح فسقطت من على الجمل على صخرة. أي وكانت حاملا فألقت ما في بطنها وأهراقت الدماء. ولم يزل بها مرضها ذلك حتى ماتت كما تقدم. فقال النبي صلى الله عليه وسلم: «وإنْ لقيتم هبارا فأحرقوه» . ثم قال: «إنما يعذب بالنار رب النار» . إن ظفرتم به فاقطعوا يده و رجله ثم اقتلوه فلم يوجد يوم الفتح ثم أسلم بعد ذلك وحسن إسلامه.

ويذكر أنه لما أسلم وقدم المدينة مهاجرا جعلوا يسبونه. فذكر ذلك للنبي صلى الله عليه وسلم. فقال: سب من سبك فانتهوا عنه. وهذا السياق يدل على انه أسلم قبل أن يذهب إلى المدينة.

وفي لفظ: ولما رجع النبي صلى الله عليه وسلم إلى المدينة جاء هبار رافعا صوته وقال: «يا محمدا أنا جئتُ مقرا بالإسلام وأنا أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا عبده ورسوله» واعتذر إليه أي قال له صلى الله عليه وسلم بعد أن وقف عليه وقال: السلام عليك يا نبي الله لقد هربتُ منك في البلاد فأردت اللحوق بالأعجام. ثم ذكرت عائدتك وفضلك في صفحك عمن جهل عليك، وكنا يا نبي الله أهل شرك فهدانا الله بك. وأنقذنا بك من الهلكة. فاصفح عن جهلي وعما كان مني فأني مقر بسوء فعلي، معترف بذنبي. فقال النبي صلى الله عليه وسلم: «يَا هَبَّارُ ! عَفَوْتُ عَنْكَ، وَقَدْ أَحْسَنَ اللهُ إِلَيْكَ حَيْثُ هَدَاكَ إِلَى الْإِسْلَامِ. وَالْإِسْلَامُ يَجُبُّ مَا كَانَ قَبْلَهُ».

السيرة الحلبية ج۳ ص ۱۳۱ فتح مكة شرفها الله تعالى.

کارونه اُوسپارل شو ، او بیا د قحط سالۍ په وخت ورونړه ده ته د غَلې (دانو) اخیستلو د پاره راغلل ، په آخر کې یې دا اُوپیژندو او د خپلې خطائي اِقرار یې اوکړو ، نو حضرت یوسف ﷺ د پیغمبرۍ د شان مطابق د اُوچتو اَخلاقو مظاهره اوکړه ، ټول یې معاف کړل ، ورسره یې ورته د الله ﷻ نه دُعا هم اُوغوښته ، ورته وې فرمایل :

﴿ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۖ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴾ . (۱)

ترجمه : نن ورځ په تاسو باندې هیڅ اِلزام (او ملامتیا) نشته ، الله تعالی دې تاسو معاف کړي ، او هغه د ټولو نه زیات رَحم کوونکی دی .

## حضرت عُمر ﷺ هغه کس معاف کړو چې ده ته یې بَدرَد وویل

په بخاري شریف کې دا واقعه ذکر ده : حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې (د حضرت عُمر ﷺ د خلافت په زمانه کې) عُیَیینَه بن حِصن مدینې منوّرې ته راغی او د خپل وراره حُر بن قَیس ﷺ سره دېره (مُقیم) شو .

حُر بن قَیس ﷺ په هغه خاصو خلقو کې وُ چې حضرت عُمر ﷺ به ځانته دیر رانزدې کول (یعنی د مجلس خاص کس یې وُ ) ، قارِیان به د حضرت عُمر ﷺ د مجلس مُقرّب او مشاورین وو ، که دا به زاړه وو او که ځوانان .

نو عُیَیینَه دې خپل وراره ته وویل : اې وراره ! ستا ددې اَمیر ( حضرت عُمر ﷺ ) په نزد ډیر اُوچت مقام دی پس ته ماله د هغه په مجلس کې د حاضرۍ اجازت راواخله .

حضرت حُر بن قَیس ﷺ ورته وویل : زه به ستا د پاره د هغه سره د ملاقات اجازت راواخلم .

ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي چې حُر بن قَیس د عُیَیینَه د پاره د حضرت عُمر ﷺ نه اِجازت اوغوښت ، نو دوی ورته (مجلس ته د راتلو) اجازت ورکړو .

کله چې دا مجلس ته داخل شو نو عُیَیینَه حضرت عُمر ﷺ ته وویل :

---

(۱) سورة یوسف آیة ۹۲ .

هِيْ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ ! فَوَاللهِ مَا تُعْطِيْنَا الْجَزْلَ وَلَا تَحْكُمُ بَيْنَنَا بِالْعَدْلِ .

اې د خطاب ځويه ! قسَم په الله ، ته نه مونږ ته مال راکوی او نه زمونږ په مينځ کښې په انصاف فيصله کوی ( نورې ډيرې د بې اَدبۍ خبرې يې هم اوکړې ) .

حضرت عُمر ﷺ ته په دې خبره غصه ورغله تر دې چې ده ته يې د سزا ورکولو اراده اوکړه .

حُر بن قَيس ﷺ حضرت عُمر ﷺ ته اوفرمايل :

يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ ﴾ وَإِنَّ هٰذَا مِنَ الْجَاهِلِيْنَ .

اې امير المؤمنين ! بيشکه الله تعالى خپل پيغمبر ته فرمايي : ﴿ ته معافي کوه ، د نېک کار حُکم کوه ، او د جاهلانو نه مخ واړوه ﴾ . او بيشکه دا عُيَيينَه جاهل دی .

( ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي ) قسَم په الله ، چې کله حُر بن قَيس حضرت عُمر ﷺ ته د قرآن کريم دا آيت تلاوت کړو نو د هغه غصه سړه شوه ، او عُيَيينَه ته يې هيڅ او نه ويل ، ( دا ځکه چې ) حضرت عُمر ﷺ د الله په کتاب باندې ډير ښه خبردار وُ .

( چې کله به يې د قرآن کريم آيت واوريد نو په هغې به يې عمل کولو ) . (۱)

---

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ: « قَدِمَ عُيَيْنَةُ بْنُ حِصْنِ بْنِ حُذَيْفَةَ فَنَزَلَ عَلَى ابْنِ أَخِيْهِ الْحُرِّ بْنِ قَيْسٍ ﷺ . وَكَانَ مِنَ النَّفَرِ الَّذِيْنَ يُدْنِيْهِمْ عُمَرُ ﷺ . وَكَانَ الْقُرَّاءُ أَصْحَابَ مَجَالِسِ عُمَرَ ﷺ وَمُشَاوَرَتِهِ كُهُوْلًا كَانُوْا أَوْ شُبَّانًا ». فَقَالَ عُيَيْنَةُ لِابْنِ أَخِيْهِ : يَا ابْنَ أَخِيْ ! هَلْ لَكَ وَجْهٌ عِنْدَ هٰذَا الْأَمِيْرِ فَاسْتَأْذِنْ لِيْ عَلَيْهِ. قَالَ: سَأَسْتَأْذِنُ لَكَ عَلَيْهِ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا : « فَاسْتَأْذَنَ الْحُرُّ لِعُيَيْنَةَ فَأَذِنَ لَهُ عُمَرُ » . فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ قَالَ: هِيْ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ ! فَوَاللهِ مَا تُعْطِيْنَا الْجَزْلَ وَلَا تَحْكُمُ بَيْنَنَا بِالْعَدْلِ . فَغَضِبَ عُمَرُ ﷺ حَتَّى هَمَّ أَنْ يُوْقِعَ بِهِ. فَقَالَ لَهُ الْحُرُّ ﷺ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : { خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ } [الاعراف آية ۱۹۹]. وَإِنَّ هٰذَا مِنَ الْجَاهِلِيْنَ. « وَاللهِ مَا جَاوَزَهَا عُمَرُ ﷺ حِيْنَ تَلَاهَا عَلَيْهِ. وَكَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللهِ » . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ { خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِيْنَ } رقم الحديث ۴۶۴۲ ، و رقم الحديث ۷۲۸۶ كِتَابُ الْاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ بَابُ الْاِقْتِدَاءِ بِسُنَنِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۶۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۳۵۹۸۱ .

